# کشف الباری

## عما فی

## صحیح البخاری

تالیف ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث
جامعه فاروقیه کراچۍ

# کتاب بدء الخلق

### خصوصیات

جلد (۲۱)

- ← داحادیثو تخریج
- ← د تعلیقات بخاری تخریج
- ← داسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ← دشرحی دهرې خبرې لاندې په حاشیه کښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ← د بخاری د احادیثو اطراف خودل

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ....... ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان

شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچئ

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست--
- دیوبند کتب خانه خوست-- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد-- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل-- ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰
- قدرت کتب خانه کابل --
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل-- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد-- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

## د مرتب عرض

الحمد لله رب العالمين، والعاقبة للمتقين، والصلاة والسلام على أشرف الأنبياء والمرسلين، وعلى آله وصحبه اجمعين، ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

اللهم لك الحمد لا أحصى ثناء عليك كما أثنيت على نفسك، اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك د رب رحيم او كريم ډير زيات احسانات او كرم او د هغه ډير لطف، مهرباني او انعام دې چې صرف په خپل فضل او كرم سره ئې احقر ته دا توفيق وركړو چې ستاسو په لاسونو كښې دعظيم الشاني شرح كشف الباري د يو بل جلد وړاندې كولو سعادت ورته حاصليږي.

دا جلد د صحيح بخاري د ،،بدء الخلق،، په مباحثو باندې مشتمل دې د كوم ځائې څخه چې د صحيح بخاري د تاريخونو حصه شروع كيږي په دې جلد كښې ټول ۱۱۷ بابونه د تشريح تعليق تحقيق او ترتيب سره راغلي دی. دا خبره دې ياده وی چې په دې جلد په اردو ژبه كښې غالباً په دې موضوع باندې دا اولنې مرتب شوې كار دې.

په دې جلد كښې هم د الله تعالى په فضل و كرم د هغه ټولو خبرو التزام شوې دې د كومو اهتمام چې په كتاب الايمان، كتاب العلم، او كتاب الوضوء كښې شوې دې. دغه شان د كتاب الجهاد په دواړو جلدونو كښې شوې دې. او د ترتيب او تعليق په دوران كښې د هغه نهج او انداز برقرار پاتې كولو كوشش شوې دې د كوم اهتمام چې په پورته ذكر شوو جلدونو كښې شوې دې.

د احاديثو په تشريح كښې چې په كومو ځايونو كښې عربی عبارا تونه نقل كړې شوی دی نو د هغې ترجمه هم شوې ده چې د پښتنو د پاره هم د دې څخه فائده اخستل آسان وی.

د دې څخه علاوه په تراجم رجال كښې په سند كښې د راويانو حالاتو ذكر كولو اهتمام شوې دې. چونكه كتاب بدء الخلق د صحيح بخاري د جلد اول تقريباً په آخر كښې دې او د كتاب د اول څخه تر كتاب الجهاد پورې د ډيرو كتابونو د كشف الباري كار لا تراوسه پورې چهاپ شوې نه دې. د دې وجې چې په كوم ځائې كښې هم په حاشيه كښې ليكلى شوی وی مثلاً د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الوضوء باب.... يا د دوی د حالاتو د پاره اوګورئ كتاب الصوم باب.... نو د دې څخه به مراد د صحيح بخاري ذكر شوې كتاب او باب وی او كه د يو راوی يا شخصيت نوم په اول ځل په كتاب بدء الخق كښې راغلی وی نو هلته د هغه تذكره ليكلې شوې ده او كه د كشف الباري په اولنو جلدونو كښې يا د كتاب الجهاد په دړې جلدونو كښې د هغوی تذكره وی نو د صفحې او كتاب د حوالې سره هغه په ګوته كړې شوې ده.

احقر ته د خپل علم د كمی او د تحقيق په ميدان كښې د خپلې ناتجربه كارئ نه يوازې دا چې احساس دې بلكه د دې پوره اقرار دې خو صرف په الله تعالى باندې بهروسه كولو او د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم د حكم او د دوی د عاګانو او توجهاتو او د دوی د قبول شوو دعاګانو په طفيل مې دې عظيم الشان خدمت ته غاړه كيخوده ده، كه په دې كښې بغير د څه قصد او ارادې څه غلطيانې شوې وی نو

د اهل علم حضراتو په خدمت کښې په ادب سره خواست دې که په کتاب کښې ئې په څه غلطئ باندې نظر پروزی نو احقر دې د هغې څخه خبر کړی

د دې کتاب د اول څخه تر آخره پورې د ترتیب او تحقیق په دوران کښې چې احقر ته د کومو حضراتو راهنمائی حاصله وه په هغو ټولو کښې د ټولو څخه لوړ حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم نه پس استاذ مکرم حضرت نور البشر صاحب حفظهم الله دې د دوی راهنمائی بنده ته قدم په قدم حاصله وه الله تعالی دې دوی ته د دې بهترینې بدلې ورکړی

او د دې شعبې د پاره د خپل وس مطابق خپل صلاحیتونه خرچ کوی نو الله تعالی دی دوی ته د دې بهترینه بدله او جزاء خیر او د نورو توفیق ورکړی

د کتاب پروف ریډنګ (تصحیح) احقر په خپله کړې ده. خو په څو ځایونو کښې د بعضو دوستانو تعاون راته حاصل وو الله تعالی دې ټولو مدد کونکو ته د دې غوره بدله ورکړی او علمی او عملی ترقیانې دې ورکړی او په دنیا او آخرت کښې دې کامیاب کړی دغه شان بنده د هغه ټولو استاذانو مخلصینو او محبینو هم ډیر زیات شکرګذار دې د چا حوصله افزایانې او دعاګانې چې د احقر سره وې.

په آخر کښې ټولو لوستونکو څخه د حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت معالیهم د پاره د خصوصی دعاګانو خواست دې. چې الله تعالی دې د حضرت د مهربانئ سیورې تر ډیره وخته پورې په عافیت سره قائم او دائم اوساتی او په ملک (پاکستان) کښې دننه او بهر چې د علمی افاداتو کومه سلسله (خاص کرد جامعه فاروقیه کراچئ په صورت کښې) تقریباً د نیمې صدئ راسې جاری ده دا دې ترقیامته پورې جاری اوساتی او د هغوی د پاره دې صدقه جاریه اوګرځوی الله آمین

دغه شان د احقر مرتب د پاره هم د خصوصی دعاګانو درخواست دې چې الله تعالی باقی کار آسان کړی زر ترزره د پوره کولو توفیق ورته ورکړی او په خپل دربار کښې ورته قبولیت ورکړی او زمونږ د پاره ، او زمونږ د استاذانو مشائخو والدینو او متعلقینو د پاره ئې د آخرت ذخیره او د نجات ذریعه اوګرځوی .

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی آله وصحبه اجمعین.

حبیب الله زکریا

رفیق شعبه تصنیف وتالیف

د فقه اسلامی او ادب عربی استاذ جامعه فاروقیه کراچئ

اولنې د صفرې میاشت کال ۱۴۳۷ هجری

# فهرست مضامين

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

بسم الله الرحمن الرحیم

# ۶۳-کتاب بدء الخلق

دلته نه امام بخاری رحمه الله کتاب بدء الخلق شروع کوی. د امام بخاری رحمه الله دا کتاب جامع الصحیح دې او جامع هغه کتاب ته وائی په کوم کښې چه په قول د عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله (۱) د حدیث اته واړه ابواب موجود وی. اود بعض محققینو خیال دې چه هغه عام مضامین ته جامع وی هم په دغه مضامینو کښې یو مضمون د تاریخ هم دې (۲)

امام بخاری رحمه الله د دې خائی نه د تاریخ مضمون شروع کوی اود کتاب المغازی پورې هم دغه د تاریخ مضمون روان دې. د تاریخ دوه حصې دی د یو تعلق د تخلیق د دنیا سره دې اود دویم تعلق سرورکائنات سردار دوعالم صلی الله علیه وسلم سره دې. حضرات علماؤ په دواړو اجزاؤ او دواړو قسمونو باندې مستقل کتابونه لیکلی دی. حضرت شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله فرمانی: د تاریخ اوسیر د احادیثو دوه قسمونه کړې شوی دی. ① هغه احادیث چه د آسمان، زمکې، حیوانات، شیاطین، د فرښتو پیدائش د تیرو شوو انبیاء علیهم السلام اود پخوانو امتونو سره متعلق دی. دا قسم احادیث بدء الخلق په نوم سره یادولې شی. ② هغه احادیث کوم چه زمونږ دپیغمبر علیه السلام وجود بامسعود اود صحابه کرامو رضی الله عنهم اود رسول الله صلی الله علیه وسلم د عظیم آل اولاد سره متعلق دی اود سرور دوعالم صلی الله علیه وسلم د پیدائش نه د وفات په حالاتو باندې مشتمل دی هغه د سیر په نوم باندې موسوم دی لکه سیرت ابن اسحاق، سیرت ابن هشام، سیرت ملاعمر دې نه علاوه په دې موضوع باندې نور ډیر زیات کتابونه لیکلې شوی دی. (۳)

**د بدء الخلق اوسیرت ابتدائی مؤلفات:** ددنیا د شروع کیدو په موضوع باندې دحضرت امام بخاری رحمه الله هم یو مستقل تالیف دې دکوم نوم چه کتاب بدء المخلوقات دې. بل البدء والتاریخ په نوم سره د ابوزید احمدبن سهل بلخی رحمه الله دکتاب تذکره هم ملاویږی. (۴) او سیرت نبویه علی صاحبها الف الف تحیة په سلسله کښې خو بلامبالغه په سوونو زرګونو کتابونه لیکلې شوی دی چه هغه شمیرلې هم نه شی. دحاجی خلیفه وینا ده چه په سیرت باندې د ټولو نه اول محمدبن اسحاق رحمه الله کتاب لیکلی دې او ابوالقاسم عبدالرحمن سهیلی رحمه الله تحقیق دادې چه د سیرت په موضوع باندې د ټولو نه اول امام ابن شهاب زهری رحمه الله قلم اوچت کړې دې. (۵)

---

(۱) عجالہ نافعہ فارسی، مطبوعہ فوائد جامعہ، ص: ۷۸، اقسام کتب حدیث.
(۲) د تفصیل دپاره اوګورئی کشف الباری: ۱/۱۵-۱۴ اووم بحث د مقدمه.
(۳) عجالہ نافعہ اردو، ص: ۲۳۵-۲۳۴.
(۴) فوائد جامعه شرح عجاله نافعه: ۲۳۴.
(۵) کشف الظنون ۲/۱۰۱۲ والروض الأنف للسهیلی: ۱/۱۲۲.

**راجح قول:** ليكن صحيح خبره داده چه د سيرت نګارنې شروع حضرت ابان بن عثمان رضي الله عنه نه شوې ده. بيا عروه بن زبير رحمه الله په دې موضوع باندې قلم اوچت کړو. بيا د شرجيل بن سعد رحمه الله نوم راځي اوبيا د امام زهري رحمه الله.[1] واقدي رحمه الله او ابن سعد رحمه الله وغيره هم په دې موضوع باندې کتابونه ليکلي دي. ابن سعد رحمه الله الطبقات الکبرى ليکلې دې. دې خوداد طبقات کتاب ليکن په هغې کښې هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مکمل سيرت ليکلې دې. د امت بعض علماء داسې دي چاچه مستقل تاريخ ليکلې دې اود تاريخ دغه دواړه جزونه يعنى د دنياد آباديدو شروع او د سيرت نبويه على صاحبها الف الف تحية ذکرکړې دې. لکه امام ابن جرير طبري رحمه الله او حافظ ابن کثير دمشقي رحمه الله. اوامام بخاري رحمه الله هم دا دواړه زمانې په خپل جامع صحيح کښې جمع کړې دي.

چنانچه مصنف علام رحمه الله اوس دلته بدء الخلق ذکرکوی اوحضرات انبياء عظام عليهم السلام چونکه دالله تعالى په مخلوق کښې د ټولو نه زيات اعلى او اکمل، اشرف او اوچت دی. لهذا ددوی ذکر اول دې او په انبياء کرام عليهم السلام کښې اشرف او اکمل سيد المرسلين خاتم النبيين حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دې. لهذا دحضورپاك سيرت تذکره هم امام بخاري رحمه الله کړې ده اود حضور پاك د سيرت يو ښکلې باب صحابه کرام رضي الله عنهم دی. نودهغوی مناقب اومحاسن نې هم ذکرکړی دی. دغه شان د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سيرت طيبه يووسيع او زړه راښکونکې باب مغازی هم دې په دې وجه امام بخاري رحمه الله د مغازی هم اهتمام سره ذکرکړې دې چه دمغازی په ذريعه عروج اوترقی اسلام ته حاصله شوه هغه دنيا پيژنی.[2]

**دنسخواختلاف او راجح قول:** اکثرد بخاري شريف رواة دلته بسمله ذکرکړې ده سواد ابوذر نه چه دهغه په نسخه کښې بسمله نشته دې. بل د اکثر په نيزعنوان د کتاب سره معنون دې خود نسفي په نسخه کښې عنوان «أبواب بدء الخلق» سره معنون دې[3] خو راجح د اکثرناسخينونسخې دی ځکه چه مؤلف علام رحمه الله ددې ځائې نه بالکل يونوې بحث شروع کوی ځکه دهغوی دعادت موافق دلته بسمله هم کيدل پکاردی او عنوان هم په لفظ کتاب سره معنون کيدل پکاردی.

---

[1] دمصر نامور متکلم شيخ الاسلام مصطفى صبرى رحمه الله ليکی: "إن المؤلفين كثيرون، وليس ابن هشام المتوفى: ۲۱۸هجرى أقدمهم، والتأليف يبتدئ من أبان بن عثمان رضي الله عنه، المولود: ۲۰هجرى، ثم عروة بن الزبير، المولودبعد أبان بقليل، ثم شرحبيل بن سعد، ثم الزهرى، المولود: ۵۰هجرى، وهو أستاذ أستاذ البخارى، وإمام كبير فى الحديث، لقى عبدالملك بن مروان،وعمر بن عبدالعزيز، ويحتمل أن يكون تأليفه فى المغازى بإشارة الأخير". موقف العقل والعلم والعالم من رب العالمين: ۴۷/۱بحواله فوائد جامعه برعجاله نافعه: ۲۳۵.

ابومعشر نجيح سندهی رحمه الله دا نجيح بن عبدالرحمن دې ابو معشر ددوې کنيت دې، د سنده سره تعلق لرلو په وجه ورته سندهي وائی. او چونکه د بنی هاشم آزادکړې شوې غلام وو په دې وجه د ولاء هاشمي نسبت لري. دې د دويمې صدئ د نصف اخر يونومورې سيرت نګارونه دې خو په علم روايت حديث کښې ضعيف اوکمزورې شميرلې کيږی. اوګورئ خلاصة الخزرجی: ۴۰۶فصل التفاريق حرف النون، والکنى والأسماء لمسلم بن الحجاج وتعليقاته ۶: ۸۱۲/۲رقم :۳۲۸۶.

[2] تعليقات اللامع ۳۳۱/۷والکنزالمتوارى:۱۳/ ۱۱۶-۱۱۵.[2]

[3] عمدة القارى:۱۰۷/۱۵فتح البارى: ۲۸۷/۶وشرح القسطلانى: ۲۴۸/۵.

**لفظ بدء**: په فتح د باء سكون د دال او په آخره كښې همزه - د فعل په وزن باندې مصدر دې. بدء الشيء، د بدأ معنى ده ابتدأت به، چه ما دا كار شروع كړو. د باب افعال نه هم ددې دغه معنى ده. او فظ خلق په معنى د مخلوق يعني مصدر په معنى د مفعول دې او د بدء الخلق نه مراد خلق المخلوق دې. په دې كتاب كښې امام بخاري رحمه الله د الله تعالى د مخلوقاتو په شروع كيدو باندې بحث كوى.[1]

**ماقبل كتاب سره مناسبت**: دكتاب بدء الخلق د ماقبل بحثونو جهاد، خمس وجزيه سره دوه مناسبتونه بيان كړې شوى دى. ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په جهاد كښې د خان نه هم بعض وخت لاس وينخلې كيږى. چنانچه ددې مضمون ذكركولونه پس بدء الخلق ذكركولوسره دې طرف ته اشاره كړې شوې ده چه مخلوقات حادث دى آخر دوى به يوه ورځ فنا كيږى او د الله تعالى لم يزل نه علاوه هيچاته هم هميشه والې اودوام حاصل نه دې. په هدى السارى كښې حافظ رحمه الله ليكى: «....... إنما ذكر بدء الخلق عقيب كتاب الجهاد، لما أن الجهاد يشتمل على إزهاق النفس، فأراد أن يذكر أن هذه المخلوقات محدثات، وأن مآلها إلى الفناء، وأنه لا خلود لأحد».[2]

② خود حضرت شيخ الحديث رحمه الله په خيال كښې دا احتمال هم لرې نه دې چه د نبى عليه السلام دمغازى تذكره د كتاب الجهاد تكمله ده چه مغازى د جهاد په ډيرو مسائلو كښې اسوه اومقتدا دې. چنانچه مقصود هم دغه ذكرد مغازى وو هم دغه وجه ده چه حضرت مصنف رحمه الله ابحاث مغازى په ډير تفصيل سره ذكركړى دى اوكله چه هغوى مغازى ذكر كړو اودې ته نى دومره حيثيت اواهميت وركړو نو مناسب دا وو چه د نبى عليه السلام احوال هم ذكركولې شو چه د حضورپاك تذكره هم دمقاصد نه ده. چنانچه ددې احوالو هم ښه وضاحت اوكړې شو. بيا د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابه كرامو رضي الله عنهم تذكره اوكړې شوه چه دهغوى په مغازى كښې هم دغه مجاهد اومقاتل وو. دې نه علاوه د نبى پاك عليه السلام په تذكره مباركه باندې دحضرات انبياء كرام عليهم السلام تذكره په تمهيد كښې مقدم كړه په دوى كښې دټولو نه اول حضرت آدم عليه السلام دې. چنانچه دهغوى تذكره اوكړې شوه اودهغوى د پيدائش اوتخليق تذكره اوكړې شوه. دې نه وړاندې تمهيداً بدء الخلق بيان كړې شو چه راتلونكى ابحاث تعلق هم دې بدء الخلق سره دې. فتأمل.[3]

## ۱- باب: ما جاء في قول الله تعالى: ﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ /الروم: ۲۷/

قَالَ الرَّبِيعُ بْنُ خُثَيْمٍ وَالْحَسَنُ: كُلٌّ عَلَيْهِ هَيِّنٌ. وَهَيْنٌ وَهَيِّنٌ مِثْلُ لَيْنٍ وَلَيِّنٍ، وَمَيْتٍ وَمَيِّتٍ، وَضَيْقٍ وَضَيِّقٍ. ﴿وَأَفَعَيِينَا﴾ /ق: ۱۵/: أَفَأَعْيَا عَلَيْنَا حِينَ أَنْشَأَكُمْ وَأَنْشَأَ خَلْقَكُمْ. ﴿لُغُوبٌ﴾ /فاطر: ۳۵/ و/ق: ۳۸/: النَّصَبُ. ﴿وَأَطْوَارًا﴾ /نوح: ۱۴/: طَوْرًا كَذَا وَطَوْرًا كَذَا، عَدَا طَوْرَهُ أَيْ قَدْرَهُ.

**د ترجمة الباب مقصد**: ددې باب مقصود دادې چه د الله تبارك وتعالى نه علاوه څومره څيزونه دى هغه ټول په ټول مخلوق دې. هم هغه يو قديم ذات دې. حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى: «والمقصود من هذا

---

[1] عمدة القارى: ۱۰۷/۱۵ فتح البارى: ۲۸۷/۶.

[2] هدى السارى: ۶۵۵ ذكر مناسبة الترتيب المذكور........

[3] الأبواب والتراجم للكاندهلوى: ۲۰۹/۱ والكنز المتوارى: ۳۲۹/۱ المقدمة الفائدة الثالثة عشرة.

الباب إثبات أنه ليس شيء سواه تبارك وتعالى قديما، بل الكل محدث ومخلوق» (١) نور تفصيل به وړاندې په خپل مقام باندې راځي ان شاء الله.

**مكمل ايت شريف اودهغې مختصر توضيح:** امام بخارى رحمه الله دلته د ترجمة الباب لاندې چه کوم آيت ذکر کړې دې هغه مکمل داسې دې:

﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَى فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾

**ترجمه:** اوهم هغه دې چه په اول خل باندې جوړول کوى، بيا به هغه دوباره کوى اودا آسان دى په هغه باندې اود هغه شان د ټولو نه اوچت دې په زمکه او آسمان کښې اوهم هغه دې د زبردست حکمتونو والا.(٢) شيخ الاسلام شبيراحمد عثمانى رحمه الله ددې آيت لاندې ليکى: "يعنى د الله تعالى د قدرت په وړاندې خو ټول برابر دي ليکن ستاسو د محسوساتو په اعتبارسره د اول خل پيدا کولو په نسبت سره په دويم دوباره پيدا کول آسان کيدل پکار دى. بيا دا عجيبه خبره ده چه په اول خل پيدا کولو باندې هغه قادر منئى او په دويم خل راپيدا کول مستبعد اوګڼړنى. يعنى د اعلى نه اعلى صفات اود اوچت نه اوچت شان هم دهغه دې د آسمان اوزمکې يوشئ په خپل حسن اوښکلا کښې د هغه د شان او صفت سره لګاؤ نه شى ساتلې مساوى کيدل خو لرې خبره ده. هغه خوددې نه هم اوچت او بالا دې. ترکومې چه مخلوق دهغه د جمال اوجلال تصور کولې شى بلکه کومه خوبى چه چرته موجود ده دغه دهغه د کمالاتو يوه ادنى نمونه ده....."(٣)

**قوله: وقال الربيع بن خثيم والحسن: كل عليهين:** اوحضرت ربيع بن خثيم رحمه الله اوحسن بصرى رحمه الله دواړه فرمائى چه دا ټول دهغه دپاره اسان دى.

**دمذکوره اثر مطلب او مقصد:** په دې اثر کښې "كل" نه مراد بدء اواعاده ده. اومطلب دادې چه مخلوق پيدا کول، بيا دا واپس راګرځول دادواړه کارونه دالله تعالى دپاره آسان دى. دالله تعالى د قدرت کامله په وړاندې ټول برابر دى.اود امام بخارى رحمه الله مقصد ددې اثر ذکرکولونه دلته داخبره ده چه په آيت مبارک کښې کوم لفظ ﴿أَهْوَنُ﴾ راغلې دې هغه اګرچه اسم تفضيل دې ليکن مراد دې نه صفت محضه دې. داخبره داسې اوګڼړئى چه اسم تفضيل د فعل نه مشتق داسې صفت ته وائى چه په دوو څيزونو کښې مثلاً مشترک وى ليکن په دې کښې په يو کښې هغه صفت څه زيات موندلې شى لکه خليل أعلم من سعيد په دې مثال کښې خليل اوسعيد دواړه دعلم په صفت کښې مشترک دى خو دا صفت د سعيد په مقابله کښې په خليل کښې زيات دې دا خو شو د اسم تفضيل اصل مطلب اومفهوم ليکن اسم تفضيل کله کله دتفضيل دمعنى نه خالى اوعارى هم استعماليږى لکه چه الله اکبر، دغه شان د مشهور شاعر فرزدق دا شعر:

---

١) الأبواب والتراجم للكاندهلوى: ٢٠٩/١ ولامع الدرارى: ٣٣٤/٧ والكنز المتوارى: ١٢٢/١٣.

٢) ترجمه شيخ الهند مطبوعه مع تفسير عثمانى: ٥٤١

٣) حواله بالا. قال الإمام الكشميرى رحمه الله: فيض البارى: ١/٤ أتى بصيغة التفضيل رعاية لحال المخاطبين و مجاراة لهم، فان الإعادة عندهم أسهل من الإبداع، وإلا فالكل سواء بالنسبة إلى قدرته، فإن الله تعالى لا مكره له.

إن الذي سمك السماء بنى لنا بيتاً دعائمه أعز وأطول[1]

که چرې دآيت مبارك لفظ ﴿أَهْوَنُ﴾ په تفضيل باندې محمول کړې شي نومطلب به داشي چه د خلق په مقابله کښې اعاده د الله تعالى دپاره آسانه ده کوم چه خلاف مقصود دې. مقصود خود الله تعالى د قدرت کامله بيان دې په دې وجه ﴿أَهْوَنُ﴾ دلته د هين په معنى کښې دې کوم چه صفت محضه دې چه دالله تعالى د پاره دواړه فعل آسان دى. چنانچه اسم تفضيل دلته په خپل اصل مفهوم باندې نه دې. علامه کرمانى رحمه الله فرمائى «وغرضه أن أهون بمعنى هين، أى: لاتفاوت عند الله بين الابداء والإعادة، كلاهما على السواء في السهولة»[2] دا خو شود حضرت ربيع حضرت حسن اوحضرت امام بخارى رحمهم الله وغيره رائې. صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې دحضرت ابن عباس او ابن مسعود رضي الله عنهما هم دغه قول دې بلکه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه خو قراءت ﴿وَهُوَ عَلَيْهِ هَيِّنٌ﴾ دې.[3] خو ډير مفسرين په کوم کښې چه حضرت مجاهد رحمه الله هم شامل دې لفظ ﴿أَهْوَنُ﴾ په معنى د تفضيل باندې محمول کوى. هم دا شيخ الاسلام شبير احمد عثمانى رحمه الله هم په خپل تفسير کښې اختيار کړې دې اود آيت مبارك محمل محسوسات انسانى دې چه په عام توګه د خلقو په نيز په اول ځل يوشئ جوړول مشکل وى. يوځل چه کله شئ تيارشو نودهغې په شان جوړول بيا ګران نه وى. اوس دا څومره عجيبه خبره ده چه الله تعالى خو خالق منى خو ولې معيدې اونه منلې شى؟[4] بهرحال دواړه تفسيرونه په خپل خپل ځائى صحيح دى. ليکن امام بخارى رحمه الله اولنې تفسير اختيار کړې دې.[5]

**قوله: هَيْنٌ، وهَيِّنٌ، مثل: لَيْنٌ ولَيِّنٌ، ومَيْتٌ ومَيِّتٌ، وضَيْقٌ وضَيِّقٌ:** په دې ټولو کلماتو کښې اولنې لفظ تخفيف سره او دويم تشديد سره دې. په دې عبارت کښې امام بخارى رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه دلته په دې کلماتو کښې دوه لغتونه دى.[6] امام ابوعبيده رحمه الله دسورة الفرقان آيت ﴿لِّنُحْيِيَ بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا﴾[7] په تفسير کښې فرمائى: «هى مخففة بمنزلة هين ولين وضيق بالتخفيف فيهما والتشديد»[8] دې سره متعلق څه ابحاث کتاب التفسير کښې مونږ بيان کړى دى.[1]

---

[1]) انظرهداية النحو: ٨٢ وجامع الدروس العربية: ١٤٩ الباب الثانى...(أفعل) لغير التفضيل، وديوان الفرزدق وروح المعانى: ٢٢/٢١ الروم: ٢٧.

[2]) شرح الكرمانى: ١٥٠/١٣ وعمدة القارى: ١٠٧/١٥.

[3]) فتح البارى: ٢٨٧/٦ وتفسير الإمام ابن كثير: ٨٤/٥ وروح المعانى: ٢١/٥٢-٥١ والكشاف: ٤٦٢/٣-٤٦١.

[4]) حواله جات بالا، آيت مبارك کښې نور احتمالات هم دى دهغې دپاره اوګورئى محوله بالا کتب او نور کتابونه د تفسير.

[5]) قال الإمام السندى رحمه الله: ((كل عليه هين)): يريد أن أهون مجرد عن معنى التفضيل لا ستواء الكل. وغالب العلماء حملوه على التفضيل بالنسبة إلى قياس العباد، أى هو أسهل عليه بالنظر إلى قياسكم، فيكف تنكرونه مع إثبات البدء. حاشية السندى على البخارى المطبوع مع صحيح البخارى: ٤٥٣/١ (قديمى).

[6]) عمدة القارى: ١٠٧/١٥ وشرح الكرمانى: ١٥٠/١٣.

[7]) سورة الفرقان: ٤٩.

[8]) فتح البارى: ٢٨٧/٦ ومجاز القرآن: ٧٦/٢ سورة الفرقان.

**الربيع بن خثيم:** دا كبير تابعي حضرت ربيع بن خثيم[2] عائذ بن عبدالله بن موهبة بن منقذ ثوري كوفي رحمه الله دي.[3] ابويزيد د دوى كنيت دي.[4] دي د نبي كريم ﷺ نه مرسلاً روايت كوي. بل حضرت ابن مسعود، ابوايوب انصاري، يو انصاري ښځه، عمرو بن ميمون اودى اوعبدالرحمن بن ابى ليلى رضي الله عنهم وغيره نه د حديث روايت كوي. ددوى نه د حديث روايت كونكو كښې دهغوى خامن عبدالله، نيز منذر ثوري شعبي هلال بن يساف ابراهيم نخعي او بكر بن ماعز رحمهم الله وغيره شامل دى.[5]

هغوى رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د اجل اومحبوب تلامذه نه وو اكثر به هغوى سره اوسيدو. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه خوئى ابو عبيده رحمه الله فرمائي چه د ابن مسعود رضي الله عنه په مجلس كښې به ئې چه كله تشريف راورو نودواره به په افاده و استفاده كښې مشغول كيدل. د مجلس والونه به چاته تر هغه وخته پورې د پاسيدو اجازت نه وو تركومې چه به دا دواړه فارغ شوي نه وو. اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه به ربيع رحمه الله ته وئيل ابويزيد! كه رسول الله ﷺ تاته كتلې نوضرور به ئې تاسره محبت كولو اوزه چه كله هم تاته ګورم نوماته مخبتين رايادېږي.[6] دې مخضرم تابعي دې هغه د نبوت زمانه خوليدلې ده ليكن د نبي كريم ﷺ زيارت ئې نه دې كړې په دې وجه به د ده د نبي پاك عليه السلام نه روايت مرسل شميرلې شي.[7] د دوى فضائل اومحاسن بې شميره دى د څه مونږ دلته تذكره كوو. يحيى بن معين رحمه الله فرمائي: ((لايسأل عن مثله))[8] حضرت شعبي رحمه الله فرمائي: ((كان من معادن الصدق))[9] د مشهور تابعي ابووائل شقيق بن سلمه رحمه الله نه تپوس اوكړې شو ((أيما أكبر؟ أنت أو الربيع بن خثيم؟)) وئې فرمائيل: ((أنا أكبر منه سناً، وهو أكبر مني عقلاً))[10] يعنې په عمر كښې خو زه لوئې يم ليكن په عقل اوفهم كښې هغه لوئې دې. امام عجلي رحمه الله فرمائي: ((تابعي ثقة، وكان خياراً))[11] حافظ ذهبي رحمه الله

---

[1] كشف البارى كتاب التفسير، اول سورة النحل ص: ٣٥١.

[2] د دې لفظ مشهور ضبط خاء معجمه ضمه اوثاء مثلثه فتحه ده. يعنې تصغير سره. خو داد خاء فتحه سره هم لوستلې شوې دې اوياء به مينځ كښې ده يعنې خَيْثَم ليكن روميې ضبط راجح دې چه مصغر دې. تعليقات تهذيب ابن حجر: ٢٤٢/٣ والتقريب له: ٢٩٤/١ رقم: ١٨٩٣ وحلية الأولياء: ١٠٥/٢ وخلاصة الخزرجي: ١١٥، من اسمه ربيع.

[3] تهذيب الكمال: ٧١/٩-٧٠ وسير أعلام النبلاء: ٢٥٨/٤ وإكمال مغلطاى: ٣٣٣/٤.

[4] حواله جات بالا وطبقات ابن سعد: ١٨٢/٦.

[5] د شيوخ اوتلامذه د تفصيل د پاره اوګورئى تهذيب الكمال: ٧١/٩.

[6] د آيت مبارك جزء ﴿وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ﴾ [الحج: ٣٤] طرف ته اشاره ده، د مخبت دوه معانى خودلې شوى دى: ① المطمئن ② المتواضع الخاشع لربه. وتعليقات سير أعلام النبلاء: ٢٥٨/٤. تهذيب الكمال: ٧٤/٩-٧٣ وتهذيب ابن حجر: ٢٤٢/٣ وحلية الأولياء: ١٠٧/٢ وسير أعلام النبلاء: ٢٥٨/٤ والطبقات ابن سعد: ١٨٢/٢.

[7] تقريب ابن حجر: ٢٩٤/١ رقم: ١٨٩٣ وسير أعلام النبلاء: ٢٥٨/٤.

[8] تهذيب الكمال: ٧٢/٩ وتهذيب ابن حجر: ٢٤٢/٣ الجرح والتعديل: ٤٢٢/٣.

[9] حواله جات بالا. دغه شان شعبي رحمه الله فرمائي: ((كان الربيع أورع أصحاب عبدالله)) سير أعلام النبلاء: ٢٦١/٤.

[10] تهذيب الكمال: ٧٢/٩.

[11] تهذيب ابن حجر: ٢٤٢/٣.

فرمائی: «الامام، القدوة، العابد،..... أحد الأعلام»[1] حضرت شعبی رحمه الله وائی چه حضرت ربیع رحمه الله د بلوغت نه پس کله هم چرته په یومجلس کښې کینه ناستو. فرمائیل به ئې چه زه په دغه مجالسو کښې ځکه نه کینم چه په چا باندې ظلم کونکې اووینم اود هغه نصرت او امداد نه شم کولې یا یو سړې په بل سړی باندې د دروغو الزام اولګوی نو بیا خو به معامله چونکه زما په وړاندې وی په دې وجه به د شهادت د پاره مجبور کولې شم یا د نظر حفاظت اونه کړې شم، یا یو مسافرته لاز اونه خودلې شم، یا د چا نه څه شې پریوځی اوزه هغه اوچتولو سره هغه ته ورنه کړې شم.[2]

حضرت ابووائل رحمه الله فرمائی یوخل مونږ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره سیل دپاره لاړو ربیع هم مونږ سره وو. په تلو تلو کښې مونږ په یولوهار تیریدو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوسپنه په اور کښې سوزیدلو سره اولیدله. ربیع هم هغه اور اولیدلواوچکر خوړلو سره راپریوتلو. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وړاندې تیرشو تردې چه مونږ تول د دریاء فرات په غاړه یوې بهټئی ته اورسیدو کله چه حضرت عبدالله رضي الله عنه په هغه بهټئې کښې دننه اور اولیدلو نودا آیت ئې اولوستلو ﴿إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ۝ وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا ۝ لَّا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا ۝﴾[3]

نوحضرت ربیع رحمه الله بې هوشه شو نومونږ هغه راوچت کړو اودهغه کورته مو اورسولو هغه سحر بې هوشه شوې وو او ګذاره ئې د ماښام نه پس اوشوه.[4] فرمائیل به ئې چه په هریو کار کښې چه دالله تعالی رضا شامل نه وی هغه ختمیږی. «کل ما لایراد به وجه الله یضمحل»[5] د شپې به ئې خوب نه کولو یوخل ورته لور عرض اوکړو پلاره تاسو ولې نه اوده کیږئې؟ وئې فرمائیل چه داسې کس به ولې اوده کیدلو په چا چه دحملې کولوخطره وی؟[6]

دحضرت ربیع رحمه الله د وفات په وخت دهغه لور ژړل نوونې فرمائیل لورې دا ژاړې ولې؟ بلکه داسې وایه چه زما خوش نصیبی چه زما پلار ته خیر ملاؤ شو.[7] د عبیدالله بن زیاد د حکومت په زمانه کښې ۶۴ هجری کښې وفات شوې.[8]

د ائمه سته په نیز د هغوی روایات دی خو امام ابوداؤد د سنن په ځائی ځپل کتاب القدر کښې د هغوی نه روایت اخستې دې،[9] اود حضرت حسن بصری رحمه الله حالات کتاب الایمان باب ﴿وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا ......﴾ لاندې تیر شوی دی.[10]

---

[1] سیر أعلام النبلاء: ٢٥٨/٤ نورفرمائی ((وکان یعد من عقلاء الرجال)).

[2] تهذیب الکمال: ٧٥/٩ وحلیة الأولیاء: ١١٦/٢ والطبقات الکبری لابن سعد: ١٨٣/٦.

[3] سورت الفرقان آیت: ١٤-١٢.

[4] تهذیب الکمال: ٧٥/٩ وحلیة الأولیاء: ١١٠/٢.

[5] تهذیب الکمال: ٧٢/٩ وسیر أعلام النبلاء: ٢٥٩/٤ والطبقات الکبری لابن سعد: ١٨٦/٦.

[6] سیر أعلام النبلاء: ٢٦٠/٤ وحلیة الأولیاء: ١١٥/٢-١١٤.

[7] تهذیب الکمال: ٧٦/٩ وحلیة الأولیاء: ١١٤/٢.

[8] تهذیب الکمال: ٧٦/٩ والطبقات الکبری لابن سعد: ١٩٣/٦ وخلاصة الخزرجی: ١١٥. ابن قانع دهغوی دوفات کال ۶۱ هجری لیکلې دې.

[9] تهذیب الکمال: ٧٦/٩ وخلاصة الخزرجی: ١١٥ وإکمال مغلطائی: ٣٣٣/٤.

**ددواړو اثارو تخریج:** د حضرت ربیع رحمه الله اثر امام طبری رحمه الله په خپل تفسیرکښې ابن وکیع، عن یحیی، عن سفیان، عن منذر په سند سره دحضرت ربیع رحمه الله نه موصولاً نقل کړې دې.[۲] اودحضرت حسن رحمه الله اثر هم طبری رحمه الله د قتاده رحمه الله په طریق سره موصولاً نقل کړې دې. په دې کښې سره ددې چه د حضرت حسن رحمه الله تصریح نشته دې خوبیاهم دحافظ رحمه الله خیال هم دغه دې چه قتاده د حسن نه روایت کوی بیاددې الفاظ هم مختلف دی. والله اعلم.[۳]

**قوله: ﴿أَفَعَيِينَا﴾: أَفَأَعْيَا عَلَيْنَا حِينَ أَنْشَأَكُمْ وَأَنْشَأَ خَلْقَكُمْ:** په دې کښې امام بخاری رحمه الله د یوبل آیت مبارك طرف ته اشاره کړې ده . ارشاد باری تعالی ﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾[۴] د آیت ترجمه داده: ولې مونږ ستړی شو په اول خل جوړولوسره؟هیڅ نه! دوی ته دهوکه‌شوې ده په یو نوی جوړولوکښې. حضرت شبیر احمدعثمانی رحمه الله ددې آیت په تفسیرکښې لیکی: یعنی دوباره د نوی سر نه پیداکولوکښې دوی ته فضول دهوکه لګیدلې ده. چا چه په اول خل پیداکړل په دویم خل پیدا کول څه ګران دی؟ ولې دوی ګمان کوی چه (معاذ الله) هغه په اول خل دنیا جوړولوسره به ستړې شوې وی؟ د هغه قادر مطلق په نسبت داسې داسې توهمات قائم کول سخت جهالت اوګستاخی ده.[۵]

ددې آیت مفهوم چونکه د سابقه آیت موافق د بدء او اعاده حامل دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا دلته ذکر کړې دې. بیا په دې خبره باندې ځان پوهه کړئی چه په قرآن کښې لفظ عیینا راغلې دې عیی (عي) په معنی د عاجزئی نه مشتق دی.[۶] او ﴿بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ﴾ کښې باء سببیه ده یا دعن په معنی کښې ده. په ړومبی صورت کښې به مطلب داسې شی چه مونږ د اول خل تخلیق سره ستړې شوی نه یو چه په دویم خل اعاده اوتخلیق کولونه به عاجز او ستومانه شو. او په دویم صورت کښې به مطلب داشی چونکه مونږ په اول خل تخلیق سره عاجزشوی نه یو په دې وجه په دویم خل اعاده کولو سره به هم نه عاجز کیږو. بل ﴿أَفَعَيِينَا﴾ کښې همزه استفهام انکاری په معنی د نفی دپاره ده. علامه سلیمان الجمل رحمه الله فرمائی:

"الباءسببية أوبمعنى عن، والاستفهام إنكاري بمعنى النفي، قال الكازروني: معناه: لم نعجزعن الابداء، فلان تعجزعن الإعادة، لأن الظاهر أن معنى قوله: ﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ﴾ لم نعجز بسبب الخلق الأول"

دا خو شو د آیت مبارك وضاحت لیکن مؤلف همام رحمه الله دلته یو عبارت بل هم ذکرکړې دې یعنی: (حين أنشأكم وأنشأ خلقكم) نو دا التفات دې په دې کښې دتکلم نه دغیبت طرف ته التفات کړې شوې دې. په ظاهر په دې عبارت کښې امام بخاری رحمه الله د یوبل آیت ﴿هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنْشَأَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ وَإِذْ

---

[۱]) کشف الباری: ۲/۲۲۳-۲۲۰.
[۲]) رواه الطبری فی تفسیره: ۲۱/۲۴.
[۳]) فتح الباری: ۶/۲۸۷وعمدة القاری: ۱۵/۱۰۷وتغلیق التعلیق: ۳/۴۸۶.
[۴]) سورت ق آیت:۱۵.
[۵]) تفسیر عثمانی سورت ق:۶۸۹
[۶]) فتح الباري: ۶/۲۸۷والقاموس الوحید، مادة:عيي

﴿أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ﴾ (۱) او ددې د تفسير طرف ته اشاره کړې ده. چنانچه امام بخارى رحمه الله دلته دوه كارونه كړي دى. اول خو دا چه عبارت «حين أنشأكم» په ذريعه د مذكوره بالا آيت طرف ته ئى اشاره اوكړه او عبارت «أنشأ خلقكم» سره ئى د دې تفسير واضح كړو چه د أنشأكم نه مراد أنشأ خلقكم دې (۲)

**يو سوال او د هغې دوه جوابونه:** خو دلته سوال دا پيدا كيږى چه په آيت مبارك كښې ﴿إِذْ أَنشَأَكُم﴾ دې ليكن مصنف رحمه الله چه كوم عبارت ذكر كړې دې په هغې كښې «حين أنشأكم» دې دا فرق ولې دې؟

د دې سوال علامه كرمانى رحمه الله دوه جوابونه وركړى دى. ① امام بخارى رحمه الله عبارت بالمعنى ذكر كړې دې او چونكه د حين او اذ دواړو معنى يو ده په دې وجه د إذ په ځائې د حين لفظ اوليكلو ② إذ محذوف في اللفظ دې. چونكه د حين په ذريعه په دې باندې دلالت كيدلو په دې وجه إذ حذف كړې شو او د مفسر د پاره مفسر باندې اكتفاء اوكړه. (۳)

امام بخارى رحمه الله د آيت مبارك ﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ﴾ چه كوم تفسير دلته اختيار كړې دې دا د حضرت مجاهد رحمه الله نه هم مروى دې كوم چه طبرى رحمه الله موصولاً روايت كړې دې فرمائى: «أفأعيى علينا حين أنشأناكم خلقا جديدا فتمتروا بالبعث؟» (۴)

**قوله: ﴿لُغُوبٌ﴾: النَّصَبُ:** دلته د يو بل آيت مبارك طرف ته اشاره كيږى. د الله تعالى ارشاد دې: ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ﴾ (۵) او د لغوب وضاحت كولې شى.

**د آيت مبارك شان نزول:** د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه روايت دې چه يهوديان نبى اكرم صلى الله عليه وسلم له راغله وئى وئيل اې محمد (صلى الله عليه وسلم) په دې شپږو ورځو كښې الله تعالى كوم كوم څيزونه پيدا كړى دى؟ حضور پاك اوفرمائيل الله تعالى د اتوار او پير په ورځ زمكې، د نهې په ورځ غرونه، چارشنبې په ورځ ښارونه، خوراكونه، آبادئى او بيابانونه د زيارت په ورځ آسمانونه او فرښتې پيدا كړې او د جمعې په دريو ساعاتو كښې درې څيزونه تخليق كړل، په اول ساعت كښې مرګونه، دويم كښې آفتونه مصيبتونه او په دريمه ګهړئى كښې حضرت آدم عليه السلام پيدا كړو. يهودو اووئيل كه چرې تاسو خبره پوره كړې وه نو ربښتونې به وې. حضور پاك د هغوى په مقصد باندې پوهه شو نو ډير زيات خفه شو. د هغې نه پس الله تعالى دا آيت نازل كړو چه مونږ خو هيڅ ستړې شوى نه يو تاسو د دوى په فضولياتو باندې صبر اوكړئى...... (۶)

---

(۱) سورت النجم آيت: ۳۲.

(۲) عمدة القارى: ۱۵/۱۰۷ وشرح الكرمانى: ۱۳/۱۵۰ وفتح البارى: ۶/۲۸۸-۲۸۷.

(۳) عمدة القارى: ۱۵/۱۰۷ وشرح الكرمانى: ۱۳/۱۵۰.

(۴) تفسير الطبرى: ۱۱/۲۶،۹۸ سورة ق. وفتح البارى: ۶/۲۸۸ وتعليقات اللامع: ۷/۳۳۲ والكنز المتوارى: ۱۲/۱۱۸ وعمدة القارى: ۱۵/۱۰۷.

(۵) سورت ق: آيت: ۳۸.

(۶) جامع البيان (طبرى): ۱۱/۱۱،۲۶.

**د يهوديانو مقصد:** دهغوى مقصد څه وو؟ دهغې دپاره د قتاده رحمه الله دا روايت اولولئ: «قالت اليهود: إن الله خلق السماوات والأرض فى ستة أيام، ففرغ من الخلق يوم الجمعة، واستراح يوم السبت؟ فأكذبهم الله، وقال: ﴿وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ﴾» [١]

يعنى يهوديانو اوونيل چه الله تعالى زمكې او آسمانونه په شپږو ورځو كښې پيدا كړل، د جمعه په ورځ د تخليق نه فارغ شو اود هفتې په ورځ ئې آرام اوكړو.... نوالله تعالى هغوى دروغژن اوګرځول او وئې فرمائيل چه مونږ ته د هيڅ قسم ستړيوالې نه دې شوې چه د آرام ضرورت پيښ شى.

هم د حضرت قتاده رحمه الله په يوروايت كښې راغلى دى چه يهود د هفتې ورځ ته يوم الراحة يعنى دآرام ورځ وئيله. «يسمونه يوم الراحة» [٢]

**د آيت مبارك ترجمه سره مناسبت:** په دې آيت مبارك كښې چونكه دتخليق كائنات ذكر دې په دې وجه دا دلته ذكر كړې شوې دې چه كوم ذات په تخليق اول باندې قادر وى هغه به لازماً اويقيناً په اعاده باندې هم قدرت لرى. اوچه كله حقيقى ذات ته په اول خل تخليق كولوسره دڅه قسم ستومانتيااو ستړيوالې اوپريشانى نه وه شوې په دې وجه په اعاده كښې به هم د څه قسم مشكل نه وى. «لأن الإعادة أهون من الابداء عادة».

چنانچه حافظ ابن كثير رحمه الله ددې آيت مبارك لاندې ليكى: «فيه تقرير للمعاد، لأن من قدر على خلق السماوات والأرض، ولم يعى بخلقهن قادر على أن يحيى الموتى بطريق الأولى والأحرى» [٣]

**د لغوب معنى:** امام بخارى دلغوب معنى نَصب بيان كړې ده اونصب، وزناً اومعنى دتعب په شان دى يعنى ددې دواړو وزن هم يو دې اومعنى ئې هم يوه. علامه زمخشرى د لغوب معنى "الإعياء" بيان كړې ده. هم دا ابن جرير طبرى هم اختيار كړې ده [٤] خوبياهم په دواړومعانى كښې څه خاص تعارض نشته. الإعياء معنى عاجزى ده اود النصب معنى ستړيوالې، مګر مصنف رحمه الله النصب اختيار كړې دې.

**دمذكوره تعليق تخريج:** امام بخارى رحمه الله چه دا للغوب كوم تفسير النصب سره كړې دې هغه د مجاهد رحمه الله د اختيار كړې شوى تفسيرنه ماخوذ دې. كوم چه ابن ابى حاتم رحمه الله په خپل تفسير كښې موصولاً نقل كړې دې. [٥]

**قوله: ﴿وَأَطْوَارًا﴾: طَوْرًا كَذَا وَطَوْرًا كَذَا:** په دې عبارت كښې امام بخارى رحمه الله د يو بل آيت مبارك ﴿وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا﴾ [٦] د لفظ أطوارا تفسير ئې ذكر كړې دې. دا لفظ د طور جمع ده د هيئت اوحالت په معنى كښې دې. اوس د اطوار معنى شوه احوال مختلفه.

---

[١] جامع البيان فى تفسير القرآن: ١١١،٢٦/١١ وفتح البارى: ٢٨٨/٦.
[٢] حواله جالات بالا.
[٣] تفسير ابن كثير الدمشقى: ٦٨٢/٥ سورة ق، والكنز المتوارى: ١١٨/١٣.
[٤] جامع البيان الطبرى: ١١٦، ٢٦/١١ وفتح البارى: ٢٨٨/٦ وعمدة القارى: ١٠٨/١٥ وشرح الكرمانى: ١٥١/١٣ والكشاف عن حقائق غوامض التنزيل: ٣٩٢/٤.
[٥] جامع البيان للطبرى: ١١٦، ٢٦/١١ وفتح البارى: ٢٨٨/٦ عمدة القارى: ١٠٨/١٥ وتفسير مجاهد: ٦١٥/١ سورة ق.
[٦] سورة نوح آيت: ١٤.

حضرات مفسرينو د اطوار ډير مطلوبونه بيان کړی دی: ① د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې معنی دا نقل ده چه د انساناتو مختلف حالات دی کله صحت دې نوکله بيماری.[2]

② د انساناتو مختلف قسم رنګ، څوك سپين، اوڅوك تور وغيره، دغه شان د انساناتو مختلف خبرې د چا ژبه عربی ده نود چا اردو ده وغيره.[3]

③ اکثر مفسرين حضرات لکه عکرمه قتاده يحيی سدی رحمهم الله اوپه يوروايت کښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې په تفسير کښې دا نقل دی چه الله تعالی تاسو اول د نطفه، بيا علقه او بيامضغه نه پيدا کړنی.[4]

④ ابن الاثير جزری رحمه الله ددې په تفسير کښې فرمائيلی دی چه مراد دادې انسان کله د ترقئی منازل سرکوی نوکله ښکته راپريوځی، کله په پريشانوکښې وی نوکله په نعمت اوخوشحالوکښې وی.[5]

**ترجمة الباب سره د آيت مناسبت:** ددې آيت مضمون هم هغه دې کوم چه د ترجمة الباب د مقصد وو چه په دې کښې هم د الله تعالی د قدرت قاهره شامله عامه اثبات وو چه کوم ذات انسان په مختلف مدارج کښې پيداکولې شی دهغې نه پس د هغه پالنه کولې شي نود مرګ نه پس هم هغه راپيدا کولې شي. علامه آلوسی رحمه الله ددې آيت لاندې فرمائی: «﴿وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا۝﴾ أي: **والحال أنكم على حال منافية لما أنتم عليه بالكلية، وهو: أنكم تعلمون أنه عزوجل خلقكم مدرجا لكم في حالات عناصر، ثم أغذية، ثم أخلاطا، ثم نطفا، ثم علقا، ثم مضغا، ثم عظاما ولحوما، ثم خلقا آخر، فإن التقصير في توقير من هذا شأنه في القدرة القاهرة والإحسان التام، مع العلم بذلك، مما لا يكاد يصدر عن العاقل.........**»[6]

**قوله: عَدَا طَوْرَهُ: أَيْ قَدْرَهُ:** دعدا طوره معنی ده چه هغه د خپل حد اومرتبې نه تجاوز اوکړو. امام بخاری رحمه الله په دې جمله کښې د لفظ طور يوه بله معنی بيان کړې ده. دراصل د طور ډيرې معانی دی مثلاً: ① کله ② حد ③ هغه شئ چه د څه شئ مقابل وی ④ هيئت اوحالت وغيره.[7]

**دا لفظ په دې معنی کښې چرته راغلې دې؟:** غالباً ددې لفظ د ذکر اوددې دمعنی د بيان باره کښې امام بخاری رحمه الله د يو حديث طرف ته اشاره کړې ده چرته چه دا لفظ طور د قدر اوحد په معنی کښې استعمال شوې دې. په حديث نبيذ کښې راغلی دی: «**تعدي طوره**»[8] والله اعلم.

---

[1] القاموس الوحيد مادة: طوروفتح الباری: ۲۸۸/۶وعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵قال الجزری فی النهاية: ۱۲۸/۳الأطوار: الحالات المختلفة، والتارات والحدود، واحدها طور.

[2] فتح الباری: ۲۸۸/۶وعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵.

[3] فتح الباری: ۲۸۸/۶وعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵.

[4] تفسير القرآن العظيم لابن كثير: ۳۱۵/۶ سورة نوح، وفتح الباری: ۲۸۸/۶ وعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵والكشاف للزمخشری: ۶۱۸/٤

[5] النهاية فی غريب الحديث والأثر: ۱۲۸/۳ باب الطاء مع الواو، مادة: طور، وعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵وتعليقات اللامع = ۳۳۳/۷والكنز المتواری: ۱۱۹/۱۳-۱۱۸.

[6] روح المعانی: ۸۲/۱۵سورة نوح.

[7] القاموس الوحيدمادة: طوروعمدة القاری: ۱۰۸/۱۵.

[8] په دې وجه ئې ضمناً ددې هم ذکرکړې دې چه دا لفظ په يو بله معنی کښې هم مستعمل دې.

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى: «واعلم أن عادة البخاري إذا ذكر آية أو حديثا في الترجمة ونحوها يذكر أيضا بالتبعية على سبيل الاستطراد ماله أدنى ملابسة، تكثيرا للفائدة»[1]

**دحضرت مولانا ګنګوهي رحمه الله رائې:** حضرت ګنګوهى رحمه الله دا جمله دلته د ذكركولو وجه دا خودلې ده چه طور په اصل كښې مطلقًا قدر «حد» دپاره موضوع دې ليكن روستو دا د خپلې معنى موضوع له نه تجاوزاوكړو او په نورو معانو كښې هم استعماليدل شروع شو. هم دغه خودلو دپاره مصنف رحمه الله دا عبارت دلته ذكركړې دې. لامع الدرارى كښې دى: «قوله: (طوره أي قدره) يعني بذلك أنه في الأصل للقدر، ثم صار معناه قدرا من الزمان أو غيره»[2]

دې نه پس دا اوګنړئى چه امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې څلور احاديث ذكر كړى دى.

په كوم كښې چه اولنې حديث دحضرت عمران بن حصين رضي الله عنه دې.

## الحديث الاول

[٣٠١٨/٣٠١٩] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: جَاءَ نَفَرٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «يَا بَنِي تَمِيمٍ أَبْشِرُوا» قَالُوا: بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا، فَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ، فَجَاءَهُ أَهْلُ اليَمَنِ، فَقَالَ: «يَا أَهْلَ اليَمَنِ، اقْبَلُوا البُشْرَى إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ»، قَالُوا: قَبِلْنَا، فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ بَدْءَ الخَلْقِ وَالعَرْشِ، فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا عِمْرَانُ رَاحِلَتُكَ تَفَلَّتَتْ، لَيْتَنِي لَمْ أَقُمْ[3]

## تراجم رجال

**محمد بن كثير:** دامحمدبن كثير عبدى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب الغضب في الموعظة والتعليم...... لاندې تيره شوې ده.[4]

**سفيان:** دامشهورامام محدث سفيان بن ثورى رحمه الله دې. ددوى حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې بيان كړې شوى دى.[5]

**جامع بن شداد:** دا ابوصخر جامع بن شداد رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات كتاب العلم باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم په ذيل كښې تيرشوى دى.[6]

---

[1]) شرح الكرماني: ١٥١/١٣.

[2]) لامع الدرارى: ٣٣٢/٧ والأبواب والتراجيم: ٢١٠/١ والكنز المتوارى: ١١٨/١٣ نو اوګورئى كشف البارى كتاب التفسير: ٦٩٧

[3]) قوله: عن عمر ان بن حصين رضى الله عنهما: الحديث، أخرجه البخاري في نفس هذا الباب رقم الحديث ٣١٩١ وأيضاً كتاب المغازى باب وفد بنى تميم، رقم: ٤٣٦٥ وباب قدوم الأشعريين رقم: ٤٣٨٦ وكتاب التوحيد باب ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ رقم الحديث: ٧٤١٨ والترمذى أبواب المناقب، باب فى ثقيف وبنى حنيفة رقم: ٣٩٥١.

[4]) كشف البارى: ٥٣٦/٣

[5]) اوګورئى كشف البارى: ٢٧٨/٢.

[6]) كشف البارى: ١٦١/٤.

**صفوان بن محرز**: دا صفوان بن محرز بن زياد المازنى بصرى رحمه الله دې.[١]

**عمران بن حصين ﷺ**: دامشهور صحابى حضرت عمران بن حصين بن عبيد خزاعى رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب التيمم باب الصعيد الطيب وضوء المسلم..... لاندې تيرشوى دى.[٢]

**قوله:: قال: جاء نفر من بنى تميم إلى النبى صلى الله عليه وسلم**: حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه فرمائى چه د بنوتميم څه خلق د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضرشو.

**دَ بنوتميم دَ وفد راتګ**: دا سنة الوفود، يعنى د ۹هجرى واقعه ده. په دې كال د بنوتميم وفد د نبى عليه السلام په خدمت كښې حاضريدو سره فيضياب شوى وو.[٣] ابن اسحاق رحمه الله ليكلى دى چه په وفد كښې د بنو تميم دا اشراف خلق حاضرشوې وو: عطارد بن حاجب دارمى، اقرع بن حابس فلوكمى، زبرقان بن بدر سعدى، عمرو بن الاهتم منقرى، حباب بن يزيد مجاشعى، نعيم بن يزيدبن قيس، عيينه بن حصين او قيس بن عام منقرى رضي الله عنهم.[٤]

**قوله:: فقال: يابنى تميم، أبشروا**: نبى كريم ﷺ هغوى ته اوفرمائيل اې بنو تميم زيرې قبول كړئى. أبشروا: همزه قطعيه سره د بشارة نه صيغه د امر ده.[٥]

**د بشارت نه څه مراددې؟**: د نبى كريم د بشارت نه مراد دادې چه رسول الله ﷺ هغوى ته د دين د اصولو تلقين اوكړو په كوم باندې چه عمل كولوسره هغوى د جنت حقدار كيدې شى. مثلاً مبدا او معاد باندې يقين، بل د دين پوهه اوپه هغې باندې عمل وغيره.[٦]

**قوله:: قالوا: بشرتنا فأعطنا.......**: هغوى اووئيل چه تاسو بشارت راكړې دې نو اوس څه مال وغيره هم راكړه. ابن جوزى رحمه الله ليكلى دې چه دا جمله ويونكې حضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه وو په هغه كښې كلى وال خويونه څه زيات وو.[٧]

**قوله:: فتغيروجهه**: چنانچه د رسول الله ﷺ مخ مبارك متغير شو.

**دمخ مبارک متغير كيدووجه**: شراح حضراتو د مخ مبارك متغيركيدو دوه وجوهات ليكلى دى: ① د افسوس د وجې نه چه زه خودوى ته د آخرت د كاميابئ چل وربښايم اودوى د دنيا د طلب په فكر كښې لګيدلى دى. ② يا هغه وخت چونكه نبى پاك عليه السلام سره څه نه وو په كوم سره چه حضورپاك دهغوى د زړه تسلى كړې وې په دې وجه په مخ مبارك باندې د افسوس آثار ښكاره شو. ددې نه يوه

---

١) ددوى دَ حالاتودَپاره اوګورئى كتاب المظالم......، باب قوله تعالى: ﴿أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾.
٢) كشف البارى كتاب التيمم: ٤١٠.
٣) عمدة القارى: ١٠٨/١٥.
٤) فتح البارى: ٨٣/٨كتاب المغازى والسيرة النبوية: ٥٦٢/٤-٥٦٠قدوم وفد بنى تميم......
٥) فتح البارى: ٨٣/٨عمدة القارى: ١٠٨/١٥وشرح الكرمانى: ١٥١/١٣.
٦) حواله جات بالا.
٧) فتح البارى: ٨٣/٨عمدة القارى: ١٠٨/١٥.

وجه هم كيدې شي اودواړه هم. حافظ رحمه الله فرمائي: «إما للأسف عليهم كيف آثروا الدنيا؟ وإما لكونه لم يحضره ما يعطيهم، فيتألفهم به، أولكل منهما» [1].

حافظ رحمه الله كتاب التوحيد كښې ددې روايت ټول طرق جمع كولونه پس كوم څه چه د متقدمين شراح نه نقل كړې دى د هغې نه رومبې وجه راجح معلوميږى هغوى فرمائي: «وسبب غضبه صلى الله عليه وسلم استشعاره بقلة علمهم، لكونهم علقوا آمالهم بعاجل الدنيا الفانية، وقدموا ذلك على التفقه في الدين الذي يحصل لهم ثواب الآخرة الباقية» [2].

**قوله:: فجاءه أهل اليمن:** بيا حضورپاك له اهل يمن راغلل.

**د اهل اليمن نه څوک مراددى؟**: بعض شراح رحمهم الله د اهل يمن نه مراد دلته اشعريين اخستې دى. علامه عينى رحمه الله فرمائي: «هم الأشعريون، قوم أبى موسى الأشعري» [3] اوحافظ صاحب رحمه الله فرمائي په ظاهره هم دغه صحيح معلوميږى چه اشعريين مراد دى. ليكن روستو دغور اوفكرنه پس دا واضحه شوه چه داهل يمن نه مراد دلته اشعريين نه دى بلكه حضرت نافع بن حمير رضي الله عنه په مشرئي كښې، د قبيله حميرچه كوم وفد راغلې وو هغه مراددې.

ددې امر نور تفصيل دادې چه امام بخارى رحمه الله په كتاب المغازى كښې يوباب قائم كړې دې: «باب قدوم الأشعريين وأهل اليمن» [4] په ظاهره خوددې عبارت نه دا متبادركيږى چه عطف العام على الخاص د قبيل نه دې چه اشعريين ئې اول ذكركړى دى بيائې اهل يمن ذكركړى دى حالانكه اشعريين په اهل يمن كښې د اول نه داخل وو. ليكن دا عطف العام على الخاص د قبيل نه نه دى بلكه د اهل يمن نه مراد وفدحمير دې، اشعريين نه دى، دغه شان دا جدا جدا وفود شو. د ابن شاهين رحمه الله كتاب الصحابة كښې اياس بن عمير حميرى په واسطه سره دا روايت نقل دې: «قدموافدا على رسول الله صلى الله عليه وسلم في نفرمن حمير، فقالوا: أتيناك لنتفقه في الدين» [5] چه هغه د قبيله حمير يوجماعت سره د وفد په صورت كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو اود راتلو غرض ئې دا بيان كړو چه مونږ تاسوله د دين تفقه (پوهه) حاصلولودپاره راغلي يو.

**دَ اول احتمال دَغير راجح كيدو وجه**: علامه عينى رحمه الله وغيره چه كوم احتمال ذكركړو چه داهل يمن نه اشعريين مراد دى، نوددې غير راجح كيدو او صحيح نه كيدو وجه داده چه كه چرې اشعريين په حديث باب كښې اهل يمن اوګرځولې شي نودا په تاريخى اعتبارسره هم صحيح نه دى. هغه داسې چه د ابوموسى اشعرى رضي الله عنه حاضرى د رسول الله صلى الله عليه وسلم په درباركښې ٧هجرى كښې شوې وه. [6] خو په حديث باب كښې ذكركړې شوې واقعه سنة الوفود ٩هجرى ده. كمامرآنفا. اوهغه دحمير وفدهم

---

[1] فتح البارى: ٨٣/٨عمدة القارى: ١٠٨/١٥شرح القسطلانى: ٢٤٨/٥.

[2] فتح البارى: ٤٠٩/١٣تحت رقم: ٧٤١٨.

[3] عمدة القارى: ١٠٨/١٥شرح القسطلانى: ٢٤٨/٥.

[4] صحيح بخارى: ٢٧٩/٢قديمى.

[5] فتح البارى كتاب المغازى: ٩٧/٨.

[6] دَ حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه دَ هجرت دَ واقعې دپاره اوګورئى كشف البارى كتاب الجزيه: ٢٤٨.

۹هجرى كښې راغلې وو. **كما صرح به ابن سعد في طبقاته.**[1] هم دغه وجه وه چه بنوتميم اوبنوحمير اجتماع اوشوه او په حديث باب كښې ذكركړې شوې واقعه پيښه شوه چه دبنوتميم د رسول الله ﷺ د پيشكش په بدله كښې د مال غوښتنه ښكاره كړه اوبنوحمير كوم چه د يمن نه وو هغوى دا بشارت قبول كړو.[2]

**قوله: فقال: يا أهل اليمن، اقبلوا البشرى، إذ لم يقبلها بنو تميم، قالوا: قبلنا:** نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل اې د يمن والو زيرې قبول كړئى ځكه چه بنوتميم خودا قبول كړې نه دې. حميرى قبيلې اووئيل مونږ ستاسو زيرې قبول كړو. قاضى عياض رحمه الله فرمائيلى دى چه د اصيلى په نسخه كښې البشرى په ځائې باندې اليسرى دې د كوم معنى چه آسانى ده. خو صحيح هم هغه اولنې دې. «والصواب الأول».[3] إذ كلمه ظرفيه ده اودلته دحين په معنى كښې استعمال شوې دې.[4] او په يو روايت كښې د إذ په ځائې أن دې. يعنى أن لم يقبلها مطلب دادې چه هغوى خو بشارت قبول نه كړو په دې وجه ئې هم تاسو قبول كړئى.[5]

**قوله: فأخذ النبي صلى الله عليه وسلم يحدث بدء الخلق والعرش:** چنانچه نبى كريم ﷺ د مخلوقاتو ابتداء اودعرش باره كښې خبرې كولې. دلته تقديرى عبارت داسې دې. «**يحدث عن بدء الخلق وعن حال العرش**» چه د مخلوقاتو ابتداء او دعرش په احوالو باندې ئې خبرې كولې لكه چه **يحدث** د **يذكر** په معنى كښې دې.[6]

**رسول الله ﷺ هم دغه موضوع ولې خوښه كړه؟:** نبى كريم ﷺ دلته بدء الخلق اود عرش د ابتداء كيفيت او حالات دخپلو خبرو موضوع جوړه كړې ده. غالبًا ددې وجه داده چه اهل يمن زمونږ ددې موجوده كائنات باره كښې استفسار كړې وو. دحافظ رحمه الله په قول دا احتمال زيات واضحه او ظاهر دې. په دې صورت كښې د سياق مقتضا داده چه نبى كريم ﷺ هغوى ته اوخودل چه زمونږ په دې كائنات كښې كوم ځيز د ټولو نه اول په وجود كښې راغلې دې هغه زمكه او آسمان دې. دويم احتمال دادې چه د اهل يمن پوښتنه كول په جنس مخلوقات كښې چه دټولو نه اول كوم ځيز په وجود كښې راغلې باره كښې وو. په دې صورت كښې به مقتضاء د سياق دا شى چه د زمكې او آسمان نه وړاندې

---

[1] قال الإمام ابن سعد رحمه الله (انظر الطبقات الكبرى: ۳۵۶/۱ ذكر وفادات العرب.....): قدم على رسول الله صلى الله عليه وسلم مالك بن مرارة الرهاوى رسول ملوك حمير بكتابهم وإسلامهم، وذلك فى شهر رمضان سنة تسع فأمر بلالا أن ينزله، ويكرمه، ويضيفه، كتب رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى الحارث بن عبد كلال وإلى نعيم بن عبد كلال وإلى النعمان قيل ذى رعين ومعافر وهمدان: أما بعد ذلك، فإنى أحمد الله الذى لا إله إلا هو، أما بعد، فإنه قد وفد بنا رسولكم مقفلنا من أرض الروم، فبلغ ما أرسلتم، وخبر عما قبلكم، وأنبأنا بإسلامكم، وقتلكم مشركين فإن الله تبارك وتعالى قد هداكم بهداه إن أصلحتم، وأطعتم الله ورسوله وأقمتم الصلاة وأتيتم الزكوة وأعطيتم من المغنم خمس الله نبيه وصفيه، وما كتب على المؤمنين من الصدقة.

[2] فتح البارى: ۹۷/۸ كتاب المغازى رقم: ۴۳۸۴ و ۲۸۸/۶.

[3] فتح البارى: ۲۸۸/۶ عمدة القارى: ۱۰۸/۱۵.

[4] عمدة القارى: ۱۰۸/۱۵.

[5] فتح البارى: ۲۸۸/۶.

[6] حواله بالا. وقال القسطلانى: ((يحدث بدء الخلق)): نصب بنزع الخافض. إرشاد السارى: ۲۴۸/۵.

عرش او ماء (اوبو) تخليق شوې وو. چنانچه داد نافع بن زيد حميرى رضي الله عنه په قصه كښې دا الفاظ ذكر دى: «نسألك عن أول هذا الأمر»[1]

**قوله: فجاء رجل، فقال: يا عمران، راحلتك تفلتت، ليتني لم أقم:** هم دغه دوران كښې يو سړي راغلو او وئې وئيل عمرانه! ستا سورلى ورانه شوه. افسوس چه زه د نبى عليه السلام د مجلس نه (سورلئى پسې) نه وې پاسيدلې. دلته د رجل نه څوك مراد دې؟ د دې تعيين اونه كړې شو.[2]

**تفلتت:** صيغه د ماضى واحد مؤنث غائب ده. ضمير دمستتر راحلة طرف ته راجع دې. د دې معنى ده د قبضې نه وتل، شراح د دې معنى تشردت سره كړې ده. يعنى ستا اوښه ستاد قبضې نه اووتله او اوتختيدله. راحلتك كښې دوه اعراب دى مرفوع يا منصوب. مرفوع خود مبتداء كيدو په وجه دې او د نصب وجه فعل محذوف دې. يعنى ادرك، په دې صورت كښې د تفلتت جمله حال واقع كيږى. د دې نه علاوه ابن عساكر او ابوالوقت په نسخو كښې «إن راحلتك» دې. دلته خو نصب واضح دې.

**قوله: ليتني لم أقم:** دا د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه مقوله ده. په دې كښې هغه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د مجلس مبارك نه د پاسيدو او د يوې اوښې په لټون كښې په تللو باندې د افسوس اظهار كړې دې چه كاش زه د هغه ځائى نه نه وې پاسيدلې. د هغې د وجې نه چه ما كوم كلام د نبى عليه السلام نه اوريدلې شو د هغې نه محروم شوم افسوس چه ما داسې نه وې كړې.[3]

د دې جملې نه د هغه حرص على العلم معلوميږى چه هغوى رضي الله عنه د علم څومره حريص او طالب وو.[4]

## الحديث الثاني

[۳۰۱۹] - حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ شَدَّادٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَقَلْتُ نَاقَتِي بِالْبَابِ، فَأَتَاهُ نَاسٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ فَقَالَ: «اقْبَلُوا البُشْرَى يَا بَنِي تَمِيمٍ»، قَالُوا: قَدْ بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا، مَرَّتَيْنِ، ثُمَّ دَخَلَ عَلَيْهِ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ اليَمَنِ، فَقَالَ: «اقْبَلُوا البُشْرَى يَا أَهْلَ اليَمَنِ، إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ»، قَالُوا: قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالُوا: جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ [ص: ۱۰۶] عَنْ هَذَا الأَمْرِ؟ قَالَ: «كَانَ اللَّهُ وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ غَيْرُهُ، وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى المَاءِ، وَكَتَبَ فِي الذِّكْرِ كُلَّ شَيْءٍ، وَخَلَقَ السَّمَوَاتِ

---

[1] فتح الباري: ۲۸۸/۶.

[2] إرشادالساري: ۲۴۹/۵.

[3] حواله بالا. وعمدة القاري: ۱۰۸/۱۵ وشرح كرماني: ۱۵۱/۱۳.

[4] وقال الحافظ في الفتح: ۲۹۰/۶: وفيه ما كان (عمران) عليه من الحرص على تحصيل العلم وقد كنت كثير التطلب لتحصيل ما ظن عمران أنه فاته من هذه القصة، إلى أن وقفت على قصة نافع بن زيد الحميرى، فقوى فى ظنى أنه لم يفته شىء من هذه القصة بخصوصها، لخلو قصة نافع بن زيد عن قدر زائد على حديث عمران، إلا أن فى آخره بعد قوله: وما فيهن، واستوى على عرشه عزوجل.

وَالأَرْضَ»، فَنَادِي مُنَادٍ: ذَهَبَتْ نَاقَتُكَ يَا ابْنَ الحُصَيْنِ، فَانْطَلَقْتُ، فَإِذَا هِيَ يَقْطَعُ دُونَهَا السَّرَابُ، فَوَاللَّهِ لَوَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ تَرَكْتُهَا، [٤١٠٧، ٤١٢٥، ٦٩٨٢] (١)

## تراجم رجال

**عمر بن حفص بن غياث**: دا شيخ بخاري عمر بن حفص بن غياث نخعي كوفي رحمه الله دي.

**ابى**: اب نه مراد حفص بن غياث بن طلق نخعي كوفي رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو حالات كتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فى الجنابة كښې تيرشوى دى. (٢)

**الاعمش**: دامشهورمحدث ابومحمدسليمان بن مهران اسدى الاعمش دي. ددوى حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيرشوى دى(٣) دسند د نورو رواتو دپاره دباب سابقه حديث اوګورئ.

**قوله:: قـال: دخلت على النبي صلى الله عليه وسلم، وعقلت ناقتي بالباب، فأتاه ناس من بني تميم، فقـال: اقبلوا البشرى يابني تميم. قـالوا: قد بشرتنا فأعطنـا (مـرتين)**:
حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه فرمائي چه زه نبى كريم ﷺ كره داخل شوم او خپله اوښه مې په دروازه كښې اوتړله. چنانچه حضورپاك له د بنوتميم څه خلق راغلل نوحضورپاك هغوى ته اوفرمائيل بشارت قبول كړئ. هغوى اووئيل تاسو مونږ ته بشارت راكړو ليكن مونږ ته مال راكړئ (هغوى دا د مال د غوښتلو خبره دوه ځل اوكړه). دادحديث عمران رضي الله عنه دويم طرق دې. په كوم كښې چه د سابقه طريق په نسبت څه زياتې فائدې دي.

**قوله:: قـالوا: جئنـاك نسألك عن هذا الأمر**: اهل يمن وئيل مونږ ددې معاملې په بابت تاسو نه د پوښتنې دپاره راغلي يو. دلته په روايت كښې «جئنـاك نسـألك» راغلې دې. خو د كتاب التوحيد په روايت كښې عبارت داسې دې: «جئناك لنتفقه فى الدين، ولنسألك عن هذا الأمر» (٤)

**د هذاالامر نه څه مراد دې؟**: د الامر نه مراد دلته موجوده كائنات دي كوم چه مشاهد او ښكارى. بعض وخت د امر نه مراد مامور وى. غالباً هغوى د دغه كائنات باره كښې تپوس كړې وو. تفصيل په تيرشوى حديث كښې راغلې دې. (٥)

**قوله:: قـال: كـان الله، ولم يكـن شيء غيره**: رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالى په ازل كښې منفرد وودهغه نه علاوه بل هيڅ څيز نه وو. د حديث بـاب الفاظ ستاسو په وړاندې دى او په كتاب التوحيد كښې «ولم يكن شيء قبله» وارد شوې دې. (٦)

---

(١) قوله: أنه حدثه عمران..... الحديث، مرتخريجه آنفا فى الحديث السابق.
(٢) كشف البارى كتاب الغسل: ٤٦٧-٤٦٤.
(٣) اوګورئ: كشف البارى: ٢٥١/٢.
(٤) صحيح البخارى كتاب التوحيد باب (وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى المَاءِ) رقم: ٧٤١٨.
(٥) فتح البارى: ٢٨٨/٦ وعمدة القارى: ١٥/١٠٩ إرشادالسارى: ٢٤٩/٥.
(٦) صحيح البخاري كتاب التوحيد باب (وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى المَاءِ) رقم: ٧٤١٨.

دې نه علاوه ددې روايت يو طريق كښې «ولم يكن شيء معه»(١) الفاظ دي. قصه چونكه هم يوه ده په دې وجه به دا منلې كيږي چه دا روايت بالمعنى وارد شوې دې. د دې ټولو طرق مفهوم تقريبا متحد دې خو روايت باب په عدم كښې زيات صريح دې.(٢)

دې نه علاوه د باب په روايت كښې په دې خبره باندې دلالت دې چه د الله تعالى نه علاوه بل هيڅ شي نه وو نه اوبه اونه عرش اونه ددې دواړونه علاوه بل څه څيز «لأن كل ذلك غير الله تعالى» په دې صورت كښې راتلونكې جملې ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ معنى به دا شي چه خالق لم يزل اول اوبه پيدا كړې بيانې په دغه اوبو باندې عرش پيدا كړو. دې نه پس څه ترتيب وو؟ نو په دې سلسله كښې د حضرت نافع بن زيد حميرى رضي الله عنه په قصه كښې الفاظ څه داسې دى:

«وكان عرشه على الماء، ثم خلق القلم، فقال: اكتب ما هو كائن، ثم خلق السموات والأرض، وما فيهن».

او د هغه عرش په اوبو باندې وو بيا هغه قلم پيدا كړو او ورته فرمائيل چه راتلونكې وخت كښې څه كيدونكې دى هغه اوليكه. بيا ئې آسمانونه او زمكه او څه چه په هغې كښې دى پيدا كړل. په دې روايت كښې د اوبو او د عرش د تخليق نه پس د نورو مخلوقاتو د پيدا كولو ترتيب بيان كړې شوې دې.(٣)

## قوله: وكان عرشه على الماء، وكتب في الذكر كل شيء، وخلق السموات والأرض:

او د الله تعالى عرش په اوبو باندې قائم وو او هغه هر يو څيز (محل) په ذكر كښې اوليكلو او آسمانونه او زمكې ئې پيدا كړې. په حديث كښې د ذكر نه مراد محل ذكر يعنى لوح محفوظ دې په كوم كښې چه د مخلوقاتو احوال ليكلې شوى دى.(٤)

**د رواياتو اختلاف او راجح قول:** بيا داسې اوګڼرنى چه دلته د الله تعالى د دريو مخلوقاتو ذكر راغلې دې. عرش، لوح محفوظ او آسمانونو او زمكو، دريواړه په واؤ عاطفه سره ذكر كړې شوى دى. خو د كتاب التوحيد په روايت كښې «ثم خلق السماوات والأرض»(٥) لفظ ثم سره دې كوم چه دال على الترتيب دې. مطلب دا چه د عرش اوبو وغيره تخليق اول شوې وو بيا آسمانونه اوزمكې پيدا كړې. ددې مفهوم تائيد د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما د مسلم شريف حديث نه هم كيږي، فرمائى:

«سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: كتب الله مقادير الخلائق قبل أن يخلق السماوات والأرض بخمسين ألف سنة، قال: وعرشه

---

(١) لم أجد في كتب الحديث بعد تبعي الكثير، والله أعلم. وانظر كذلك تعليقات حسن أحمد أسبر على نقد مراتب الإجماع لابن تيمية: ٣٠٤/١.

(٢) فتح الباري: ٢٨٩/٦ عمدة القاري: ١٠٩/٥.

(٣) فتح الباري: ٢٨٩/٢.

(٤) فتح البار: ٢٩٠/٦ وعمدة القاري: ١٠٩/١٥ إرشاد الساري: ٢٤٩/٥ والكرماني: ص ١٥٢/١٣.

(٥) صحيح البخاري كتاب التوحيد باب ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ رقم: ٧٤١٨.

على الماء» (١) چنانچه معلومه شوه چه د زمكې او آسمان د تخليق نه پنځوس زره كاله مخكښې د مخلوقاتو تقديرونه ليكلې شوي وو. په دې وجه راجح روايت د ثم والادې. كما في التوحيد. (٢)

**يو اهم تنبيه**: بعض ځايونو كښې په دې روايت كښې دا الفاظ ذكر كړې شوى دى: «كان الله، ولا شيء معه، وهو الآن على ما عليه كان» امام تقى الدين ابن تيميه رحمه الله ددې الفاظونه انكار كړې دې او دائى غير ثابت خودلى دى. (٣) ليكن حافظ رحمه الله فرمانى چه د امام ابن تيميه رحمه الله دا خبره «وهو الآن على ما عليه كان» كښې خو مسلم ده ليكن ددې نه وړاندې چه كومه جمله ده «كان الله، ولا شيء معه» كښې صحيح نه ده. ځكه چه د حديث باب الفاظ اوددې الفاظو معنى كښې هيڅ فرق نشته دې. صرف د الفاظو فرق دې اودا روايت بالمعنى دې. دې نه علاوه نافع بن زيد حميرى رحمه الله الفاظ هم ددې په شان دى: «كان الله، لا شيء غيره» البته دومره فرق شته چه په دې روايت كښې واؤ نشته. (٤) دلته ځه نور مباحث هم شته كوم چه به ان شاء الله وړاندې ذكر كولې شى.

**دامام اخفش رحمه الله يو استدلال**: د نحو مشهور امام اخفش رحمه الله دحديث باب نه په دې امر باندې استدلال كړې دې چه «كان وأخواتها» په خبر باندې واؤ داخلول جائز دى. چنانچه دحديث باب الفاظ «ولم يكن شيء غيره» دهغوى د مذهب مطابق دى كوم چه په كان الله كښې د كان خبر دې. ددې نحوى مثال «كان زيد وأبوه قائم» دې چه وأبوه قائم پوره جمله واؤ سره دكان خبر دې.

د جمهورو په نيز هم دا دويم تركيب راجح دې. هغه واؤ چه د كان په خبر داخل وى هغه ته: «الواو الداخلة على خبر الناسخ» وئيلى شى او امام اخفش رحمه الله چه كوم استدلال كړې دې هغه كالقليل النادر دې. وهو كالمعدوم. (٥) جمهور په دې صورت كښې چه خبر كان وغيره باندې واؤ سره داخل شى نو دوه تركيبونه ښائى. ① جمله حال او كان تامه. ② محذوف الخبر دې د ضرورت د وجې نه او كان ناقصه دې. (٦)

ددې جملې يو بل تركيب هم كيدې شى چه «ولم يكن...» پوره جمله حال او ګرځولې شى يعنى «كان الله حال كونه لم يكن شيء غيره» (٧)

---

(١) صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج آدم وموسى عليهما السلام: رقم: ٢٦٥٣.

(٢) فتح البارى: ٢٨٩/٦.

(٣) فتح البارى: ٢٨٩/٦ وعمدة القارى: ١٠٩/٥ وشرح القسطلانى: ٢٤٩/٥ مجموع فتاوى شيخ الاسلام ابن تيميه: ٢/١٤٤-١٤٢. ملاعلى قارى رحمه الله ليكلى دى چه و (هو) الآن على ما عليه كان " دا اضافه د صوفياؤ ده. مرقاة المفاتيح: ٣٤٦/١٠ كتاب احوال القيامة باب بدء الخلق... رقم: ٥٦٩٨. (؟) جارى

(٤) فتح البارى: ٢٨٩/٦ نور اوګورئى الأسرار المرفوعة فى الأخبار الموضوعة: ٢٦١/١ رقم: ٣٣٦.

(٥) النحو الوافى: ٤٩٣/١ المسألة: ٤٢ نواسخ الابتداء زيادة والتفصيل.

(٦) حواله بالا.

(٧) إرشاد السارى: ٢٤٩/٥.

**په ازل کښې صرف دَالله تعالی ذات وو:** د ټولو نه اول خو په دې خبره باندې خان پوهه کړئ چه په ازل کښې صرف د الله تعالی ذات وو باقي هيڅ هم نه وو. نه عرش نه اوبو نه دا زمکه نه آسمان او نه مشاهده او غير مشاهد دا مخلوقات د الله تعالی رب العزت.
اوس دا سوال پيدا کيږي چه کله هيڅ هم نه وو الله تعالی څه مخلوق هم نه وو پيدا کړې نو هغه وخت ذات باري تعالی چرته وو؟
ددې جواب دترمذی شريف په يوروايت کښې راغلې دې کوم چه د حضرت ابورزين عقيلي رضي الله عنه نه مروی دې فرمائي: ((قلت: يارسول الله صلى الله عليه وسلم، أين كان ربنا قبل أن يخلق خلقه؟ قال: كان في عماء، ماتحته هواء، ولا فوقه، وخلق عرشه على الماء، وقال يزيد بن هارون: العماء: أي ليس معه شيء))[1] يعنی ما اووئيل اې د الله تعالی رسول ﷺ! زمونږ رب دخپلو مخلوقاتو د پيدانش نه وړاندې چرته وو؟ وئې فرمائيل چه هغه په عماء کښې وو نه دهغې لاندې هوا وه نه دهغې د پاسه اوهغه عرش د اوبود پاسه پيدا کړو.
شيخ ترمذی يزيد بن هارون رحمه الله فرمائي چه د العماء معنی ده چه رب سره بل څه څيز نه وو.
**دعماء معنی اومراد:** په دې حديث کښې راغلی دی چه رب تعالی په عماء کښې وو. نو اوس دا لفظ عماء معمه جوړ شو. مختلف شراح ددې مختلف معانی بيان کړی دی. چا د دې مطلب نرنی شان اوريخ خودلې نو چا کثيف او قط په قط اوريخ. بعض فرمائيلی چه ددې معنی ده هغه لوګې (دهوند) کوم چه د اوچتو غرونو په څوکو ښکاري او په قاموس کښې دی: ((هو السحاب المرتفع أو الكثيف أو المطر الرقيق أو الأسود أو الأبيض، أو هو الذي هراق ماؤه))[2] په دې کښې هيڅ شک اوشبه نشته دې چه دا ټولې معانی اومطالب ذات باری تعالی دمقام اومرتبت سره بالکل مناسب اولائق نه دی. په دې وجه ابوعبيد قاسم بن سلام رحمه الله فرمائي: ((لايدري أحد من العلماء كيف كان ذلك العماء))[3] بعض رواياتو کښې دا لفظ مقصور يعنی عمی وارد شوې دې دکوم معنی چه د نظر دتللو ده يعنی ذهاب البصر.
ابوالهيثم رحمه الله ددې تفسير کولوسره فرمائي چه: ((هو كل أمر لايدركه عقول بني آدم، ولا يبلغ كنهه الوصف، ولا يدركه الفطن))[4] علامه توربشتی رحمه الله فرمائي چه روايت ممدود وی يا مقصور دواړو صورتونو کښې معنی يو ده. ځکه چه دممدو کيدو په صورت کښې هم ددې مطلب هم دغه دې چه هغه شئ د کوم په ذريعه چه الله تعالی دعقول نه حجاب اختيار کړو چه د هغوی د دې پورې رسائی ممکن نه وی.. خلاصه دا شوه چه د عماء معنی حجاب ده[5] همدا ملاعلی قاری اختيار کړې دې فرمائي: ((إن

---

[1] جامع الترمذی کتاب التفسير سورة هود، رقم: ٣١٠٩ وابن ماجة كتاب السنة باب فيما أنكرت الجهمية: رقم: ١٨٢ وكتاب السنة لابن أبي عاصم: ٢٧١/١ رقم: ٦١٢.
[2] القاموس المحيط للفيروز آبادی: ٣٦٨/٤ باب الواؤ فصل العين.
[3] الميسر للتوربشتی: ١٢٤١/٤ والطيبی: ٢٣٦/١٠ والمرقاة: ٤٠٥/١ وغريب الحديث: ٢/٩ باب عمی.
[4] حواله جات بالا.
[5] كتاب الميسر: ١٢٤١/٤ رقم: ٤٣٢٤.

السحاب كناية عن حجاب الجلال، وهو عبارة عن حجاب الذات، الباعث على ستر الصفات المتعلقة بالعلويات والسفليات»[1]

**په سوال اوجواب كښې مطابقت:** د رسول الله ﷺ دا جواب د اوريدونكى د فهم په اعتبار سره وو چه د حضرت ابورزين رضي الله عنه د پوهولو په غرض سره حضورپاك جواب وركړو چه «كان فى عماء......» څكه چه عماء ونيلو سره دلته خلاء مراد اخستې شوې ده كوم چه عبارت دې دعدم بدن نه. ښكاره خبره ده چه كه چرې عماء په خپل حقيقت باندې محمول كړې شى نو په دې سره تجسيم لازم راځى. بل دې نه مكان هم لازم راځى حالانكه ذات بارى تعالى تجسيم مكان او زمان ټولونه منزه او برى دې.

دې نه علاوه كه چرې عماء موجود وې نولازماً به مخلوق هم وو څكه چه د هغه ذات جل جلاله نه علاوه هرشئ مخلوق دې كوم چه هغه پيداكړې دې. ګنى سوال خو «أين كان ربنا قبل أن يخلق خلقه؟» وو. دغه شان به په سوال او جواب كښې مطابقت نه كيږى. په دې وجه حضورپاك د جواب دپاره دا طريقه اختياركړه ونى فرمائيل ګنى د حقيقت پورې د چا رسيدل ممكن نه دى. حضرت قاضى ناصر الدين رحمه الله فرمائى: «المراد بالعماء ما لا تقبله الأوهام، ولا تدركه العقول والأفهام، عبر عن عدم المكان بما لا يدرك ولا يتوهم، وعن عدم ما يحويه ويحيط به الهواء، فإنه يطلق ويراد به الخلاء الذي هو: عبارة عن عدم الجسم، ليكون أقرب إلى فهم السامع، ويدل عليه أن السوال عما خلق قبل أن يخلق خلقه، فلو كان العماء أمرا موجودا لكان مخلوقا، إذ ما من شيء سواه إلا وهو مخلوق، خلقه وأبدعه، فلم يكن الجواب طبق السوال»[2] خلاصه دا شوه چه ذات بارى تعالى وعز اسمه تجسيم مكان او زمان وغيره ټولونه منزه اوپاك دې اودا چه د مخلوقاتو د تخليق نه وړاندې صرف د الله تعالى خانله والې او يوازې ذات وو نور هيڅ هم نه وو.

**اول المخلوقات څه دى؟:** د الله تعالى نه علاوه چه څومره هم څيزونه دى هغه ټول مخلوق دى. په دې كښې د اهل حق هيڅ اختلاف نشته ټول هم دغه وائى چه هغه مخلوق اوحادث دى. د ټول اديان سماوى هم دغه عقيده ده. حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى: «.....سائر العالم بنقيره وقطميره حادث.....، ثم إن هذه عقيدة الأديان السماوية كلها، وما من دين حق إلا ويعتقد بحدوث الأكوان إلا الله»[3]

البته په دې كښې اختلاف دې چه اول المخلوقات څه دى؟ اوخالق لم يزل د خپل صفت خلق اظهار د ټولو نه اول كوم يو څيز پيداكولوسره كړې دې؟ په دې كښې مختلف اقوال دى:

① امام ابن جرير طبرى، امام ابن الجوزى، تابعين نه حضرت حسن بصرى، حضرت عطاء بن ابى رباح اوحضرت مجاهد رحمهم الله وغيره ددې خبرې قائل دى چه د ټولو نه اولنى مخلوق قلم دې. ددې حضراتو استدلال دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه دا مرفوع حديث دې «إن أول ما خلق الله القلم، ثم قال له: أكتب، فجرى فى تلك الساعة بما هو كائن إلى يوم القيامة». «اللفظ لأحمد»[4] يعنى الله تعالى وتبارك د

---

[1]) مرقاة المفاتيح: ٤٠٥/١ الفصل الثانى من كتاب احوال القيامة...... باب بدء الخلق.....

[2]) انظر مرقاة المفاتيح: ٤٠٥/١٠ كتاب أحوال القيامة باب بدء الخلق الفصل الثانى وشرح الإمام الطيبى: ٣٢٦/١٠ باب بدء الخلق رقم: ٥٧٢٦.

[3]) فيض البارى: ٢٩٩/٤.

[4]) رواه الإمام أحمد فى مسنده: ٥٤٧/٧ رقم: ٢٣٠٨١، أبوداؤد الطيالسى: ٣٠٥/١ رقم: ٥٧٨ والترمذى كتاب القدر باب إعظام أمر الإيمان بالقدر رقم: ٢١٥٥.

تولو نه اول قلم پيدا كړو بيانى هغه ته اوونيل چه ليكه...... نوهغه هم هغه وخت د قيامت پورې ټكاره كيدونكى واقعاتو اوحوادث په كتابت كښې مشغول شو.

② دويم طرحه يو جماعت وائى چه د ټولو نه اولنې مخلوق عرش دې. حافظ ابوالعلاء همدانى رحمه الله دا قول د جمهور نه نقل كړې دې.[1] هم دا قول ابن جرير رحمه الله د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما طرف ته منسوب كړې دې. ددې حضراتو استدلال د صحيح مسلم هغه حديث دې كوم چه اوس تيرشو چه: ((كتب الله مقادير الخلائق قبل أن يخلق السماوات والأرض.........))[2] جمهور فرمائى چه په دې حديث كښې د كتابت تقدير ذكر دې. چنانچه دا حديث په واضحه توګه دلالت كوى چه دا كتابت د خلق عرش نه پس شوې وو. نو د عرش د تخليق د قلم په تخليق باندې مقدم كيدل ثابت شو. حديث باب د جمهورو مويد دې په كوم كښې چه دى چه ((كان الله، ولم يكن شيء غيره، وكان عرشه على الماء.......)).

د حضرت عباده رضى الله عنه د حديث متعلق جمهور دا فرمائى چه دا حديث هم صحيح دې خو په دې كښې ذكر شوې اوليت د قلم د هغه مشاهد كائنات باره كښې دې. مطلب دا دې چه زمونږ د دې كائنات اولين تخليق قلم دې. ليكن په ټولو كائناتو كښې اولين تخليق د عرش دې.

③ يو دريم جماعت دا وائى چه د ټولو نه اول تخليق د اوبو دې. رب كائنات د ټولو نه اول اوبه پيدا كړې دى. ددې قول په قائلينو كښې ابن جرير رحمه الله د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما ابن مسعود رضى الله عنه او نورو بعض صحابه كرامو رضى الله عنهم ذكر كړې دې. دا حضرات فرمائى: ((إن الله كان عرشه على الماء، ولم يخلق شيئا غير ما خلق قبل الماء)) او د ابن اسحاق رحمه الله رائې داده چه د ټولو نه اول نور اوظلمت پيدا كړې شو د ظلمت نه شپه اود نور نه ورځ جوړه كړه. فرمائى: ((أول ما خلق الله عزوجل النور والظلمة، ثم ميز بينهما، فجعل الظلمة ليلا أسود مظلما، وجعل النور نهارا مضيئا مبصرا))[3].

بهرحال په دې مسئله كښې دا مختلف اقوال دى او په دې كښې اولنى دوه اقوال ډير مشهور دى چه اول المخلوقات قلم دې يا عرش. والله اعلم بالصواب.[4]

---

[1] حافظ ابن كثير رحمه الله دا قول نقل كړې دې. البداية والنهاية: ۸/۱ په كوم كښې چه د جمهورو نه مراد كوم حضرات دى ددې څه تعيين نشته دې. په ظاهره د جمهورو طرف ته ددې نسبت صحيح نه دې. والله اعلم.

[2] صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج آدم و موسى عليهما السلام رقم: ۲۶۵۳، ۶۷۴۸.

[3] ددې ټولو اقوالو او د نورو اقوالو د پاره اوګورئى البداية والنهاية: ۱/۹-۸أول فصل من الكتاب وتاريخ الأمم والملوك للطبري: ۲۹/۱ وعمدة القاري: ۱۰۹/۱۵وفتح الباري: ۲۸۹/۶وإرشادالساري: ۲۵۰/۵.

[4] علامه عينى رحمه الله دريم قول راجح ګرځولې دې. ليكى: (فإن قلت: إذا كان العرش والماء مخلوقين أولا، فأيهما سابق فى الخلق؟ قلت: الماء لما روى أحمد والترمذى مصححا من حديث أبى رزين العقيلى، رضى الله عنه، مرفوعا: إن الماء خلق قبل العرش).

تنبيه احقر ته په ترمذى او مسند احمد كښې خوڅه چه مجموعه احاديث صحيحه اوضعيفه كښې چرته دا حديث په دې الفاظو سره ملاؤنه شو. دا حديث د علامه عينى رحمه الله نه علاوه حافظ صاحب رحمه الله هم ذكر كړې دې. حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: (واستدلال ابن حجر بحديث أبي رزين أن الماء خلق قبل العرش، فغير صحيح، لأنه لم يرد فى أبى رزين هذا اللفظ، وإنما وردفيه: ثم خلق عرشه على الماء وليس فى هذا ما يدل على اولية الماء). العرش للذهبى: ۳۱۳/۱المبحث الأول: خلق العرش وهيته بيا هغوى په دې معامله كښې مذكور ټول اقوال ليكلو سره په هغې كښې داسې تطبيق وركړې دې (قلت التوفيق بين هذه الروايات بأن الأولية نسبي، وكل شيء قيل فيه: إنه أول، فهو بالنسبة إلى مابعدها. (عمدة القارى:۱۰۹/۱۵))

**يواهم تنبيه**: بعض خلقو يوحديث نقل كړي دي «**أول ما خلق الله العقل**». [1] چه الله تعالى د ټولو نه اول دعقل تخليق فرمائيلې دې.
حافظ رحمه الله ددې حديث په جواب كښې دافرمائيلى دى:
① ددې حديث هيڅ يوطريق دثبوت درجې ته نه رسى. [2]
② اوكه چرې داحديث صحيح اومنلې هم شي نو مطلب به داشي چه په جنس عقل كښې د ټولو نه اول دعقل تخليق الله تعالى كړې دې. چنانچه اوليت اضافيه مراد دې. [3]

**قوله: فنادى مناد: ذهبت ناقتك يا ابن الحصين. فانطلقت، فإذا هي يقطع دونها السراب، فوالله لوددت أني كنت تركتها**: په دې دوران كښې يوآواز كونكى اواز اوكړو ابن الحصين ستا اوښه لاړه، نوزه دهغې په لټون كښې لاړم، چه اومې كتل نوزما د اوښ هغې په مينځ كښې خود بيابان پړقيدونكى سراب حائل دې. په الله تعالى قسم زما داخواهش پيدا شو چه افسوس ما هغه پريخودې وه.

**شرح حديث**: يقطع كښې دوه احتمالات دى، كه ياء سره وى نودا دمجرد نه به دمضارع صيغه وى. كه تاء سره وى نو په هغه صورت كښې دباب تفعيل نه د ماضى صيغه ده. اوددې جملې مطلب دادې چه هغه اوښه په بيابان كښې دومره لرې وتلې وه چه د شګونه علاوه به هيڅ نه ښكاريدل يعنى اوښه ډيره لرې وتلوسره د سترګونه غائبه شوې وه. [4] لفظ **السراب** مرفوع دې چه هغه د **يقطع** فاعل دې. [5]

**د حديث نه مستنبط فوائد**: علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه د شيانو مبادى دهغې حقيقت اود هغې باره كښې بحث اومباحثه ګول جائز دى اود عالم دين ذمه وارى ده چه د خپل علم مطابق دهغې جواب وركړى اوسائل مطمئن كړى. اوكه د سائل باره كښې دا شك وى چه د هغې په وجه د سائل عقائد متزلزل كيدې شى اوهغه د شبهاتو ښكار كيدې شى نوجواب دې نه وركوى بلكه دا شان معاملاتوكښې د نه پريوتلو تلقين دې اوكړى. [6]
بل د حديث نه داهم معلومه شوه چه جنس زمان اود هغې لاندې راتلونكى ټول انواع حادث دى اودا چه هم الله تعالى د دې ټولو مخلوقاتو موجددې. حالانكه دا ټول معدوم وو په دې وجه نه چه هغه د دې د پيداكولونه اول عاجز وو اوس قادر شو. داسې نه ده بلكه د قدرت باوجود ئې نه وو پيدا كړى. [7]

---

[1] أخرجه الديلمى فى الفردوس: ١٣/١رقم: ٤وأبونعيم فى الحلية:٣١٨/٧.
[2] دې حديث ته بعض محدثينو موضوع اوبعض ضعيف وئيلې دې ځكه چه ددې دارومداريه قول دَ دې حضراتو، داؤد بن المحبر دې چه كذاب يا كم نه كم ضعيف ضرور دې اوګورئى المقاصد الحسنة: ٩٩/١ رقم: ٢٣٣موضوعات الصنعانى:٢/١ومجموع الفتاوى: ٣٣٦/١٨وغيره.
[3] فتح البارى: ٢٨٩/٦.
[4] قال الإمام الكشميرى رحمه الله: معناه أنها بعدت بعدا لا يظهر دونه السراب، مع أنه يلمع من البعد، فإذا لم يظهر السراب أيضاً، دل على قطعها بعدا بعيدا. والفرض بيان بعدها فقط. فيض البارى على صحيح البخارى: ٣٠٠/٤.
[5] الفتح : ٢٩٠/٦ والعمدة: ١٠٩/١٥ وإرشادالسارى: ٢٤٩/٥وشرح الكرمانى: ١٥٢/١٣.
[6] عمدةالقارى: ١٠٩/١٥وفتح البارى: ٢٩٠/٦.
[7] فتح البارى: ٢٩٠/٦.

بعض حضراتو حديث باب كښې د كائنات باره كښې ذكر شوې د اشعريين د هغه سوالاتو نه په دې امر باندې استنباط كړې دې چه اصول دين او حدوث عالم باندې خبرې اترې او په دغه دواړو امورو كښې شوق ساتل دهغوى اولاد ته هم منتقل شو. لكه چه دهغوى په كهوټى (خمير) او وينه كښې شامل دى. چنانچه هم د دوى نه امام ابوالحسن اشعرى رحمه الله هم دې. د چاچه په انمه كلام كښې لوئى شان دى. أشار إلى ذلك ابن عساكر.[1]

د باب دويم حديث دحضرت عمر بن الخطاب په شكل د تعليق دې.

## الحديث الثالث

**[۳۰۲۰]-وَرَوَى عِيسَى، عَنْ رَقَبَةَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَامَ فِينَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا، فَأَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الخَلْقِ، حَتَّى دَخَلَ أَهْلُ الجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ، وَأَهْلُ النَّارِ مَنَازِلَهُمْ، حَفِظَ ذَلِكَ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ**

## تراجم رجال

**عيسىٰ:** دا ابواحمد عيسىٰ بن موسى الازرق بخارى رحمه الله دې. د بنو تميم طرف ته په اعتبار د ولاء منسوب كيدوسره تيمى يادېږى. اوبعض ورته تميمى ونيلې دې. د مخ د سور والى د وجې نه غنجار[2] سره ملقب وو. المعروف بغنجار، لقب بذلك لحمرة لونه.[3]

دې د عبدالله بن كيسان مروزى، سفيان ثورى، زهير بن معاويه، طلحه بن زيد شامى، حفص بن ميسره، ابراهيم بن طهمان، عبيده بن بلال تيمى، عتاب بن ابراهيم، نوح بن ابى مريم، ياسين الزيات، ابوحمزه سكرى رحمهم الله وغيره نه علاوه يولونى جماعت نه دحديث روايت كوى.

ددوى نه روايت كونكو كښې يعقوب بن اسحاق حضرمى، وهومن أقرانه، اسحاق بن حمزه بن فروخ ازدى، ابواحمد بحير بن نصر بخارى، محمدبن اميه ساوى، محمد بن سلام بيكندى رحمهم الله وغيره شامل دى.[4]

امام حاكم رحمه الله فرمانى «هوثقة.....»[5] مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمانى: «كان ثقة جليلا مشهورا بخراسان»[6] خليلى رحمه الله فرمانى «زاهد ثقة.....»[7] حافظ ذهبى رحمه الله اوابن حجر رحمه الله هغه ته صدوق ونيلې دې.[8]

---

[1] حواله بالا

[2] بضم المعجمة وسكون النون، بعدها جيم. تقريب التهذيب: ۷۷۵/۱رقم الترجمة: ۵۳۴۷.

[3] تهذيب الكمال: ۳۷/۲۳رقم الترجمة: ۴۶۶۲وتهذيب التهذيب: ۲۳۲/۸.

[4] د شيوخ اوتلامذه د پاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۳۹/۲۳-۳۸.

[5] تهذيب الكمال: ۴۱/۲۳وتهذيب التهذيب:۲۳۳/۸.

[6] تهذيب التهذيب: ۲۳۳/۸وتعليقات تهذيب الكمال: ۴۱/۲۳.

[7] تهذيب التهذيب: ۲۳۳/۸وتعليقات تهذيب الكمال: ۴۰/۲۳.

[8] ميزان الاعتدال: ۳۲۵/۳الترجمة: ۶۶۱۴وتقريب التهذيب: ۷۷۵/۱الترجمة: ۵۳۴۷.

بل طرف ته دارقطني رحمه الله وغيره په هغه باندې سخت تنقيد کړې دې. اوهغه ته ئې لاشيء ونيلې دې. خو امام بيهقي رحمه الله فيه ضعف فرمائيلې دې.[1] چنانچه عيسىٰ بن موسى رحمه الله د بخارى شريف د رواة نه دې کوم چه مختلف فيه دې. اووده د وجې نه امام بخارى رحمه الله ته مطعون ونيلې شوې دې.[2]
په عيسىٰ بن موسى رحمه الله باندې مختلف قسم جرحې شوى دى لکه د ثقات مخالفت، د مناکير روايت، د مجاهيل نه تحديث، تردې چه امام حاکم رحمه الله وغيره ليکلى دى چه دې د سلو نه زياتو مجاهيل نه روايت کوى، بل دا چه تدليس ئې هم کولو. خوددې ټولو اتهاماتو دفاع کولوسره امام حاکم نيسابورى رحمه الله ليکلى دى چه دې دخپلې زمانې مقتداء وو. د ده جمات اووده مسکن په بخارا کښې مشهو دې. ما د هغه په جمات کښې مونځ هم کړې دې. د علم په طلب کښې د بوډا والى په حالت کښې وتلې. د حجاز، شام، عراق اوخراسان سفرونه ئې کړى. دخپل ذات په اعتبارسره صدوق او رښتونې وو. په بخارى شريف کښې د هغه نه احتجاج او استدلال هم کړې شوې دې. خوچه کله دې د مجاهيل نه روايت کوى نود هغه روايتونه د مناکير نه ډك وى په کوم کښې چه دهغه هيڅ قصور نشته. ما د ثقات نه دهغه د مرويات تتبع کړې ده اوهغه ټول مې صحيح او مستقيم موندلې دى.[3] په يو بل مقام کښې فرمائى: «ثقة، مقبول، غير أنه يروي عن أكثر من مئة شيخ من المجهولين، لا يعرفون، أحاديث مناكير، وربما توهم طالب هذا العلم أنه جرح فيه، وليس كذلك»[4] هم دغه خبره خليلى رحمه الله هم ليکلى ده فرمائى: «ربما روي عن الضعفاء، فالحمل على شيوخه، لا عليه، والبخاري قد احتج به في أحاديث، ولا يضعفه، وإنما يقع الا ضطراب من تلامذته، وضعف شيوخه، لا منه»[5] "کله کله د ضعيف راويانونه روايت کوى. په کوم کښې چه قصور دهغوى د شيوخ دې، نه چه دعيسىٰ بن موسى، امام بخارى رحمه الله په څه احاديثو کښې د هغه نه احتجاج کړې دې او هغه ضعيف نه ګرځوى. دهغه په مرويات کښې اضطراب دهغه د تلامذه او شيوخ د طرف نه کيږى نه چه دهغوى د طرف نه".
ابن حبان رحمه الله دهغوى ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې اودهغوى تدليس کړې شوى رواياتو بابت فرمائيلى دى چه که چرې عيسىٰ رحمه الله د شيخ نه دسماع تصريح اوکړى نو د ثقات نه روايت کړې شوى رواياتو کښې دا د احتجاج قابل دې اوکه چرې تصريح اونه کړى نوهغه روايات قابل احتجاج نه دى. ليکى: «والاحتياط في أمره: الاحتجاج بما روي عن الثقات إذا بين السماع عنهم، لأنه كان يدلس عن الثقات ما سمع من الضعفاء عنهم، وترك الاحتجاج بما روي عن الثقات إذا لم يبين السماع في روايته عنهم»[6]
ددې ټول تفصيل نه واضحه شوه چه د عيسىٰ بن موسى رحمه الله د وجې نه امام بخارى رحمه الله مطعون کول صحيح نه دى چه هغه ثقه اوقابل احتجاج دې. بيا امام بخارى رحمه الله په بخارى شريف کښې دهغه

---

[1]) تهذيب التهذيب: ٢٣٣/٨ وتعليقات تهذيب الكمال: ٤٠/٢٣ وموسوعة أقوال أبى الحسن الدارقطنى فى رجال الحديث وعلله: ٥٠٩/٢ رقم: ٢٧١٥ الطبعة الأولى.
[2]) هدى السارى: ٤٤٥.
[3]) تهذيب التهذيب: ٢٣٣/٨ تهذيب الكمال: ٤٠/٢٣-٣٩.
[4]) تهذيب التهذيب: ٢٣٣/٨ تهذيب الكمال: ٤٠/٢٣.
[5]) تهذيب التهذيب: ٢٣٣/٨.
[6]) كتاب الثقات لابن حبان: ٤٩٣/٨-٤٩٢.

صرف هم دغه يو روايت اخستې دې اوهغه هم د تعليق په توګه [1] دامام بخارى رحمه الله نه علاوه امام ابن ماجه رحمه الله هم دهغه نه په خپل سنن كښې روايت اخستې دې [2]
عبيدالله بن واصل بخارى رحمه الله فرمائي چه د ۱۸۵ يا ۱۸۶هجرى اواخر يا ۱۸۷هجرى په اوائل كښې دعيسى بن موسى رحمه الله انتقال شوې [3] ابن حبان رحمه الله او امام بخارى رحمه الله ۱۸۶هجرى تاريخ وفات خودلې دې [4]

**رقبه:** دا ابوعبدالله رقبه براء وقاف مفتوحتين [5] بن مصقله عبدى كوفى رحمه الله دې. بعض حضراتو پوره نسب داسې ليكلې دې. رقبه بن مصقله بن عبدالله بن خوته بن صبره. [6] د يوقول مطابق ذې د حضرت انس رضي الله عنه نه د حديث روايت كوى. بل دې د يزيد بن ابى مريم، ابواسحاق، عطاء بن ابى رباح، قيس بن مسلم، مجزأة بن زاهر، عبدالعزيز بن صهيب، طلحه بن معرف، ثابت بنانى، د خپل پلار مصقله او نافع مولى ابن عمر رحمهم الله غوندې اساطين علم حديث نه روايت كوى.
د هغوى نه روايت كونكوكښې سليمان تيمى، وهومن أقرانه، ابراهيم بن عبدالحميد بن ذي حمايه، جرير بن عبدالحميد، ابوعوانه، ابن عيينه اومحمدبن فضيل رحمهم الله وغيره شامل دى. [7]
امام احمد رحمه الله فرمائى: «**شيخ، ثقة من الثقات، مأمون**» [8] امام عجلى رحمه الله فرمائى: «**ثقة، وكان مفوّها، يعد من رجالات العرب، وكان صديقا لسليمان التيمى**» [9] يعنى دې ثقه دې لوئى قادرالكلام، بليغ خطيب وو. په رجال العرب كښې دهغوى شمير كيږى بل دا چه د سليمان تيمى رحمه الله دوست وو. حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: «**الإمام، الثبت، العالم**» [10] دارقطنى رحمه الله هم هغه ته ثقه وئيلې دې. [11] يحيى بن معين رحمه الله فرمائى ثقة. [12] ابن حبان رحمه الله د هغوى ذكر كتاب الثقات كښې كړې دې. [13] دا د ائمه سته راوى

---

[1] تهذيب الكمال: ۲۳/۴۰، وهدى السارى: ۶۴۵ وتحفة الأشراف: ۸/۳۱رقم: ۱۰۴۷۰.
[2] تهذيب التهذيب: ۸/۲۳۳تهذيب الكمال: ۲۳/۴۱-۴۰.
[3] تهذيب الكمال:۲۳/۴۰.
[4] الثقات: ۸/۴۹۲وتاريخ الكبير: ۶/۳۹۴رقم الترجمة:۲۷۵۱.
[5] تعليقات تهذيب ابن حجر: ۳/۲۸۶.
[6] تهذيب الكمال: ۹/۲۱۹وتهذيب ابن حجر:۳/۲۸۶وسيرأعلام النبلاء : ۶/۱۵۶.
[7] شيوخ اوتلامذه دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۹/۲۲۰-۲۱۹رقم الترجمة: ۱۹۲۳.
[8] تهذيب الكمال: ۹/۲۱۹ وتهذيب ابن حجر ۳/۲۸۶وسيرأعلام النبلاء: ۶/۱۵۶ وكتاب العلل لابنه:۱/۱۸۴وكتاب الثقات لابن شاهين الترجمة: ۳۷۳
[9] تهذيب الكمال: ۹/۲۱۹تهذيب ابن حجر: ۳/۲۸۶سيرأعلام النبلاء:۶/۱۵۶.
[10] سيرأعلام النبلاء:۶/۱۵۶.
[11] تهذيب ابن حجر: ۳/۲۸۷ رقم: ۵۴۱.
[12] تهذيب الكمال: ۹/۲۲۰تهذيب ابن حجر: ۳/۲۸۷.
[13] ۶/۳۱۱

دي البته ابن ماجه رحمه الله د سنن په خائې خپل تفسير كښې دهغه نه روايت اخستې دې.[1] ابن الاثير رحمه الله دهغوى تاريخ وفات ۱۲۹ هجرى بيان كړې دې. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.[2]

**قيس بن مسلم:** دا قيس بن مسلم جدلى ابوعمرو كوفى رحمه الله دې.

**طارق بن شهاب:** دا طارق بن شهاب احمسى كوفى رحمه الله دې.

**عمر بن الخطاب:** دا خليفه ثانى امير المؤمنين حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه دې. ددې دريواړو بزرګانو تذكره كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه كښې راغلې ده.[3]

**يواهمه تنبيه:** اكثر ناسخين حضرات دا سند داسې بيان كړې دې عيسى عن رقبة مګر په دې سند كښې سقط واقع شوې دې. ابوعلى جيانى رحمه الله فرمائى چه دلته عيسى بن موسى اورقبة بن مصقله په مينځ كښې يو راوى پريوتلې دې چه ابوحمزة سكرى دې. د كوم نوم چه محمدبن ميمون دې. ددې اضافه نه بغير به سند متصل نه وى. په دې باندې ابونعيم رحمه الله هم جزم كړې دې.

هم دغه خبره ابومسعود دمشقى رحمه الله هم فرمائيلې ده چه داحديث عيسى عن ابى حمزة عن رقبة په طريق سره نقل كړې دې. ددې دليل دادې چه طبرانى كښې دا روايت عيسى عن ابى حمزه عن رقبه په طريق سره موجود دې. دې نه علاوه عيسى په دې معامله كښې متفرد هم نه دې. چنانچه حافظ ابونعيم رحمه الله هم داحديث د على بن حسين عن ابى حمزة په طريق سره ذكر كړې دې سره ددې چه ددې سند ضعيف دې. بيا داخبره هم چه عيسى بن رقبه نه روايت خو څه؟ ملاقات هم ثابت نه دې هغه خود رقبه د شاګردانونه روايت كوى.[4]

**قوله: سمعت عمر رضي الله عنه يقول: قام فينا النبي صلى الله عليه وسلم مقاما:** طارق بن شهاب رحمه الله وائى چه ما حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلوسره واوريدوچه يوځل حضور نبى اكرم صلى الله عليه وسلم مونږ ته د خطاب كولو دپاره اودريدو.

**د خطبې مقام اودهغې دورانيه:** دمقام نه مراد منبر دې. چنانچه مسلم اومسنداحمد وغيره كښې د حضرت ابوزيد بن اخطب رضي الله عنه د روايت نه دا مستفاد كيږى چه په حديث باب كښې ذكر شوې خطبه حضورپاك د سحر نه د نمر د ډوبيدو پورې په منبر باندې په ولاړه وركړې وه. دهغه روايت الفاظ دا دي: «صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم صلاة الصبح، وصعد المنبر، فخطبنا، حتى حضرت الصلاة، ثم نزل فصلى بنا الظهر، ثم صعد المنبر، فخطبنا، ثم العصر كذلك، حتى غابت الشمس، فحدثنا بما كان، وما هو كائن، فأعلمنا أحفظنا».[5]

---

[1] تهذيب الكمال: ۲۲۰/۹ سير أعلام النبلاء: ۱۵۶/۶.

[2] الكامل فى التاريخ: ۳۷۷/۵ وتعليقات تهذيب الكمال: ۲۲۰/۹ وتهذيب التهذيب: ۲۸۷/۳ وإكمال مغلطاى: ۳۹۹/٤ رقم: ۱۶۰۸.

[3] كشف البارى: ٤۷٤-٤۷۱/۲ د حضرت عمر رضي الله عنه د پاره نور اوګورئى: ۲۳۹/۱

[4] تهذيب الكمال: ٤۱/۲۳ عمدة القارى: ۱۱۰/۱۵ فتح البارى: ۲۹۰/۶ والتوضيح: ۱۷/۱۹ وتقييد المهمل للجيانى: ٤۵/۲ وفى تعليقات تهذيب الكمال: ٤۱/۲۳ ذكر البخارى فى الرواة عنه، وهو وهم، فإنه لن يدركه، إنما روى عن أصحابه".

[5] صحيح الإمام مسلم كتاب الفتن باب إخبار النبى صلى الله عليه وسلم فيما يكون إلى قيام الساعة. رقم: ۲۸۹۳/۷۲۶۷ ومسند الإمام أحمد: ۶۰۱/۷ رقم: ۲۳۲۷۶.

حافظ صاحب رحمه الله وغيره د حضرت ابوزيد رضي الله عنه دا حديث نقل كولوسره ليكي: «وأفاد حديث أبي زيد بيان المقام المذكور زماناً ومكاناً في حديث عمر رضي الله عنه، وأنه كان على المنبر، من أول النهار إلى أن غابت الشمس»[1]

## قوله: فأخبرنا عن بدء الخلق، حتى دخل أهل الجنة منازلهم، وأهل النار منازلهم

نورسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته د مخلوقاتو د ابتداء باره كښې ارشاد اوفرمائيلو ترديې چه اهل جنت خپلو خپلو خايونوكښې او دوزخيان خپل خپل خائى ته اوانجام ته اورسيدل. «حتى دخل أهل الجنة....» داد أخبرنا دپاره غايت دې. مطلب دادې چه حضورپاك مونږ ته د مخلوقات عالم د ابتداء باره كښې لږ لږ شان خودل ترديې چه كله جنتيان جنت كښې اودوزخيان دوزخ كښې داخل شى ددې باره كښې ئې هم اوخودل.[2]

**د سياق نه د عدول وجه:** د سياق حديث وجه خودا وه چه "يدخل" (مضارع) ئې فرمائيلې مګر صيغه دماضى "دخل" ئې استعمال كړه چه ددې خبرې طرف ته اشاره ده چه داخبرې د مخبر صادق د طرف نه دى. لكه چه دا هرڅه شوى دى جنتيان په جنت كښې او دوزخيان دوزخ ته تلى دى.[3]

**د رسول الله ﷺ ښكاره معجزه:** د پورته دغه تفصيل نه معلومه شوه چه هم په يومجلس كښې د ټولو مخلوقاتو د عالم د شروع نه واخله تر انجام پورې حالات ئې بيان كړل. چنانچه په دې كښې مبدا، معاش او معاد دريواړه به لازمى ذكر شوې وى. دا معجزه نه ده نوڅه دى؟ هم په يومجلس كښې دومره تفصيلات خودل خارق عادت امر دې اوهم دې ته معجزه وائى.

**دحديث باب يوبل مثال:** حديث باب سره يوشان يوه واقعه امام ترمذى رحمه الله هم نقل كړې ده. حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ له راغلو دهغوى په لاس كښې دوه كتابونه (رجسټرې) وې. بيا په خپل ښى لاس كښې موجود كتاب طرف ته اشاره كولوسره اوفرمائيل چه دا د رب العالمين د طرف نه يوكتاب دې په كوم كښې چه د جنتيانو نومونه قبيلې اوغيره درج دى اوس په دې كښې زياتوالى كيدې شى نه كمې واقع كيدې شى. بيا حضورپاك په خپل ګس لاس كښې موجود كتاب طرف ته اشاره كولوسره د جهنميانوباره كښې هم دغه شان اوفرمائيل. روستو هغه دواړه كتابونه حضورپاك لرې اوغوزول اوونى فرمائيل «فرغ ربكم من العباد، فريق في الجنة وفريق في السعير»[4] يعنى ستاسو خلقو رب د بنديګانو د فيصلو نه فارغ شو يو ډله به جنت كښې وى نودويمه به دوزخ كښې وى.

په دې دواړو احاديثو كښې د شك وجه داده چه رومبې حديث (حديث باب) كښې په لږشان وخت كښې د ډيرمضمونونو او ارشادات عاليه په آسانتى سره بيان دې نو په دويم حديث كښې په تنګ شان ظرف (كتاب) كښې ډير زيات مواد د خائى كولوذكر دې چه په يوكتاب كښې د ټولو جنتيانو ذكر وو او په بل كتاب كښې د ټولو دوزخيانوذكر. ښكاره خبره ده چه دا معمولى خبره نه ده بلكه ډيره غيرمعمولى

---

[1] فتح البارى: ۲۹۱/۶ عمدة القارى: ۱۱۰/۱۵ وإرشادالسارى: ۲۵۰/۵.

[2] شرح الطيبى: ۲۹۷/۱۰ رقم: ۵۶۹۹ وعمدة القارى: ۱۱۰/۱۵ وفتح البارى: ۲۹۰/۶ أوإرشادالسارى: ۲۵۰/۵.

[3] حواله جات بالا، والكنز المتوارى: ۱۲۰/۱۳.

[4] جامع الترمذى أبواب القدر باب ماجاء أن الله كتب كتابا لأهل الجنة...... رقم: ۲۱۴۱.

خبره ده. (١) اود حديث ترمذى الفاظ ((فنهن همأ)) نه هم دغه متبادر كيږي چه هغه دواړه كتابونه صحابه كرامو رضي الله عنهم ته باقاعده ښكاريدل هم. والله اعلم. (٢)

**يوبل خصوصيت**: د معجزې د اثبات سره دا هم ثابت شو چه نبى پاك عليه السلام كه يوطرف ته په ډيرو زياتو خصوصياتو سره مشرف كړې شوې وو نوبل طرف ته نى ورته جوامع الكلم هم وركړې وو. داحديث د دې واضحه مثال دې. حافظ صاحب رحمه الله فرمائى: ((ودل ذلك على أنه أخبر في المجلس الواحد بجميع أحوال المخلوقات، منذ ابتدأت إلى أن تفنى، إلى أن تبعث، فشمل ذلك الإخبار عن المبدأ والمعاش والمعاد، وفي تيسير إيراده ذلك كله في مجلس واحد، من خوارق العادة، أمر عظيم)) (٣)

**قوله: : حفظ ذلك من حفظه، ونسيه من نسيه**: چاچه ياد ساتل هغه دغه ټول ياد اوساتل اوچا له چه هيرول وو هغه ټول هير كړل. مطلب دادې چه دحضورپاك دغه پورته بيان كړې شوې بيان يقيناً خو به اوريدلې ډيرو زياتو صحابه كرامو مګر چا ته ياد پاتې شو په كوم كښې چه زه هم شامل ووم چه الله تعالى ماته دهغه ټولو خبرو د ياد ساتلو توفيق رانصيب كړو. امام ترمذى رحمه الله ليكلى دى چه په دې باب كښې (حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه علاوه) د ډيرو صحابه كرامو نه روايات دى. لكه حضرت حذيفه بن يمان، حضرت زيد بن اخطب، حضرت ابومريم اوحضرت مغيره بن شعبه (دحضرت عمر دحديث باب تذكره هغوى اونه كړه) رضي الله عنهم ټول حضراتو ته هغه خبرې يادې وې. (٤)

**دَمذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق امام طبرانى رحمه الله المعجم الكبير كښې او ابن منذر رحمه الله په خپل امالى كښې موصولاً نقل كړې دې. (٥)

**ترجمة الباب سره دَ حديث مطابقت**: دحضرت عمر رضي الله عنه د دې حديث ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چه په دې كښې دمخلوقاتو د ابتداء وغيره ذكر دې.

د باب دريم حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې كوم چه حديث قدسى هم دې.

## الحديث الرابع

[٣٠٢١]- حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُرَاهُ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: يَشْتِمُنِي ابْنُ آدَمَ، وَمَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَشْتِمَنِي، وَيُكَذِّبُنِي وَمَا يَنْبَغِي لَهُ، أَمَّا شَتْمُهُ فَقَوْلُهُ: إِنَّ لِي وَلَدًا، وَأَمَّا تَكْذِيبُهُ فَقَوْلُهُ: لَيْسَ يُعِيدُنِي كَمَا بَدَأَنِي [٤٦٩٠، ٤٦٩١] (١)

---

١) فتح البارى: ٦/٢٩١.

٢) حواله بالا.

٣) فتح البارى: ٦/٢٩٠وإرشادالسارى: ٥/٢٥٠والكنز المتوارى: ١٣/١٢٠.

٤) جامع الترمذى أبواب الفتن، باب ما أخبر النبى صلى الله عليه وسلم أصحابه بما هو كائن إلى يوم القيامة، رقم: ٢١٩١وفتح البارى: ٦/٢٩١.

٥) هدى السارى: ٤٨الفصل الرابع كتاب بدء الخلق والتغليق التعليق: ٣/٤٨٧.

## تراجم رجال

**عبدالله بن ابی شیبه:** دا عبدالله بن محمد بن ابی شیبه عبسی کوفی رحمه الله دې.[2]

**ابواحمد:** دا ابواحمد محمدبن عبدالله زبیری ازدی رحمه الله دې.[3]

**سفیان:** دامشهورامام محدث سفیان بن سعیدبن مسروق ثوری رحمه الله دې. ددوی حالات ((کتاب الإیمان باب علامة المنافق)) لاندې بیان کړې شوی دی.[4]

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا عبدالرحمن بن هرمزالاعرج قرشی رحمه الله دې. ددې دواړو محدثینوحضراتو تذکره کتاب الإیمان باب حب الرسول صلی الله علیه وسلم من الإیمان لاندې تیره شوې ده.[5]

**ابوهریره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیرشوی دی.[6]

**قوله: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: قال الله تعالی: یشتمني ابن آدم، وما ینبغي له أن یشتمني، ویکذبني، وما ینبغي له، أما شتمه، فقوله: إن لي ولداً:** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلې دې چه الله تعالی عزوجل فرمائی چه بنیادم ماته بدې ردې وائی حالانکه دهغه د پاره دا بالکل مناسب نه ده چه ماته دې بدې ردې اووائی. اوهغه ماته دروغژن کوی دا هم هغه سره ښه نه لګی. ترکومې چه دهغه د بدو ردو وئیلوتعلق دې نودهغه زما باره کښې دا وینا کول چه زما خوئی دې (یعنی زما هم اولاد دې).

یشتمني باب ضرب نه دې شتما ددې مصدر دې چاته کنځلې کول تنقیص کول اوبدې ردې وئیل وغیره. د الله تعالی د پاره اولاد ثابتولوسره لویه ګستاخی اوتنقیص د الله تعالی په شان کښې نور څه کیدې شی؟ ځکه چه داد حدوث امکان ته مستلزم دې اوداد الله تعالی په شان اقدس کښې ډیره لویه ګستاخی ده په دې وجه دا په شتم سره تعبیر کړې شوې ده.[7]

**قوله: وأما تکذیبه، فقوله: لیس یعیدني کما بدأني:** او ترکومې چه د بنیادم زما دروغژن کولو تعلق دې نودهغه دا وینا کول لکه چه څنګه زه الله تعالی په شروع کښې پیدا کړم دوباره نه شی پیداکولې. ((لیس یعیدني کما بدأني....)) دا په ورځ د قیامت د بت پرستو مقوله ده څوک چه په حیات

---

[1] قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، أخرجه البخاري أيضاً، كتاب التفسير سورة قل ﴿هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ باب ١، رقم: ٤٩٧٤ وباب قوله: ﴿اللّٰهُ الصَّمَدُ﴾ رقم: ٤٩٧٥ والنسائي كتاب الجنائز باب أرواح المؤمنين رقم: ٢٠٨٠.

[2] كتاب العمل في الصلاة باب لا يرد السلام في الصلاة.

[3] كتاب الأذان باب المكث بين السجدتين.

[4] اوګورئ کشف الباري: ٢٧٨/٢.

[5] کشف الباري: ١١/٢-١٠.

[6] کشف الباري: ٦٥٩/١

[7] فتح الباري: ٢٩١/٦.

بعدالممات باندې يقين نه لرى اود قيامت انكاركوى. الله عزوجل دهغوى دا مقوله د خپل قدرت كامله دروغ ګرځولو سره فرمائى چه څومره لويه زياتى ده چه كومه شروع بغيرد څه سبب ظاهرى يوځيز پيداكولې شى نو په دويم ځل يا په دريم ځل ولې نه شى كولې؟حالاتكه په عقلى اعتبار سره اعاده كول هم آسان دى. سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم. (١)

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت په دې دويمه جمله كښې دې: «ليس يعيدني كما بدأني» چه اول هم الله تعالى مخلوقات عالم پيداكړى دى او دوباره هم هغه په دې قدرت لرى، دهرځيز خالق هم هغه دې. (٢)

د باب څلورم او آخرى حديث هم د ابوهريره رضى الله عنه نه نقل دې:

## الحديث الخامس

٣١٩٤- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقُرَشِيُّ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَمَّا قَضَى اللَّهُ الخَلْقَ كَتَبَ فِي كِتَابِهِ فَهُوَ عِنْدَهُ فَوْقَ العَرْشِ إِنَّ رَحْمَتِي غَلَبَتْ غَضَبِي» [٦٩٦٩، ٦٩٨٦، ٧٠١٥، ٧١١٤، ٧١١٥] (٣)

## تراجم رجال

**قتيبه بن سعيد:** دا ابوالرجاء قتيبه بن سعيد بن جميل ثقفى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإيمان لاندې تيره شوې ده. (٤)

**مغيره بن عبدالرحمن قرشى:** دا مغيره بن عبدالله الرحمن بن عبدالله اسدى مدنى رحمه الله دې. د دوى د حالاتودپاره اوګورئى: (٥)

**قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لما قضى الله الخلق:** دحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه كله الله تعالى مخلوقات راپيداكړل........

**دقضا مختلف معانى:** د قضى معنى د خلق دې. لكه چه بل ځائى كښې ارشاد ربانى دې: ﴿فَقَضٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ﴾ (١)

---

(١) عمدة القارى: ١١٠/١٥ وفتح البارى: ٢٩١/٦ وإرشادالسارى: ٢٨٥/٥.

(٢) حواله جات بالا.

(٣) قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه البخارى أيضاً، فى التوحيد باب قول الله ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ﴾ رقم: ٧٤٠٤ وباب ﴿وَكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ﴾ رقم: ٧٤٢٢ وباب قول الله تعالى ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ﴾ رقم: ٧٤٥٣ وباب قول الله تعالى ﴿فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ﴾ رقم: ٧٥٥٤-٧٥٥٣ وابن ماجه فى الزهد باب مايرجى من رحمة الله يوم القيامة: رقم: ٦٩٢٦-٦٩٢٤

(٤) كشف البارى: ١٨٩/٢.

(٥) كتاب الاستسقاء باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم.....

او أو جد جنسه معنى كنبې هم كيدې شي. چنانچه د قضا اطلاق په ډيرو څيزونو اومعانى باندې كيږى لكه حكم جارى كول د يوكار نه فارغ كيدل، فيصله نافذ كول او پوخوالې اومضبوطوالې وغيره. دا ټولې معانى دلته چليدې شي. قاضى ته هم په دې وجه قاضى وئيلى شى چه هغه خپل حكم نافذ او جارى كولوسره د فريقين دمعاملې نه فارغ كيږى.(٢)

**قوله::كتب فى كتابه**: خپل كتاب كښې ئى اوليكل. كتب...... د أمر القلم په معنى كښې دې چه الله تعالى قلم ته حكم اوكړو چه لوح محفوظ اوليكه. اوس نيزدې دحضرت عبادة بن صامت ﷛ حديث تيرشوې دې چه ((فقال للقلم: اكتب، فجرى بما هو كائن)) په دې اعتبارسره د كتاب نه مراد لوح محفوظ دې.

خو دويم احتمال دادې چه د كتاب نه مراد هغه الفاظ دى د كوم د ليكلو چه فيصله كړې شوې وه يعنى دا جمله ((ان رحمتى سبقت غضبى)) دغه شان به د مكتوب معنى شى، ددې مثال دا ارشاد ربانى دې: ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾(٣) دلته مكتوب مراددې يعنى ﴿لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ په دې كښې د كتب معنى ده. ((قضى وأوجب))(٤)

**قوله::فهو عنده فوق العرش**: اوس دغه هغه سره دعرش دپاسه ليكلې شوى دى. يعنى هغه مكتوب يا كتاب دعرش دپاسه دې.

**ددې جملې مختلف مطالب**: بعض حضراتو (٥)فوق د دون (ښكته) معنى كښې اخستلو سره دا مطلب بيان كړې دې چه هغه څيز دعرش نه لاندې دې لكه چه د الله تعالى ارشاد ﴿بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا﴾(٦) كښې د فوق نه دون مراد دې يعنى د مچ نه هم وړوكې څيز. ددې مطلب اومفهوم خيال دادې چه يوڅيز د عرش دپاسه څنګه كيدې شى؟ په دې وجه فوق د دون په معنى كښې اخستې شوې دې. خو كه فوق په خپل ظاهر باندې كيخودې شى نوبيا څه حرج نشته دې. ځكه چه عرش هم بهرحال مخلوق دې.(٧)

دا هم احتمال دې چه د عند نه مراد ذكر يا علم وى نوبيابه عنديه مكانيه نه وى يعنى په يومخصوص طرف كښې به اشاره نه وى بلكه هغه طرف ته به اشاره وى چه هغه څيز په پوره توګه د خلقو نه پټ وى اودهغوى د ادراك اوشعور نه ماورا وى. دې نه علاوه بعض حضراتو دلته فوق زائده ګرځولې دې

---

(١) سورت فصلت آيت:١٢.

(٢) العمدة: ١٥/ ١١٠والفتح: ٦/ ٢٩٠وإرشادالسارى: ٥/ ٢٥١وأعلام الحديث للخطابى: ٢/ ١٤٧١.

(٣) سورت المجادلة:٢١.

(٤) العمدة: ١٥/ ١١٠والفتح: ٦/ ٢٩١ وإرشادالسارى:٥/ ٢٥١والتوضيح: ١٩/ ١٩.

(٥) قاله أبوعبيدة فى مجاز القرآن: ١/ ٣٥.

(٦) سورة البقرة: ٢٦.

(٧) ذكر ابن الأنبارى أن فوق من الأضداد. فهى بمعنى أعظم كقولك: هذا فوق فلان فى العلم وتأتى بمعنى دون. كقولك أن فلانا لقصير وفوق القصير انظر الأضداد ص: ٢٥٠ رقم: ١٥٣.

اوونيلی دی چه بعض وخت په کلام کښې ددې اضافه کولې شی مګر هغه لغو وی. ددې مثال په کلام الله کښې دا دوه آیاتونه دی: ﴿ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ ﴾ [1] او ﴿فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ﴾ [2]
په دې دواړو مقاماتو باندې کلمه فوق زائده ده چونکه د فوق نه بغیرد هم دلته معنی اومطلب صحیح دی.
مګر دااحتمال دلته بالکل صحیح نه دې. په آیت ذکرکړې شوی کښې که چرې فوق حذف کړې شی نو بیا هم ﴿اثْنَتَيْنِ﴾ د آیت دمفهوم واضح کولودپاره کافی دې خوکه په حدیث باب کښې داسې اوکړې شی نوعبارت به داسې شی ((فهوعندالعرش)) ددې فساد محتاج بیان نه دې.[3]
**راجح قول:** په دې دواړو اقوالو کښې راجح قول دا دویم قول دې. هم دا عینی، ابن حجر، ابن الملقن او کرمانی رحمهم الله وغیره اختیارکړې دې. ددریم قول فساد مونږ بیان کړې دې. ترکومې چه د اول قول تعلق دې چه د عرش دپاسه یوڅیز څنګه کیدې شی؟ نو په دې کښې هیڅ استبعاد نشته څکه چه عرش بهرحال مخلوق دې په دې کښې هیڅ استحاله نشته چه یوکتاب مخلوق هغې سره اولګی یا دهغې دپاسه پاتې شی. په روایاتوکښې راځی چه فرشتو عرش په خپلو اوږو باندې اوچت کړې دې. ښکاره خبره ده چه د اوچتولو دپاره ورسره لاس لګول یا مس کول ضروری دی او په دې کښې څه حرج نشته دې نود یوکتاب عرش سره لګیدل او دهغې دپاسه کیدو کښې هم څه حرج نه دی کیدل پکار.[4]

اوس به ددې جملې مطلب داشی ددې علم د عرش د پاسه الله تعالی سره دې په کوم کښې چه نسخ ممکن ده نه بدلون، یا داسې اووایئی چه ددې جملې ذکرد عرش دپاسه الله تعالی سره دې. لفظ علم یا لفظ ذکربه مقدر ګرځولې شی.[5]
**دتخصیص بالذکروجه:** دلته دا جمله مخصص بالذکرکولوڅه وجه ده؟حالانکه شاته تیرشوی دی چه قلم په لوح محفوظ باندې ټول هرڅه لیکلونه فارغ شوې. دخلقو عمرونه ئې هم لیکلی دهغوی رزق ئې هم لیکلې دهغوی انجام ئې هم اولیکلو نو دا جمله ئې ولې مخصص بالذکرکړې ده؟
.ددې جواب دادې په دې کښې رجاء کامل ده د امید لمن ده دې سره به دا امید لګیدلې وی چه الله تعالی به معافی اوکړی، د آسانئی معامله به اوکړی. بل دې سره ددې امر هم اظهار کیږی چه دهغه رحمت هرڅیز ته محیط دې. ابن الملقن رحمه الله فرمائی: ((وإنما اختص هذا بالذكر، وإن كان القلم كتب كل شيء لما فيه من الرجاء، فمن علم أنه نقبل هداه دخل في هذا، ومن أبي عاقبه، وختم على سمعه وقلبه))[6]

---

[1] ) سورت الأنفال: ١٢.
[2] ) سورت النساء:١١.
[3] ) فتح الباري: ٢٩١/٦وعمدة القاري: ١١١/١٥والتوضيح: ٢٠/١٩-١٩.
[4] ) حواله جات بالا. ابن الملقن رحمه الله ليکی: ((....على أن العرش مخلوق، ولا يستحيل أن بمسه كتاب مخلوق، فإن الملائكة حملة العرش، روى أن العرش على كواهلهم، وليس بمستحيل أن يمسوه إذا حملوه.....)) التوضيح: ٢٠/١٩وكذا انظر الأسماء والصفات للبيهقي: ٢٧٩/٢باب ماجاء في العرش والكرسي......
[5] ) فتح الباري: ٢٩١/٦وعمدة القاري:١١١/١٥والتوضيح: ٢٠/١٩.
[6] ) عمدة القاري: ١١١/١٥والتوضيح: ٢٠/١٩.

**قوله:: أن رحمتي غلبت غضبي**: زما رحمت زما په غصه او غضب باندې غالب دې. أن يا خو مفتوحه دې چه كتب سره بدل دې يا مكسوره دې د ابتداء د وجې نه چه دكتاب دمضمون حكايت كوي.[1] د كتاب التوحيد شعيب عن ابى الزناد روايت كښې غلبت په ځائې سبقت دې.[2]

**دَالله تعالى دَ پاره دَ غضب معنى**: غيظ اوغضب كوم چه مونږ په غصه سره تعبيركوو دا تول د قوت شهوانيه د هيجان په شكل كښې وقوع پذير كيږى. دادمخلوقات صفت دې د الله تعالى اوچت شان د دې امور شنيعه اوقبيحه نه منزه او بالا دى.

د الله تعالى د غضب معنى ددې لازمه ده يعنى كوم چه د غضب سبب جوړدې هغې ته عذاب رسول د هغه نه دبدلې اخستلو اراده كول ځكه چه سبقت اوغلبه دواړه په اعتبارِ دتعلق دى. مطلب دا چه د رحمت تعلق غالب او سابق دې په تعلق د غضب باندې. ځكه چه رحمت دَ هغه دمقدس ذات مقتضا دې ليكن غضب دَ عبد حادث د يوخراب او بد حركت نتيجه وى.

**يواشكال اودَ هغې جواب**: دې تقريرسره هغه اشكال هم ختم شو كوم چه بعض حضراتو دلته كړې وو چه دا ځنګه رحمت دې دكوم ظهور چه بعض مقاماتو كښې نه كيږى لكه موحدين (عصاة مومنين) چه هغوى به په اول خل باندې دوزخ كښې اچولې شى بيا به د انبياء كرام عليهم السلام وغيره په شفاعت باندې هغوى د هغه ځائى نه راويستلو سره جنت ته منتقل كولې شى. د هغوى په حق كښې خو هم د دغه رحمت ظهور كيدل پكاروو؟

خود پورته تقريرسره دا اشكال اوس لرې شو ځكه شروع د دغه عصاة مومنين نه شوې ده، كه ددوى نه د ګناهونو او بدو صدور نه كيدلو نودهغوى به دا انجام هم نه كيدلو. بيا به هم د الله تعالى رحمت په جوش كښې راځى اود الله تعالى د طرف نه به د سفارش اجازت ملاويږى د كوم په نتيجه كښې چه به دهغوى سزا ختميږى ګنى هلته د چا څه مجال چه رف اووهلى شى.[3]

د بعض حضراتو يوقول داهم دې چه د غلبه معنى كثرت اوشمول هم ده. چنانچه ونيلى شى ((غلب على فلان الكرم)) دكوم معنى چه هم دغه ده چه دهغه نه اكثروختونو كښې هم كرم اوسخاوت صادر كيږى.

**دَ حديث شريف يو بله توجيه**: پورتنې تول تفصيل په دې اعتبارسره دې چه رحمت اوغضب ته د ذات صفتونه اوونيلې شى خو بياهم بعض علماء كرامو فرمائيلى دى چه رحمت او غضب د صفات افعال نه دى نه چه د صفات ذات نه. بل د بعض افعالو په بعض باندې دتقدم سره څه شئ مانع نه وى. نواوس به داسې ونيلى شى چه د رحمت په ذريعه د پيداكيدونه پس حضرت آدم عليه السلام په جنت كښې د حصاريدلو طرف ته اشاره كړې شوې ده اوددې په مقابله كښې د جنت نه دهغه ويستل اوددنيا طرف ته راليګل دى.[4]

هم دغه حال د تولو امتونوياتې دې. الله تعالى د رحمت د صفت مظاهره كولوسره هرامت او قوم ته بنه

---

[1]) فتح البارى: ٢٩١/٦ وعمدة القارى: ١١١/١٥.

[2]) صحيح البخارى كتاب التوحيد، باب ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ رقم: ٧٤٢٢.

[3]) فتح البارى: ٢٩٢/٦ وعمدة القارى: ١١١/١٥ وإرشادالسارى: ٢٥١/٥.

[4]) فتح البارى: ٢٩٢/٦ عمدة القارى: ١١١/١٥ أرشادالسارى: ٢٥١/٥ وشرح ابن بطال: ٣٩٥/١٠ كتاب التوحيد رقم: ٣٩١٨ وشرح النووى على صحيح مسلم: ٦٧/١٧

ورکړه اوکړه، ترقي ورکړه په رزق کښې فراخي او وسعت ورکړو بیاچه کله هغوی په کفرباندې ملا اوتړله اود الله تعالی ناشکری کول شروع کړه نودهغه عذاب په هغوی باندې راغلو. چنانچه د رحمت نزول او مظاهره همیشه شروع شوې بیا په ناشکرئی باندې رانیول اوشو. عصاة مومنین په دوزخ کښې اچول اوبیاچه د راویستلو ترکومې پورې تعلق دې دا هم د ډیرزیات رحمت مظهردې که چرې دا دومره ډیر رحمت نه وې نوهغوی به همیشه په دوزخ کښې پراته وې.([1])

**بغیرد استحقاق د الله تعالی د رحمت حصول:** علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه د رحمت په سبقت کښې دې امر طرف ته اشاره ده چه په مخلوق کښې د هغه حصه په نسبت دحصې د غضب زیاته ده. بل ددې خبرې طرف ته هم اشاره ده چه دالله تعالی رحمت بغیرد استحقاق هم حاصلیدې شي بلکه کیږي د روز مره مشاهده په دې باندې شاهدعدل دې. مگر غضب بغیرد استحقاق نه نه کیږي. چنانچه د الله تعالی رحمت هغه وخت هم بنده سره شامل حال وی کوم وخت چه هغه د مور په خیټه کښې وی. بیا چه کله د پینو څکلو زمانه راځی. بیا چه کله هغه په مزه مزه ترقی کوی لوئیږي. حالانکه تردغه وخته پورې هغه د نیکئی څه کار نه وی کړې. اود الله ﷻ غضب هغه وخت نازلیږي کوم وخت چه دهغه نه د ګناهونوصادرکیدل کیږي.هم ددغه ګناهونوپه وجه هغه د الله ﷻ دعذاب مستحق کیږي ددې نه وړاندې هیڅ کله نه کیږي. چنانچه لیکی «فی سبق الرحمة إشارة إلی أن قسط الخلق منها أکثر من قسطهم من الغضب، وأنها تنالهم من غیر استحقاق، وأن الغضب لاینالهم إلا باستحقاق، فالرحمة تشمل الشخص جنینا، ورضیعا، وفطیما، وناشئا قبل أن یصدر منه شیء من الطاعة، ولا یلحقه الغضب ألا بعد أن یصدر عنه من الذنوب ما یستحق معه ذلك».([2])

**یوه اهمه فائده:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه داحدیث، حدیث قدسی دې کوم چه الهیات سره هم تعبیرکولې شي. علامه کورانی حنفی رحمه الله فرمائی چه دې قسم احادیثوته احادیث قدسیه وئیلی شی څکه چه په دې کښې الفاظ د الله تعالی رب العزت د طرف نه القاء کولې شي. لیکن هغه الفاظ د قرآن کریم په شان معجز نه وی. کوم خلق چه دا وائی چه حدیث قدسی هغه حدیث ته وائی کوم چه الله تعالی دخپل نبی په زړه کښې الهام کوی اوهغه دا په خپلو الفاظو کښې تعبیر کولوسره بیانوی نودا تعریف صحیح نه دې څکه چه په دې صورت کښې حدیث قدسی د تخصیص څه وجه نشته دې. چونکه دنبی هریو کلام الهام من الله وی نود حدیث قدسی څه خاصیت نه معلومیږي.([3])

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله کښې دې: «لما قضی الله الخلق»([4]) په دې کښې دتخلیقات د ابتداء طرف ته اشاره ده. والله اعلم.

**د ابلیس او شیخ تُستری مناظره:** حضرت کشمیری رحمه الله نقل کړی دی چه ابلیس او مشهور صوفی بزرګ شیخ عبدالله تستری رحمه الله مناظره اوشوه. نو ابلیس اووئیل چه ته وائې ماته به د دوزخ عذاب راکولې شي نودا به څنګه کیږي؟ حالانکه الله تعالی پخپله دا خودلی دی چه زما رحمت هرشي ته

---

[1]) فتح الباري: ۲۹۲/۶.

[2]) انظر شرح الطیبي: ۲۹۷/۱۰رقم: ۵۷۰۰کتاب أحوال القیامة باب بدء الخلق.... فتح الباري: ۲۹۲/۶وعمدة القاري: ۱۱۱/۱۵وإرشادالساري: ۲۵۱/۵ولکن الإمام القسطلاني رحمه الله نسبه إلی التوربشتي، ولم أجده عنده فی کتاب المیسر له، والله أعلم. لعله فی مصنف آخر له، غیر کتاب المیسر.

[3]) الکوثر الجاري: ۱۶۰/۶.

[4]) عمدة القاري: ۱۱۱/۱۶.

شامل دي. دهرشي؛ پورې زما رحمت خور شوي دې. نو ولې زه په شي؛ کښې هم داخل نه يم؟ نوزه ولې د الله تعالى په رحمت کښې داخل نه يم؟

تسترى رحمه الله په جواب کښې اوفرمائيل چه رحمت دالله تعالى خو دهغه خلقو دپاره دى. څوك چه مونځ کوى زکوة ورکوى او په خپل رب باندې ايمان کامل ساتى اونه دې نه يئى نه، په تا کښې دا صفات نشته دې په دې باندې ابليس مسکې شو وئى وئيل ما خو ته لوئى عالم فاضل اوعارف بالله گنړلې مگر تاته خو هيڅ نه درځى. تاخو دالله تعالى صفات مطلقه مقيد کړل. الله تعالى خو قادر مطلق دې خالق مطلق دې دغه شان رحيم مطلق هم دې او ته دهغه صفات مقيد کوې؟ دغه شان تسترى لاجواب شو دهغه نه څه جواب جوړ نه شو.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى چه پته نشته تسترى رحمه الله ولې لاجواب شو؟ البته د دغه لعين ددې ارشاد بارى تعالى سره څه تعلق؟ په حديث قدسى کښې خو صرف د الله تعالى د رحمت وسعت بيان کړې شوې دې لکه چه هغوى وائى په دې حويلى کښې زر بنديان راتلې شى سره ددې چه په دې کښې فى الحال څوك هم نه وى. چنانچه په دې مثال کښې د حويلئى گنجائش خودلې شوې دې ددې مطلب هيڅ کله دا نه دې چه په دې کښې بالفعل زر بنديان موجود دى.

دغه شان دالله تعالى رحمت هم ټول کائناتو ته شامل دې ابليس لعين ته هم شامل دې. نو که هغه ددې رحمت لاندې داخليدل غواړې. د رحمان د چهترئى لاندې راتلل غواړى نوهغه به د الله تعالى رحمت هيڅ کله تنگ نه وينى. خو که چرې دا بدبخت خپل ځان پخپله د هغې د داخليدو نه منع کړى او په هغې کښې نه راځى نو په دې کښې د الله تعالى د رحمت څه قصور دې؟ ﴿أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَارِهُونَ﴾ (سورت هود آيت: ۲۸.)[1]

## ۲- ماجاءَفى سَبعِ أَرَضِينَ

**ماقبل سره مناسبت:** په تيرشوى باب کښې اجمال وو، مطلقاً په مخلوقات ربانى باندې خبره کيدله. ددې ځائى نه امام بخارى رحمه الله د يوڅو مشهور تخليقات ذکرکوى چه د ټولو مخلوقاتو احاطه او استقصاء خو ناممکن ده اود انسانى حد اوطاقت نه بهرځيز دې. چنانچه د ټولو نه اول ارض (زمکې) ذکر کوى دکوم په ضمن کښې چه به د آسمانونو ذکر هم راځى. چونکه دا دواړه لازم اوملزوم دى عموماً د دواړو ذکر هم يو ځائى کولې شى.

**دترجمة الباب مقصد:** ① حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه د سبع ارضين ترجمه قائمولوسره حضرت مؤلف رحمه الله د زمکو دتعدادباره کښې د اختلاف طرف ته اشاره کړې ده، په دې باره کښې خپله فيصله هم صادر کړې ده چه دا هم اووه دى او په دې کښې بل د يوقول څه حيثيت نشته دې. چنانچه د آيت مبارك او د باب لاندې ذکر کړې شوې احاديث په دې امر کښې صريح دى چه دآسمانونو په شان زمکې هم اووه دى.[2]

② دحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائى داهم ده چه امام بخارى رحمه الله دې ترجمه سره تفضيل الارض على السماء يا ددې عکس تفضيل السماء على الارض بيانول غواړى. تفصيل وراندې راځى.[3]

---

[1]) فيض البارى: ٤/٣٠٤-٣٠١.

[2]) الكنزالمتوارى: ١٢٢/١٣وتعليقات اللامع: ٣٣٧/٧.

[3]) الكنزالمتوارى: ١٢٢/١٣وتعليقات اللامع: ٣٣٧/٧.

④ حضرت گنگوهي رحمه الله فرمائي چه د ترجمه مقصد دا خودل دی چه زمکه هم د الله تعالی مخلوق دي قديم نه دي دغه شان آسمان او هر لوني ورو کي څيز د الله تعالى مخلوق دي.[1]

وَقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا﴾ /الطلاق: ۱۲/. ﴿وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ﴾ /الطور: ۵/ السماء. ﴿سَمْكَهَا﴾ /النازعات: ۲۸/ بِنَاءَهَا، كَانَ فِيهَا حَيَوَانٌ. ﴿الْحُبُكِ﴾ /الذاريات: ۷/ اسْتِوَاؤُهَا وَحُسْنُهَا. ﴿وَتَخَلَّتْ﴾ /الانشقاق: ۵/ سَمِعَتْ وَأَطَاعَتْ. ﴿وَأَلْقَتْ﴾ أَخْرَجَتْ مَا فِيهَا مِنَ الْمَوْتَى ﴿وَتَخَلَّتْ﴾ /الانشقاق: ۴/: عَنْهُمْ. ﴿طَحَاهَا﴾ /الشمس: ۶/: دَحَاهَا. ﴿بِالسَّاهِرَةِ﴾ /النازعات: ۱۴/: وَجْهُ الْأَرْضِ، كَانَ فِيهَا الْحَيَوَانُ، نَوْمُهُمْ وَسَهَرُهُمْ.

**وَقَوْلِ اللهِ تَعَالَى**: ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ اود الله تعالى قول چه هم الله دي چاچه اووه آسمانونه پيدا كړل او ددي په شان ئي اووه زمكي.

**اووه زمكي ښكته پورته يا خپل مينځ كښي ملاؤشوى دى؟** ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ......﴾ نه معلوميږى چه الله تعالى څنگه اووه آسمانونه پيدا كړى دغه شان اووه زمكي هم پيدا كړى دى. اگرچه اكثر مواضع كښي خلق السموات په مقابله كښي خلق ارض كښي د واحد صيغه استعمال كړې شوه. د كوم نه چه هم دغه متبادر دى چه آسمانونه اووه دى او زمكه هم يوه طبقه ده. ليكن په دې آيت كښي دا تصريح واقع شوې ده لكه چه څنگه اووه آسمانونه دى، زمكي هم اووه دى لكه چه دې باب كښي دى.

بل جامع ترمذى او بعض سنن [2] په رواياتو كښي دى چه دا اووه زمكي د آسمانونو په شان قط په قط نه وى بلكه احتمال دادې چه په اعتبارد بعض حالاتو وى او بعض حالاتو كښي ممكن دى چه هغه ددې زمكي نه پورته وى. لكه مريخ وغيره د كوم په نسبت چه د نن صبا د يورپ د حكماء خيال دې چه په هغې كښي غرونه دريابونه او آبادنى دى. اودا هم كيدې شى چه دا زمكي قط په قط وى د يو بل د پاسه وى زمونږ دا موجوده زمكه د ټولو دپاسه وى. د سنن ثلاثه وغيره د يو روايت نه هم ددې تائيد كيږى او هم دغه راجح دې.[3] نودغه شان د اووه زمكو شمير پوره كيدې شى. باقى دا مسئله خونه دا صول دين نه ده چه په دې باندې پوره شان سره ځان پوهه كړې شى او ددې د تحقيق كولو نه

---

[1] حواله جات بالا.

[2] حافظ ابن كثير رحمه الله د سبع ارضين احاديث نقل كولونه پس ليكى (فهذه الأحاديث كالمتواترة فى إثبات سبع أرضين والمرادبذلك أن كل واحدة فوق الأخرى). البداية والنهاية ۴۳/۱.

[3] د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د يو طويل روايت په آخره كښي دى حضور پاك د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه تپوس اوكړو: (هل تدرون مالذى تحتكم؟ قالوا: الله ورسوله أعلم قال: إن تحتها أرضا أخرى، بينهما مسيرة خمس مئة سنة، حتى عد سبع أرضين، بين كل أرضين مسيرة خمس مئة سنة،، ثم قال: والذى نفس محمدبيده، لو أنكم دليتم بحبل إلى الأرض السفلى لهبط على الله. ثم قرأ: ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾). رواه الترمذى كتاب التفسير، باب ومن سورة الحديد رقم: ۳۲۹۸ وأبوداؤد رقم: ۴۷۲۳ وابن ماجه، رقم: ۱۹۳ ومسندأحمد: ۳/۳۷۲-۳۷۱ رقم: ۸۸۱۴ ومشكوة المصابيح رقم: ۵۷۳۵ باب بدء الخلق. الفصل الثالث. د دې حديث نقل كولونه پس حجة الاسلام حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوى قدس الله سره ليكى: د دې حديث نه علاوه دا زمكه په ټولو كښي پورته ده د اووه زمكو كيدل او هغه هم ښكته پورته كيدل او د هرې يوې زمكې د بلې زمكې پورې اووه وارو زمكو كښي د پنځه پنځه سوو كالو مسافت كيدل په تصريح سره ثابت دى. تحذير

بغير ايمان كامل نه وى نوضروري نه ده چه مونږ ددې هم داسې تحقيق او تشريح پابند يو لكه څنګه چه د اسلام د نورو اصولو اجمالاً دغه شان تصور د كوم طرف ته چه اشاره كړې شوې ﴿ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ ﴾ مفهوم باندې پوهيدلو دپاره كافي دې..

**دَاووه زمكوسره متعلق روايت دَ ابن عباس رضي الله عنهما تحقيق:** تر كومې چه ددې روايت تعلق دې كوم چه د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه موقوفًا نقل دې.(¹) په كوم كښې دادى چه دا اووه زمكې دى د كومې نه چه په هره زمكه كښې آدم دې. ستاسو د آدم په شان او نوح دې دحضرت نوح عليه السلام په شان او ابراهيم دې د حضرت ابراهيم عليه السلام په شان او عيسٰى دې د حضرت عيسٰى عليه السلام په شان . نو محدثينو په اصول سره دا روايت شاذ دې. قابل اعتبار او صحيح نه دې شمير كړې شوې. په دې وجه ددې تحقيق او تجسس كښې د پريوتو په ځائې بهتره هم دغه ده چه د الله تعالى د علم حواله كړې شى.

كيدې شى په هغه زمانه كښې چا سرې د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د بيان كړې شوى اثر په رڼا كښې په څه شك او وهمونو كښې د خلقو اخته كولو كوشش كړې وى پائى دا كوشش كړې وى چه ددې روايت نه معلوميږى چه د رسول الله ﷺ نبوت سره (العياذ بالله) د يوبل نبوت هم امكان دې. په دې وجه مناسب ده چه ددې په يوه اندازه باندې تحقيق اوكړې شى دې دپاره چه دا قسم باطل وهمونو څه امكان پاتې نه شى. امام بيهقى د ابن عباس رضي الله عنهما ددې روايت راويان معتبر كيدو په سبب اسناد ته قابل د اعتبار خو اوئيل مګر د محدثينو او اصوليين د يومسلمه قانون په رڼا كښې دا حديث د نورو معروفه احاديثو خلاف دې. په دې وجه باندې شاذ اومعلول دې. او شاذ احاديث محدثينوحضراتو قابل اعتبار نه دى ګڼرلى. دلته د حضرت مولانا محمد ادريس كاندهلوى رحمه الله يو قيمتى تحقيق قارئينوته وړاندې كولې شى. دا تحقيق الحمدلله د ايمان اواستقامت ضامن اوكفيل دې. فرمائى: د اسلام دعوت دَدې زمكې نه علاوه د زمكې په نورو طبقاتو كښې د كتاب اوسنت نه چرته ثابت نه دې. كه چرې وې نو ضرور به په دې باره كښې څه نص راغلې وې او حضورپاك به هغه خامخا بيانولو. په دې وجه علماء كرامو دا اثر باوجود د صحيح الاسناد كيدو نه شاذ خودلې دې اوكه چرې صحيح هم اومنلې شى نو ددې مختلف تاويلونه كيدې شى:

**تاويل نمبر ①:** ممكن دى چه مراد دا وى چه د زمكې په هره طبقه كښې يو هادى وى چه ددې طبقې د نبى په نوم ئې نوم وى. نو په دې تحتانى طبقاتو كښې ادم، نوح، موسى، عيسى اومحمد رسول الله عليهم السلام په نومونوسره هادى وى. چه په حقيقت كښې انبياء نه وو بلكه صرف هادى وو اوددې

---

الناس: ۶۷ ، حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله هم دا اختيار كړې ده الكنز المتواري: ۱۲/۱۲۳ نور اوګورئى فتح البارى: ۲۹۳/۶ وعمدة القاري: ۱۱۱/۱۵.

(¹) الحديث أخرجه الحاكم فى المستدرك: ۵۳۵/۲ رقم: ۳۸۲۲ وكتاب الأسماء والصفات للبيهقى مع تعليقاته للحاشدى: ۲۶۷/۲ رقم: ۸۳۲ باب بدء الخلق. وقال البيهقي: إسناد هذا عن ابن عباس رضى الله عنهما صحيح، وهو شاذ بمرة (يودم شاذ دې) لا أعلم لأبى الضحى عليه متابعا، والله أعلم. وذكره السيوطي فى تدريب الراوى فى باب الشاذ: ۲۳۳/۱، وقال: ولم أزل أتعجب من تصحيح الحاكم له، حتى رأيت البيهقى قال: إسناده صحيح ولكنه شاذ بمرة (چه يودم شاذ دې). نور اوګورئى تحذير الناس: ۸۲-۸۴ حضرت ابن عباس دَ اثر تحقيق.

طبقې په شان نومونه ئې وو او په څه اعتبارسره ددې طبقې د انبياء او رسولانو مشابه وو. لکه چه په حديث کښې دی: «علماء أمتي كأنبياء بنى إسرائيل»[1]
او په مشابهت سره مماثلت اومساوات لازم نه راځي چه مشبه د مشبه به مماثل او برابر وی. لهذا په دې سره داخبره ثابتول چه د نبی کريم ﷺ هم څوك مثل او يوشان دې په يوشان سره صحيح نه ده.. بل د الله تعالی د دې قول ﴿إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ نه معلوميږی چه نبوت اولاد آدم سره مخصوص دې اود جمهور علماؤ هم دغه قول دې چه په جناتو کښې رسول نه دې راغلې. دتحتانی طبقات اوسيدونکی هم ددې زمکې د طبقې د پيغمبرانو تابع پاتې دی.[2]
**تاويل نمبر④:** داهم ممکن دی چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما مراد دا وی چه څنګه د زمکې په دې طبقه کښې د نبوت سلسله جاری وه دغه شان د زمکې په تحتانی طبقات کښې هم د هدايت دپاره د نبوت او بعثت سلسله جاری وی. اوڅونکه په عقلی دلائلو اونقلی دلائلو د سلسله غير متناهی کيدل باطل دی. په دې وجه ضروری شو چه په هره طبقه کښې به يو مبدا سلسله وی چه زمونږ د آدم عليه السلام مشابه وی او يوه آخری سلسله وی کومه چه زمونږ د خاتم النبيين ﷺ مشابه وی. پس په دې بنا به طبقات تحتانيه په اواخر انبياء باندې به د خواتم اطلاق صحيح وی. مګر د هغه خاتميت به دهغه طبقې سره مخصوص وی عام به نه وی. بلکه اضافی به وی اوزمونږ د خاتم الانبياء خاتميت عام تام مطلق او دائم وی څکه چه دحضورپاك ﷺ دعوت اوبعثت عام دې هيڅ فرد بشر ددې نه مستثنی نه دې لهذا د عقائدو مطابق اهل سنت سره دا عقيده لرل پکار دی چه حضورپاك خاتم النبيين دې اود حضورپاك نبوت اورسالت عام دې اود قيامته پورې تام او په جن او انس باندې د رسول الله ﷺ د شريعت تابعداری کول فرض اولازم دی. بالفرض والتقدير که دحضورپاك په زمانه کښې د زمکې په يوه طبقه کښې څوك نبی هم وې نوهم د حضورپاك د شريعت متبع به وې اوهغه به صرف هم د خپلې طبقې خاتم وی. بل دهغه خاتميت به اضافی وی اود حضوراکرم خاتميت عام، تام او دائم دی. حضورپرنور ﷺ چه د زمکې په کومه طبقه باندې مبعوث شو په هغه طبقه د زمکې باندې چه څوك هم د نبوت دعوی کوی هغه به دمسيلمه په شان بيشکه او بې شبې دجال کذاب وی. مسيلمه که د يمن وی اوکه د پنجاب دټولو هم يوحکم دې. اود طبقات تحتانيه په خواتم کښې عقلاً درې احتماله دی. اول دا چه هغه خواتم د نبی کريم د نبوت د زمانې نه پس وی. دا احتمال قطعاً باطل دې څکه چه حديث «لانبی بعدی»[3] په دې باره کښې نص صريح دې. دويم احتمال دادې چه دنورو خواتم نه مقدم وی او دريم احتمال دا چه هغه د حضورپاك په زمانه کښې وی. په دې صورت کښې ضروری دی چه هغه به خامخادشريعت محمديه متبع وی اود هغه خاتميت به اضافی وی اوزمونږ دخاتم الانبياء ﷺ خاتميت او دعوت به عام اوتام وی. بهرحال که خاتميت حقيقی وی اوکه اضافی د ظهور خاتم نه پس په هره

---

[1] دا بې اصل او موضوع روايت دې. كشف الخفا: ۶٤/۲ والمصنوع فى معرفة الحديث الموضوع: ۱۲۳ دنور تفصيل دپاره اوګورئی کشف الباری کتاب العلم: ۲۳۷/۳.

[2] کشاف اصطلاحات الفنون: ۲۶۱/۱۱.

[3] الحديث متفق عليه عن رواية أبی هريرة، صحيح البخاری رقم: ۳٤۵۵ وصحيح مسلم رقم: ۱۸٤۲ ومشكوة المصابيح كتاب الإمارة رقم: ۳۶۷۵ ومسند الإمام أحمد: ۸۳/٤ رقم: ۱۱۲۹۲ مسند أبی سعيد الخدری: ۲۲۵/۷ رقم: ۲۳۷۵ مسند حذيفة بن اليمان.

طبقه د زمکې کښې به د نبوت دعوی کفر او دجل وی. او دهرې طبقې مدعی نبوت به کذاب اودجال او مسیلمه او اسودعنسی په شان واجب القتل وی. او علی هذا کوم سړی چه د حضورپاک نبوت اودعوت هم دې طبقې د زمکې سره مخصوص ګڼړی اود هرې طبقې خاتم صاحب شرع جدید ګڼړی نو بیشکه کافر اودجال دی.

**تاویل نمبر③**: داهم وئیلې کیدې شی لکه چه بعض علماء داوائی چه د ابن عباس رضی الله عنهما دا قول په عالم مثال باندې محمول دې چه په هره طبقه د زمکې کښې ددې طبقې د زمکې په شان صورمثالیه او اشباه او امثال موجود دي لکه څنګه چه د ابن عباس رضی الله عنهما یو روایت ددې معنی تائید کوی. هغه دا چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه یو روایت کښې داهم راغلی دی چه په دې زمکوکښې زما په شان ابن عباس هم دې او په هره زمکه اوهر آسمان کښې یوه خانه کعبه موجود ده. دغه شان په زمکه اوآسمانونوکښې څوارلس خانه کعبې موجود دی.(١) د حضرات اهل کشف په نیز دا روایت صحیح دې او عالم مثال یعنی رؤیت مثالیه باندې محمول دې. او فتوحات مکیه کښې ددې قسم مثالونه په کثرت سره موجود دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.(٢)

**دَ جدید فلاسفه نظریه**: د قرآن اوحدیث نه ثابته ده چه اووه آسمانونه دی او اووه زمکې دی. ددې زمانې فلاسفه د آسمان دَ وجود خو د سرنه هډو قائل نه دی اود زمکې متعلق داوائی چه صرف هم یوه زمکه ده اود اووه زمکو قائل نه دی. بل د هغوی منل دی چه په فضاکښې دا کوم شین بخن رنګ ښکاری داد فضا یا ایتهر رنګ دې څکه چه لوئی لوئی رانیزدې کونکی دوربینونونه سوا دکواکب په فضا کښې بل څه وجود په نظر نه راځی.

**دمغالطه مذکوره جواب**: ددې جواب دادې چه د یوڅیزپه نظرنه راتلل د نه کیدو دلیل نه شی کیدې ممکن ده چه د لریوالی د مسافت د وجې نه آسمان په نظرنه راځی په دې وجه دا انکار د التفات قابل نه دې. بل د عصر د فلاسفه مذهب دادې چه ددې فضاء او خلا څه انتها نشته دې او ښکاره خبره ده چه د خوردبین رسائی غیرمحدود نه ده. نو ممکن ده چه آسمان د دغه غیرمحدود فضاء او غیر متناهی خلا دننه په دومره فاصله باندې واقع وی چه د لریوالی د مسافت د وجې نه دخوردبین رسائی نه شی کیدې او دا شین رنګ کوم چه مونږ ته ښکاری هغه ددنیا د آسمان پلستر وی. کتونکوته خو اصل عمارت نه ښکاری بلکه دهغې پلستر ښکاری.

دغه شان د فلاسفه د اووه زمکو د وجود نه انکار کول هم بالکل بې دلیل دی. څنګه چه یوه زمکه موجود کیدې شی دغه شان اووه زمکې هم موجود کیدې شی. د اووه زمکو وجود عقلاً محال او ممتنع نه دې. بل چونکه مخبر صادق صلی الله علیه وسلم مونږ ته ددې د وجود خبر راکړې دې. (٣)لهذا په دې باندې

---

(١) تفسیر روح البیان: ٨١/٣سورة الأنعام، الآیة: ١٣٠.

(٢) معارف القرآن کاندهلوی بتصرف یسیر: ١٦١/٨-١٥٩سورة الطلاق: آیت: ١٢بل اوګورئی تحذیر الناس عن انکار اثر ابن عباس: ٧٦-٦٤.

(٣) وعن أبی هریرة رضی الله عنه قال: بینما نبی الله صلی الله علیه وسلم جالس وأصحابه، إذ أتی علیهم سحاب، فقال نبی الله صلی الله علیه وسلم: هل تدرون ما هذا؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: هذا العنان، هذه روایاالأرض، فیسوقهاالله إلی قوم لایشکرونه، ولا یدعونه، ثم قال: هل تدرون ما فوقکم؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: فإنها الرقیع، سقف محفوظ وموج مکفوف. ثم قال: هل تدرون کم بینکم وبینها؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: بینکم وبینها خمس مئة عام. ثم قال: هل تدرون ما فوق ذلک؟ قالوا الله ورسوله أعلم. قال: سماء ان بعد ما بینهما خمس مئة سنة. ثم قال کذلک، حتی عد سبع سموات، ما بین کل سمائین ما بین السماء والأرض. ثم قال:

ايمان راوړل ضروري دي. د فلاسفه بې دليل خبرو سره په قرآن اوحديث كښې شكونه اووهمونه پيدا كول يومسلمان ته زيب نه وركوي.(١)

**اسمان غوره دې كه زمكه؟** په دې كښې د علماء اسلاف اختلاف دې چه آسمان غوره دې كه زمكه؟ د اكثروشوافع علماؤ رائې داده چه آسمان غوره دې په دې وجه چه په دې كښې د الله تعالى نافرمانى نه ده كړې شوې. ابليس لعين بيشكه د سجدې نه انكاركړې وو مګر هغه هم يوه واقعه ده چه د شاذ اونادر په درجه كښې به ګرځولې شى په نسبت د هغه ډيرو زياتو واقعاتو په مقابله كښې كومې چه په زمكه كښې واقع كيږى. او په زمكه باندې خوهروخت د الله ﷻ د معصيت اونافرمانئى سلسله جارى ده لهذا آسمان غوره دې. يو قول دادې چه زمكه غوره ده دا قول هم د اكثرو حضراتو نه نقل كړې شوې دې ځكه چه داد انبياء كرامو عليهم السلام دخښيدو ځائى دې. د ابن حجرمكى هيثمى رحمه الله (٢) فتاوى حديثيه كښې دى:

«سئل–نفع الله به–أيما أفضل: السماء أو الأرض؟ فأجاب بقوله: الأصح عند أئمتنا، ونقلوه عن الأكثرين: السماء، لأنه لم يعص الله فيها، ومعصية إبليس لم تكن فيها، أووقعت نادرا، فلم يلتفت إليها. وقيل: الأرض، ونقل عن الأكثرين أيضا، لأنها مستقر الأنبياء ومدفنهم» (٢).

دمذهب مالكيه مشهور كتاب الشرح الكبير كښې دى. «الأكثر على أن السماء أفضل من الأرض، والله أعلم بحقيقة الحال» (٣) علامه نووى رحمه الله فرمائى چه داكثرجمهورعلماؤرائې داده چه آسمان د زمكې نه غوره دې.

خوبيادې هم دا خبره واضحه وى كه چرته آسمان ته د زمكې نه غوره اووئيلې شى نوهغه بقعه مباركه چرته چه سرور دوعالم حضوراكرم ﷺ آرام فرما دې هغه به مستثنى كولې شى. چونكه علماؤ ليكلى دى چه هغه بقعه شريفه چرته چه رسول الله ﷺ آرام فرما دې هغه دټولو مخلوقاتو نه افضل دې. تردې چه دعرش اوكرسئى نه هم افضل دې. عرش اوكرسئى هم مخلوق دې. اوس كه د محمد رسول الله ﷺ د فضيلت د وجې نه هغه بقعه چرته چه رسول الله ﷺ آرام فرما دې دعرش اوكرسئى نه افضل شى نو په دې كښې د حيرانتيا هيڅ خبره نه ده. ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى: «والخلاف فيما عدا موضع القبر المقدس، فما ضم أعضاءه الشريفة فهو أفضل بقاع الأرض بالإجماع، حتى من الكعبة، ومن العرش على ما صرح به بعضهم، وقد صرح التاج الفاكهي بتفضيل الأرض على السماء، لحلوله صلى الله عليه وسلم بها، وحكاه بعضهم عن الأكثرين، لخلق الأنبياء منها، ودفنهم فيها. وقال النووي: الجمهور على تفضيل السماء» (٤)

---

هل تدرون ما فوق ذلك؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: إن فوق ذلك العرش، وبينه وبين السماء بعد ما بين السمائين. ثم قال: هل تدرون ماالذى تحتكم؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: إن تحتها أرضا أخرى، بينهما مسيرة خمس مئة سنة، حتى عد سبع أرضين، بين كل أرضين مسيرة خمس مئة سنة، ثم قال: والذى نفس محمدبيده، لو أنكم دليتم بحبل إلى الأرض السفلى لهبط على الله، ثم قرأ: ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ الحديث، مر تخريجه آنفا.

(١) معارف القرآن كاندهلوى بتصرف :١٦١/٨فيض البارى:٣٠٣/٣.

(٢) الكنز المتوارى: ١٢٤/١٣والفتاوى الحديثية: ٢٤٨ رقم: ١٨٦مطلب فى أيما أفضل: السماء أو الأرض؟

(٣) حاشية الدسوقى مع الشرح الكبير:٤٧٤/٢باب الأيمان، فصل فى النذر.

(٤) الكنز المتوارى: ١٢٤/١٣وشرح المناسك لعلى القارى: ٥٣٢ باب زيارة سيدالمرسلين ﷺ فصل.

حضرت الامام خليل احمد سهارنپوری ﷫ فرمائي. «فإن البقعة الشريفة الرحبة المنيفة، التي ضم أعضاءه صلى الله عليه وسلم أفضل مطلقا، حتى من الكعبة ومن العرش والكرسي، كما صرح به فقهاؤنا رحمهم الله» (١)

حضرت اقدس شيخ الاسلام مولانا محمد قاسم نانوتوی ﷫ خيال هم دې طرف ته دې چه زمکه د آسمان نه افضل ده. د دې تصريح هغوی په خپل نعتيه كلام قصيده بهاريه كښې فرمائيلې دې. (٢)

**يو اشكال او دهغې جواب:** كه چرته څوك اووائي چه الله تعالى په عرش باندې دې محمد فرش باندې دې. تاسو فرش ته افضل وايئ چونكه هغه مكان د محمد ﷺ دې حالانكه عرش افضل كيدل پكار دی ځكه چه هغه مكان د الله تعالى دې. نو ددې جواب دادې چه الله تعالى د مكان په قيد سره مقيد نه دې، محمد ﷺ خو بدن دې هغه د مكان د قيد سره مقيد دې ليكن الله تعالى د مكان قيد سره مقيد نه دې په دې وجه دا دليل قابل قبول نه دې. خبره هم هغه ده چه دا ټول څيزونه مخلوق دی محمد رسول الله ﷺ هم مخلوق دې، حضور پاك افضل الخلائق دې نو د هغوی بدن مبارك به هم افضل الخلائق والاجسام وی. دغه شان كوم ځائی سره چه رسول الله ﷺ لګيدلې وی هغه به افضل الامكنه والبقاع وی.

**يو اهم فائده:** د قرآن كريم د اعجاز او بلاغت يو اړخ دا هم دې چه بعض الفاظ او كلمات داسې دی د كوم عموم چه بلغاء او فصحاء نه استعمالوی. د هغې استعمال د بلاغت خلاف ګڼړلې شی لكه د ارض دوه جمعې راځي "إراضي" او "أرضون" يا "أرضين" نو دا دواړه جمعې داسې دی چه اهل عرب په كلام بليغ كښې ددې استعمال نه كوی او دا دواړه كلمات ثقيل ګڼړی.

پورته په آيت كريمه كښې دا مضمون بيان كړې شو چه اووه آسمانونه او اووه زمكې الله تعالى پيدا كړی. اوس كه چرې فرمائي: سبع أرضين يا سبع أراضي نو دا د كلام بلغاء نه خلاف كيږی په دې وجه الله تعالى چه كوم تعبير اختيار كړې دې هغه دادې: ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ چه د أراضي يا أرضين د استعمالولو هډو ضرورت پيښ نه شو او مفهوم هم ادا شو. (٣)

---

(١) المهند على المفند، السوال الأول والثاني توضيح الجواب ص: ٦٧ ادارة الرشيد، كراچي. وفي نسيم الرياض: ولا خلاف بين العلماء والمحدثين في أن موضع قبره أي الموضع الذي قبره فيه صلى الله عليه وسلم، وضم جسده الشريف أفضل من سائر بقاع الأرض كلها، بل هي أفضل من السماوات والعرش والكعبة، كما نقله السبكي، رحمه الله، لشرفه صلى الله عليه وسلم وعلو قدره. نسيم الرياض شرح شفاء القاضي العياض: ٥/١٢١ القسم الثاني فيما يجب على الأنام..... فصل في حكم زيارة قبره ﷺ

(٢) الكنز المتواری: ١٣/١٢٤. د دې قصيدې بعض اشعار دادی:

پہنچ سکے شجر طور کو کہیں طوبی — مقام یار کو کب پہنچے مسکن اغیار ؟
زمین وچرخ میں ہو کیوں نہ فرق چرخ وزمین — یہ سب کا بار اٹھائے وہ سب کے سر پہ سوار
کرے ہے ذرۂ کوے محمدی سے تجل — فلک کے شمس و قمر کو زمین لیل و نہار
فلک پہ عیسی وادریس ہیں تو خیر سہی — زمین پہ جلوہ نما ہیں محمد مختار
فلک پہ سب سہی، پر ہے نہ ثانی احمد — زمین پہ کچھ نہ ہو، پر ہے محمدی سرکار

[الامام محمد قاسم نانوتوی، حیات، افکار، خدمات ص: ٣٦٠ - ٣٦١].

(٣) البيان والتبيين للحافظ: ١/٢١ مقدمة، وقد يستخف الناس ألفاظا، ويستعملونها..... والطراز لأسرار البلاغة: ٣/٢٥-٢٤ الصنف الثاني عشر في تحويل الألفاظ...... والنبراس شرح شرح العقائد للتفتازاني: ١١٢.

**د ایت ترجمة الباب سره مناسبت:** په آیت مبارك کښې د اووه آسمانونو په صراحت سره ذکر دې اود اووه زمکو هم ذکر دې. په آیت کښې مثل نه مثلیت في العدد مراد دې.([1]) ترجمه هم دې سره متعلق وه نو مناسبت واضح دې.

**قوله: ﴿وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ﴾ السماء:** د سورت طور آیت ﴿وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ﴾([2]) تفسیر فرمائی چه ﴿وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ﴾ یعنی د اوچت چت نه مراد آسمان دې لکه څنګه چه د هر یو کور یو چت وی دغه شان دا آسمان د دنیا او زمکې لکه چه چت دې. دا د حضرت مجاهد رحمه الله تفسیر دې.([3])

**دَ مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام ابن ابي حاتم رحمه الله وغیره د ابن ابی نجیح رحمه الله په طریق سره د حضرت مجاهد رحمه الله نه موصولاً نقل کړې دې.([4])

**قوله:: ﴿سَمْكَهَا﴾ بِنَاءَهَا:** په دې آیت مبارك کښې ﴿رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا﴾([5]) د لفظ سمك توضیح کولې شی چه د سمك معنی بناء یعنی د بنیاد ده. دا معنی د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه مراد ده.([6]) سمك بفتح السين وسكون الميم چت او دغې پیروالی ته هم وائی او اوچتوالی ته هم.([7])

**دَ مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق ابن ابی حاتم رحمه الله د ابن ابی طلحه رحمه الله په طریق سره د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه موصولاً نقل کړې دې.([8])

**قوله:: ﴿الْحُبُكِ﴾ اَسْتِوَاؤُهَا وَحُسْنُهَا:** په دې عبارت کښې آیت مبارك ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ﴾([9]) طرف ته اشاره کړې ده. حبك جمع ده د دې مفرد حبیکة دې. د دې یوه معنی مطلقًا د لارې ده. دویمه معنی د ستوری ده خود یو قول مطابق هغه لارو ته وائي کومې چه د اوریخونه جوړیږی. دا ټولې معانی متقارب دی چه د دې ټولو سره د آسمان زینت وی.([10])

**قوله:: ﴿أَذِنَتْ﴾ سَمِعَتْ وَأَطَاعَتْ:** پدې عبارت کښې آیت مبارك ﴿وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ﴾([11]) طرف ته اشاره کړې شوې ده اوفرمانیلی دی چه د أذنت معنی أطاعت ده. ضمیر تانیث ماقبل آیت کښې د السماء طرف ته راګرځی. امام نسفی رحمه الله فرمائی چه أذن الشيء معنی ده د یو څیز طرف ته غو

---

[1]) تحذير الناس ۶۵ فتح الباری: ۲۹۳/۶ عمدة القاری: ۱۱۱/۱۵ والکنز المتواری: ۱۲۲/۱۳.

[2]) سورة الطور: ۵.

[3]) عمدة القاری: ۱۱۲/۱۵.

[4]) عمدة القاری: ۱۱۲/۱۵.

[5]) سورت النازعات: ۲۸.

[6]) عمدة القاری: ۱۱۲/۱۵.

[7]) القاموس الوحید، مادة: سمک، ومعارف القرآن للکاندهلوی: ۳۶۱/۸.

[8]) عمدة القاری: ۱۱۲/۱۵.

[9]) سورت الذاریات: ۷.

[10]) التوضیح: ۲۴/۱۹.

[11]) سورت الانشقاق: ۲۵.

لګولوسره په غور خبره اوريدل، اطاعت کول او حکم منل. اوس د آيات مطلب دا شو چه د قيامت په ورځ به د آسمان د شليدلوحکم کيږي نو آسمان به د حکم منلو دپاره سربښکته کوی ځکم به په ځانی راوړی او شليږی به ځکه چه داد خبرې اوريدل او په هغې باندې عمل کول دهغې ذمه واری ده.[1]

**قوله:: ﴿وَأَلْقَتْ﴾ أُخْرِجَتْ ﴿مَا فِيهَا﴾ مِنَ الْمَوْتَى ﴿وَتَخَلَّتْ﴾ عَنْهُمْ:** په دې عبارت کښې آيت مبارك ﴿وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ﴾[2] تفسير کړې شوې دې چه زمکه به د ځپل دننه نه هرڅه بهر راؤغورزوی. که هغه خزانې وی اوکه معدنيات وی يا مړی اود هغې اجزاء وغيره ټول به بهر راؤباسی. په ځپله ځيټه کښې به هيڅ هم پرينږدی اودهغې نه به بالکل خالی شی. ددې آيت تعلق ارض سره دې د سابقه آيت تعلق د سماء سره وو. مقصد هم دغه دې چه هرو دواړو ته به د الله تعالى د طرف نه حکم ورکولې شی اوهغه به دوی پوره کوی.

**د مذکوره تعليق تخريج:** دا تعليق ابن ابی حاتم رحمه الله دحضرت سعيدبن جبير رحمه الله په طريق سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه موصولاً نقل کړې دې.[3]

**قوله:: ﴿طَحَاهَا﴾ دَحَاهَا:** آيت مبارك ﴿وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا﴾[4] طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه طحاها معنى دحاها ده. د کوم معنى چه د خورولو ده. طحاالشيء طحوا: خورول او کولاوول. اوس د آيت معنى دا شوه "اوقسم دې د زمکې اوځنګه چه هغه خوره کړې شوه چه ځنګه په عجيبه حکمت اوقدرت سره ئې زمکه خوره کړه چه په دې کښې اوسيدل په آسانئې سره اوکړې شی، بيائې په دې کښې د مخلوق د ضرورت ټول ځيزونه پيدا کړل".[5] اودا تعليق عبدبن حميد په ځپل تفسيرکښې دحضرت مجاهد رحمه الله نه موصولاً نقل کړې دې. او طبرى رحمه الله هم روايت کړې دې.[6]

**قوله:: ﴿بِالسَّاهِرَةِ﴾ وَجْهُ الْأَرْضِ، كَانَ فِيهَا الْحَيَوَانُ، نَوْمُهُمْ وَسَهَرُهُمْ:** په دې عبارت کښې ﴿فَإِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ﴾[7] طرف ته اشاره کولوسره لفظ ساهره معنى بيان کړې شوې ده چه ددې معنى مخ د زمکې دې. دې ته د ساهره وئيلووجه داده چه حيوان په دې ويښ هم وی او اوده کيږی هم، سهر ويښيدو ته وائی.[8]

د قيامت په ورځ چه به په کومه زمکه باندې خلق راجمع کولې شی يعنى محشر دهغې نوم هم ساهره دې. ابن ابی حاتم رحمه الله وائی دې نه مراد د قيامت زمکه ده. دغه شان سپينه هواری زمکې ته هم ساهره وائی. امام بخاری رحمه الله چه کومه معنى اختيارکړې ده هغه دحضرت عکرمه رحمه الله نه نقل ده. اودا

---

[1] عمدة القارى: ١١٢/١٥ تفسير النسفى (مدارك التنزيل: ٦١٨/٣) الانشقاق.

[2] سورت الانشقاق: ٤.

[3] عمدة القارى: ١١٢/١٥ وفتح البارى: ٢٩٤/٦.

[4] سورت الشمس: ٦

[5] معارف القرآن ازكاندهلوى: ٤٦٥/٨ القاموس الوحيد مادة: طحو، وعمدة القارى: ١١٣/١٥.

[6] عمدة القارى: ١١٣/١٥ جامع البيان (تفسير الطبرى): ٦٠١/١٢ وتفسير الإمام مجاهد: ٧٢٣/٢ وفتح البارى: ٢٩٤/٦.

[7] سورت النازعات: ١٤

[8] عمدة القارى: ١١٣/١٥ والقاموس الوحيد، مادة: سهر. قال سندهى رحمه الله: اشاربه إلى وجه تسميتها بالساهرة، حاشية على البخارى (قديمى ٤٥٤/١)

تعليق ابن ابي حاتم رحمه الله دهغه نه موصولاً نقل کړې دې.(۱)

**ترجمه سره د ايات مناسبت:** ددې تولو آياتونو ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په دې تولو کښې د زمکې او آسمان د مختلف صفاتو ذکر کړې شوې دې. ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله څلور احاديث ذکر کړی دی. په کوم کښې چه اولنې حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها دې.

## الحديث الاول

[۳۰۲۳]-حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَكَانَتْ، بَيْنَهُ وَبَيْنَ أُنَاسٍ خُصُومَةٌ فِي أَرْضٍ، فَدَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ فَذَكَرَ لَهَا ذَلِكَ، فَقَالَتْ: يَا أَبَا سَلَمَةَ، اجْتَنِبِ الأَرْضَ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ ظَلَمَ قِيدَ شِبْرٍ طُوِّقَهُ مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ».-[ر ۲۳۲۱](۲)

**ترجمه:** دمشهور تابعی حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن رحمه الله نه روايت دې چه دهغه څه خلقو سره د زمکې تنازعه وه. يو ځل هغه حضرت عائشه رضي الله عنها له راغلو او صورت حال ئې د هغې مخې ته کيخودو نوام المؤمنين رضي الله عنها اوفرمائيل اې ابوسلمه د زمکې نه بچ شه، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه فرمائيلوسره اوريدلی دی چه کوم سړې د څانه يو ليشت زمکه هم په زور واخلی(د قيامت په ورځ) به هغه ته د اووه زمکو نه طوق (بيړئی) وراغوستلې شی. يعنی په هغې کښې به ورخښولې شی.

دا حديث کتاب المظالم کښې تيرشوې دې.(۳)

## تراجم رجال

**علی بن عبدالله:** دا مشهور محدث علی بن عبد الله المدينی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب المفهم فی العلم لاندې تيره شوې ده.(۴)

**سفيان:** دامشهورامام محدث سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی کښې او مفصل حالات کتاب العلم باب قول المحدث : حدثنا أو أخبرنا.... کښې تير شوی دی. (۵)

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارک مروزی رحمه الله دې. ددوی حالات بدء الوحی پنځم حديث کښې تير شوی دی.(۶)

**يحيى بن ابی کثير:** دا يحيى بن ابی کثير طائی يمانی رحمه الله دې. دد وی تفصيلی حالات کتاب العلم باب

---

(۱) عمدة القاری: ۱۱۳/۱۵والتوضيح: ۱۹/۲۹وتفسير الطبری: ۱۲/۴۳۰-۴۲۹.

(۲) قوله: فدخل علی عائشة: الحديث مرتخريجه، کتاب المظالم باب إنهم من ظلم شيئا من الأرض.

(۳) صحيح البخاری، کتاب المظالم باب إثم من ظلم شيئا من الأرض رقم: ۲۴۵۳.

(۴) کشف الباری: ۲۹۷/۳.

(۵) کشف الباری:۲۳۸/۱الحديث الأول: ۱۰۲/۳.

(۶) کشف الباری: ۴۶۲/۱.

کتابة العلم کښې راغلی دی.([1])

**محمدبن ابراهیم بن الحارث:** دامحمد بن ابراهیم بن الحارث بن خالد تیمی مدنی دې ددوی اجمالی تذکره بدء الوحی اوتفصیلی تذکره **کتاب الایمان باب ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة** لاندې راغلی دی.([2])

**ابوسلمه بن عبدالرحمن:** دا مشهور تابعی حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنی رحمه الله دې. ددوی مفصل حالات **کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابا من الایمان** کښې راغلی دی.([3])

**عائشه** رضی الله عنها: د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې راغلی دی.([4]) د باب دویم حدیث د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دی.

## الحدیث الثانی

[۳۰۲۳] - حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَخَذَ شَيْئًا مِنَ [ص: ۱۰۷] الأَرْضِ بِغَيْرِ حَقِّهِ، خُسِفَ بِهِ يَوْمَ القِيَامَةِ إِلَى سَبْعِ أَرَضِينَ».-[ر ۲۳۲۲] ([5])

## تراجم رجال

**بشربن محمد:** دا بشر بن محمد مروزی سختیانی رحمه الله دې.

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارک مروزی رحمه الله دې. ددې دوارو بزرگانو حالات بدء الوحی پنځم حدیث کښې تیر شوی دی.([6])

**موسی بن عقبه:** دا امام مغازی حضرت موسی بن عقبه اسدی مدنی رحمه الله دې. ددوی حالات **کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء** لاندې راغلی دی.([7])

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر بن خطاب قرشی عدوی رحمه الله دې. ددوی تذکره **کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان** کښې راغلی دی.([8])

**ابیه:** دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. ددوی تفصیلی حالات **کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الإسلام....** لاندې بیان کړې شوی دی.([9])

---

[1]) کشف الباری: ۲۶۷/٤.

[2]) اوګورئی کشف الباری: ۲۳۸/۱، ۷۳۹/۲.

[3]) کشف الباری: ۳۲۳/۲.

[4]) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

[5]) قوله: عن أبیه: الحدیث مر تخریجه، کتاب المظالم باب إثم من ظلم شیئا من الأرض رقم: ۲٤٥٤.

[6]) کشف الباری بشر: ٤٦٥/۱ کشف الباری ابن المبارک: ٤٦۲/۱.

[7]) کشف الباری: ۱۷۷/٥.

[8]) کشف الباری: ۱۲۸/۲.

[9]) کشف الباری: ٦۳۷/۱.

ددې حديث شرح هم په كتاب المظالم كښې تيره شوې ده.[1]
دباب دريم حديث دحضرت ابوبكرة نفيع بن حارث رضي الله عنه دې.

## الحديث الثالث

[۳۰۲۵] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللَّهُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ، السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا، مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ، ثَلاَثَةٌ مُتَوَالِيَاتٌ: ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ، وَرَجَبُ مُضَرَ، الَّذِي بَيْنَ جُمَادَى وَشَعْبَانَ" [ر ٦٧][2]

**ترجمه:** رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه زمانه خپل اولنى حالت ته واپس شوې ده. په كومه ورځ چه الله تعالى زمكه او آسمان پيدا كړو. دكال خو هم دولس مياشتې دى په كوم كښې چه څلور حرام مياشتې دى، درې يو بل پسې دى. ذوالقعده، ذوالحجه او محرم اودمضر قبيلې مياشت رجب ده چه جمادى ثانيه اوشعبان په مينځ كښې وى.

## تراجم رجال

**محمد بن المثنى:** دا محمدبن المثنى عنزى كوفى رحمه الله دې.
**عبدالوهاب:** دا عبدالوهاب بن عبدالمجيد ثقفى رحمه الله دې.
**ايوب:** دا ايوب بن كيسان بصرى سختيانى رحمه الله دې. ددې دريواړو محدثينوحضراتو تذكره كتاب الإيمان باب حلاوة الإيمان كښې راغلې ده.[3]
**محمدبن سيرين:** دا مشهور معبر محمدبن سيرين انصارى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب اتباع الجنائز من الإيمان لاندې راغلى دى.[4]
**ابن ابى بكرة:** دا عبدالرحمن بن ابى بكرة نفيع بن حارث ثقفى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: رب مبلغ أوعى..... په ضمن كښې تيره شوې ده.[5]
**ابوبكره:** دا مشهور صحابى حضرت ابوبكرة نفيع بن حارث رضي الله عنه دې. د دوى تذكره كتاب الإيمان باب ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا.....﴾ كښې تيره شوې ده.[1]

---

[1] صحيح البخارى كتاب المظالم باب إثم من ظلم شيئا من الأرض رقم: ۲٤٥٤.
[2] قوله: عن أبي بكرة رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه فى كشف البارى: كتاب العلم باب رب مبلغ أو عى من سامع: ۲۲۲/۳.
[3] كشف البارى: ۲/۲٦-۲٥.
[4] كشف البارى: ۲/٥٢٤.
[5] كشف البارى: ۳/۲۲٦.

**قوله: : الزمان قد استدار کهیئته یوم خلق....:** د حضرت ابوبکرة نفیع بن حارث رضی الله عنه د دې حدیث تعلق خطبه حجة الوداع سره دې. دکوم شرح چه کتاب العلم او کتاب المغازی وغیره کښې راغلې ده.(۱) د باب څلورم حدیث د حضرت سعید بن زید رضی الله عنه دې.

## الحدیث الرابع

[۳۰۲۶]-حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، أَنَّهُ خَاصَمَتْهُ أَرْوَى فِي حَقٍّ زَعَمَتْ أَنَّهُ انْتَقَصَهُ لَهَا إِلَى مَرْوَانَ، فَقَالَ سَعِيدٌ: أَنَا أَنْتَقِصُ مِنْ حَقِّهَا شَيْئًا أَشْهَدُ لَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الأَرْضِ ظُلْمًا، فَإِنَّهُ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ القِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ» قَالَ ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ لِي سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ، دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-[ر ۲۳۲۰] (۳)

## تراجم رجال

**عبیدبن اسماعیل:** دا عبید بن اسماعیل بهاری کوفی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الحیض باب نقض المرأة شعرها...... په ذیل کښې راغلې ده.(۴)

**ابواسامه:** دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زید کوفی رحمه الله دې. د دوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب فضل من علم وعلم کښې تیر شو.(۵)

**هشام:** دا هشام بن عروه بن زبیربن عوام اسدی رحمه الله دې.

**ابیه:** دا عروه بن زبیربن عوام رحمه الله دې. د دې دواړو حضراتو تذکره بدء الوحی دویم حدیث کښې اجمالاً او کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه کښې تفصیلاً تیرشوی دی.(۶)

**سعیدبن زیدبن عمرو بن نفیل:** دا صحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت سعید بن زیدبن عمرو بن نفیل عدوی رضی الله عنه دې.(۷)

**په حدیث کښې ذکرشوې واقعې خلاصه:** په دې حدیث کښې چه د کومې واقعې ذکر دې دهغې

---

۱) کشف الباری: ۲/۲۲۵.

۲) کشف الباری کتاب العلم: ۳/۲۳۲-۲۲۷ کتاب المغازی: ۶۲۵ و کتاب التفسیر: ۲۶۵.

۳) قوله: عن سعیدبن زید: الحدیث: مر تخریجه کتاب المظالم باب إثم من ظلم شیئا من الأرض رقم: ۲۴۵۲.

۴) کشف الباری کتاب الحیض: ۳۹۸.

۵) کشف الباری: ۳/۴۱۴.

۶) کشف الباری: ۱/۲۹۱، ۲/۴۳۶-۴۳۲.

۷) د دوی د حالاتو د پاره اوګورئی: کتاب الجنائز باب غسل المیت ووضوئه بالماء.......

تفصيل كتاب المظالم كښې راغلې دې.[1]

دكوم خلاصه چه داده. د مشهور صحابى حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه خلاف اروىٰ بنت انيس نومې يوې ښځې دا دعوىٰ اوكړه چه حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه دهغې نه زمكه په زور اخستې وه. اومقدمه د مشهور اموى حكمران مروان بن الحكم چه هغه وخت دمدينې گورنر وو په عدالت كښې پيش كړه. دمروان په وړاندې چه كله حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه پيش شو نو په دغه موقع باندې هغه ارشاد اوفرمائيلوچه زه د دغه ښځې حق څنګه ګيرولې شم؟ حالانكه ما د نبى كريم دا مبارك ارشاد اوريدلې دې چه حضورپاك فرمائيلى وو چه كوم سړې د څانه يو ليشت ځائى هم ګير كړې غصب ئې كړې په هغې باندې ناحق قبضه كوى نو د قيامت په ورځ به هغه ته د اووه زمكو طوق وراغوستلې شى. دومره سخت وعيد اوريدو نه پس ښه ده څنګه زه داسې كولې شم؟

ددې نه پس حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه خپله زمكه هم دهغه ښځې دپاره پريخوده اودهغې خلاف ئې بددعا اوكړه. الله تعالى د دغه ښځې خلاف د حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه دعا قبوله كړه.[2]

**قوله: قال أبوالزناد: عن هشام عن أبيه، قال: قال لى سعيد بن زيد: دخلت على النبى صلى الله عليه وسلم.**

**دمذكوره تعليق مقصد اوتخريج:** ددې تعليق مقصد صرف داخودل دى چه دحضرت عروه بن زبير رحمه الله دحضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه سره ملاقات ثابت دې اوهغوى پخپله د دوى نه داحديث اوريدلې دې. علامه عينى رحمه الله فرمائى: «**وأراد البخاري بهذا التعليق بيان لقاء عروة سعيداً، وتصريح سماعه منه الحديث المذكور**».[3]

اوددې تعليق متعلق حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا روايت موصولاً ماته نه دې ملاؤشوې.[4]

د باب رومبې دويم او څلورم حديث مناسبت خو ترجمة الباب سره بالكل واضح دى چه په دې ټولو كښې په صراحت سره د اووه زمكو ذكردې البته د باب دريم حديث (حديث ابوبكره) كښې لفظ الأرض مفرد راغلې دې. دغه شان داحديث د ترجمة الباب مطابق نه دې چه د آسمانونوخو دلته د متعدد كيدو ذكر شته ليكن دزمكې دپاره دمفرد صيغه استعمال كړې شوې ده.

**جوابات:** چنانچه حضرت ګنګوهى رحمه الله خو دا وئيلى دى چه الأرض كښې الف لام د جنس دپاره دې لهذا د ارضين تعدد به راؤځى يا ددې طرف ته اشاره دپاره دې چه ارض نه مراد معهود يعنى جمع ده.

① علامه عينى رحمه الله هم دغه فرمائيلى دى چه سره ددې چه دلته ذكرشوې لفظ الأرض دې مګر مراد ترې نه سبع ارضين دې.[5]

② علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه د ابن عساكر په نسخه كښې لفظ ارضين جمع سره دې (حاشيه كښې هم ددې ذكر دې) بل حضرت ګنګوهى رحمه الله هم فرمائى چه كه روايت دجمع والا دې نومناسبت

---

[1]) صحيح البخاري: كتاب المظالم باب إثم من ظلم شيئا من الأرض رقم: ۲۴۵۴.

[2]) عمدة القارى:۱۵/۱۱٤فتح البارى:۶/۲۹۵وشرح القسطلانى: ۵/۲۵۶.

[3]) حواله جات بالا. والتوضيح: ۱۹/۲۶.

[4]) هدى السارى:۴۸.

[5]) عمدة القارى: ۱۵/۱۱۳.

بالكل ښكاره دي. [۱] ليكن دويم احتمال ضعيف دې. دا په اختلاف نسخ باندې محمول كول لې شان ګران دى ځكه چه هم دغه روايت امام بخارى رحمه الله هم په دې سند سره مغازى كښې هم نقل كړې دې. په دې كښې لفظ ارض مفرد واقع شوې دې. [۲]

③ حافظ ابن كثير رحمه الله فرمانى چه ددې حديث ذكركولوسره امام بخارى رحمه الله خپل مراد اومقصد په يومختلف تعبيرسره اداكړې دې. او آيت مبارك ﴿ اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ﴾ مضمون مؤكد اوثابت فرمائيلو دپاره داحاديث ذكركړې دي چه لكه په كال كښې دولس مياشتې دى او د دولسو مياشتو دا عدد دهغه ورځ نه دې په كومه ورځ چه الله تعالى زمكه اوآسمان پيدا كړل. مګر په جاهليت كښې د خلقو د شرارت د وجې نه دا مياشتې وړاندې روستو شوې وې او اوس دامياشتې دوباره واپس راؤګرځيدې او په خپل اصلى اوصحيح ترتيب باندې راغلى دى. دغه شان دا اووه زمكې هم د اووه آسمانونو په شان په عدد كښې مطابق دى لكه د شروع ورځې نه اووه آسمانونه دى دغه شان زمكې هم دهغه ورځ نه اووه دى. چنانچه د كال د دولسو مياشتو مطابقت مطابقت زمانى دې اود آسمان او زمكې د عدد مطابقت مطابقت مكانى دې. والله اعلم بالصواب. [۳]

## ۳- باب: فِى النُّجُومِ

**ماقبل سره مناسبت:** دالله تعالى د مخلوقاتو ذكر د شروع نه راروان دې. په سابقه باب كښې د زمكو تخليق بيان كړې شوې وو اودا باب د ستورو په بيان كښې دې. ستورى هم دالله تعالى د مخلوق نه يو مخلوق دې.

**دَنجوم لغوى او اصطلاحى تحقيق:** نجوم د نجم جمع ده. هر هغه څيز چه ظاهروى يا د زمكې نه راټوكيږى هغې ته نجم وئيلى شى. چونكه مختلف نباتات كوم چه د زمكې نه د زيلو په شكل كښې راټوكيږى مثلاً كدو تورئى وغيره په دې باندې هم د نجم اطلاق كيږى. د حماسى شعر دې:

ولو أنى أشاء لكنت منه مكان الفرقدين من النجوم [۴]

په دې شعر كښې نجوم په يومعنى نبات الارض دې. او ستورى هم چونكه د دنيا په آسمان باندې ښكاره كيږى په دې وجه دې ته نجم وئيلى شى. [۵]

او اصطلاحاً نجوم دهغه اجرام سماويه د پاره وئيلې شى چه په آسمان باندې ښكارى. داخپل كلك مادى وجود لرى. ددې رڼا ذاتى وى لكه نمر چه هغه هم د يواوسط درجې ستورې دې. چنانچه دا اجرام بذات خود د رڼا او حرارت منبع اومركز دى اودوى ته د بل وجودنه اكتساب نور اوحرارت ضرورت نه وى. په آسمان باندې يو بل څيز هم وى كوم ته چه سياره وائى. د سيارو رڼا ذاتى نه وى

[۱] الكنزالمتوارى: ۱۲۷/۱۳شرح القسطلانى: ۲۵۵/۵صحيح البخارى (قديمى): ۴۵۴/۱.

[۲] صحيح البخارى كتاب المغازى باب حجة الوداع رقم: ۴۴۰۶.

[۳] البداية والنهاية: ۴۲/۱شرح القسطلانى: ۲۵۵/۵والكنزالمتوارى: ۱۲۸/۱۳-۱۲۷.

[۴] ديوان الحماسه لأبى تمام: ۳۳ قال بعض بنى أسد طبع قديمى.

[۵] حديث شريف كښې د نبى كريم ﷺ د ولادت باسعادت باره كښې راغلى دى. «هذا إبان نجومه، أى:ظهوره..تاج العروس مادة:ن،ج،م. بل اوګورئى تاريخ الخميس فى إحوال أنفس النفيس: ۳۳۹/۱وأعلام النبوة: ۱۹۸/۱والروض الأنف للسهيلى:۳۰/۲ذكرالرسول صلى الله عليه وسلم ينتشر، وسمط النجوم العوالى للعصامى:۳۱۶/۱.

بلکه داد نمر نه اکتساب نور او حرارت کوی لکه سپوږمئی. د ستورو په مقابله کښې سیارې ډیرې کمې دی. تراوسه پورې د تحقیق مطابق د سیارو تعداد ۱۷۰۰ دې خو ستوری کوم ته چه ثوابت هم ونیلې شی د سیارو نه په کروړونو زیات دی.[۱]

**ستوری متحرک دی که ساکن؟** : پخوانی حکماء او یونانی فلاسفه وغیره خیال هم دغه وو چه دا ستوری په آسمانونو کښې ور خښ شوی دی په دې کښې حرکت نشته صرف هم سکون دې په یوځائی ولاړ دی. لیکن د بعض فلاسفه جدید او ماهرین فلکیات دا ونیلی دی چه دا ستوری په آسمان پورې انختی نه دی بلکه په حرکت کښې دی. د قرآن کریم نه هم دغه ثابتیږی. ارشاد ربانی دې: ﴿كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾[۲] چه دا ټول اجرام فلکی په حرکت کښې دی فضاء کښې ګرځی راګرځی.

دلته لفظ کل د جمع دپاره دې دې نه مراد ټول ستوری سره د نمر او ټولې سیارې سره د سپوږمئی. سره ددې چه آیت مبارك کښې لفظ کل ضمیر شمس اوقمر طرف ته راجع دې. خودې نه مراد ټول ستوری او سیارې دی. علامه نسفی رحمه الله مدارك کښې فرمائی: ﴿وَكُلٌّ﴾ التنوين فيه عوض عن المضاف إليه، أي: وكلهم، والضمير للشموس والأقمار.[۳] حضرت موسی روحانی بازی رحمه الله هم دا اختیار کړې دې.[۴]

اولکه څنګه چه مونږ اوس اوخودل چه د نن صباجدید تحقیق هم دغه دې.

**یواعتراض اودهغې جواب**: په قرآن کریم کښې چه دا الله تعالی ارشاد فرمائیلې دې ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا لِّلشَّيَاطِينِ وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيرِ﴾[۵] یعنی تحقیق مونږ ښائسته کړې دې آسمان ددنیا، چه د انسانانود نظرونو مخکښې دې پرقیدونکی چراغونو سره اودا جوړ کړل مونږ د غورزولو ویشتلو ذریعه د پاره د شیطانانو.... دې نه خو هم دا معلومیږی چه دا اجرام فلکی ددنیا آسمان سره انختی دی. اوچه کله دا انختی وی نو لامحاله په حرکت کښې به نه وی؟ خو تاسو دې ته متحرك وایئی.

ددې اشکال جواب دادې چه د دنیا آسمان ښائسته کولودپاره دا ضروری نه دی چه ستورې په آسمان کښې دننه یا ددې دپاسه لګیدلې وی بلکه تزیین په دې صورت کښې هم صادق دې چه ستوری د آسمان نه ډیر ښکته په خلا کښې وی. لکه چه په جدید تحقیق سره ددې مشاهده کیږی داددې منافی دې اود آیاتونو په مینځ کښې هیڅ تعارض هم نشته.

په اصل کښې هرکس اوناکس د فلکیات دا باریکو باندې نه شی پوهیدلې. چنانچه په آیت مبارك کښې د عام انسانی نظر اعتبار کړې شوې دې چه په کتلو کښې هم داسې معلومیږی لکه چه دا د دنیا د آسمان ستوری دی په حقیقت کښې داسې نه دی دا ستوری د آسمان نه ډیر ښکته په خلا کښې ګرځی.[۶]

---

[۱] الهیئة الکبری: ۸۱/۱فصل فی بیان تقسیم الکواکب وفهم فلکیات: ۱۸۸-۱۸۲ملخصاً.

[۲] سورت یس: ۴۰.

[۳] تفسیر النسفی المسمی بمدارك التنزیل وحقائق التأویل: ۱۰۵/۳سورة یس، وفهم فلکیات: ۲۴۳.

[۴] الهیئة الکبری: ۸۵/۱-۸۱ فصل فی بیان تقسیم الکوکب.

[۵] سورت الملک:۵.

[۶] د نور تفصیل دپاره اوګورئی معارف القرآن دیوبندی: ۵۱۹/۸وکاندهلوی: ۱۸۸/۸-۱۸۵.

**په شياطين باندې كوم يوشيز ورغورزولې شي؟**: ددې نه پس په دې خبره باندې پوهه شنې چه په آيت مبارك كښې دا هم فرمائيلې شوى دى چه دا ستورى پټ په پټه د آسمانى خبرو په لټون كښې راتلونكى شيطانانو باندې ورغورزولې او ويشتلې شي. او هغوى دغه شان د آسمان نه لرې كولې شي. پورته دا خبره عرض كړې شوې ده چه ستورى كلك وى او هغې ته ثوابت وئيلى شى. ددې مضمون په تفسير كښې حضرت مولانا عبدالمالك كاندهلوى رحمه الله فرمائى:

دلته آيت كښې ﴿وَجَعَلْنَاهَا﴾ ضمير جنس مصابيح طرف ته راجع دې نه چه عين مصابيح طرف ته.

حافظ ابن كثير رحمه الله ([1])فرمائى: دا ددې دپاره چه شيطانانوباندې دا ستورى نه شى غورزولې كوم چه په آسمان باندې دى. نواصل دادې چه لفظ مصابيح يا كوكب اونجوم هغه ستورو دپاره وئيلى شى كوم چه په آسمان باندې دى اوهغه پرق او شعاگانوته هم وئيلى شى كوم چه ستورو سره دى. هم دغه پرق او شعاگانې ماتيږى او هم دغه ورغورزولې شى. د زمكې نه كوم د لوګى والامادې چه اوچتيدو سره فضاكښې پورته خيژى نو كره نار ته نيزدې رسيدو سره په هغې كښې اور لګى اوهغه داسې معلوميږى لكه چه لګيدلې شغله ويشتلې شى (دې ته شهاب وئيلى شى) دا د پرقيدونكو ستورو په شان وى په دې وجه دا هم د كواكب او نجوم د جنس نه شمير كړې شوى مګر دا ټول د الله تعالى په حكم سره كيږى. كوم د لوګى والامادې ته چه الله تعالى په خپل حكم سره د ګرځيدو او خوريدو حكم وركوى هم هغه به داسې كيږى ګنى نه كيږى. يعنى ددې دا ماتيدل اوخوريدل پخپله ددې طبعى تقاضا نه ده اوچونكه داهم دستورو يوقسم شان شو په دې وجه د شليدو نه پس په زمكه باندې نه پريوځى. حالانكه د دوى طبعى راتګ (د كشش ثقل دقانون په رنړا كښې) د زمكې طرف ته كيدل پكاروو بلكه ديوطرف نه بل طرف ته داسې شيندلې شى لكه چه چا ويشتلې وى.([2])

**دترجمة الباب مقصد**: حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه د ترجمة الباب سياق او ددې لاندې كوم څه چه مؤلف رحمه الله درج كړى دى ددې نه په ظاهره دا معلوميږى چه د ستورو دتخليق نه كوم معتبر مقاصد د شريعت نه ثابت دى هغه بيانول دى. بل په دې ستورو كښې چه كوم څه مخترعين اومبتدعين دخپل طرف نه خبرې پيداكړې دى په هغې باندې رد كول دى.([3])

**وَقَالَ قَتَادَةُ: ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ﴾/الملك:۵/: خَلَقَ هَذِهِ النُّجُومَ لِثَلاَثٍ: جَعَلَهَا زِينَةً**

---

[1]) قال ابن كثير الدمشقى رحمه الله: عاد الضمير فى قوله ﴿وَجَعَلْنَاهَا﴾ على جنس المصابيح، لا على عينها، لأنه لا يرمى بالكواكب التى فى السماء، بل بشهب من دونها، وقد تكون مستمدة منها. والله أعلم. تفسير ابن كثير، سورة الملك، الآية:۵.
وللاستزادة انظر التفسير الكبير للإمام الرازى: ۱۰۸/۲۶-۱۰۴الصافات:۱۰-۶

[2]) معارف القرآن كاندهلوى:۱۸٤/۸سورت الملك. حضرت مفتى محمدشفيع رحمه الله ددې آيت مبارك لاندې ليكى اوستورى د شيطانانود دفع كولودپاره سكروټې جوړولو مطلب داكيدې شى چه د ستورونه يوه ماده آتيشن دهغوى طرف ته پريخودلې شى، ستورى په خپل ځائى پاتې شى. دعوامو په نظر كښې چونكه دا شغله دستورو په شان حركت كونكى ښكارى په دې وجه دې ته ستورى ماتيدل او په عربى كښې انقضاض الكواكب وائى (قرطبى: ۲۱۱/۱۸)،
معارف القرآن: ۵۱۸/۸-۵۱۷. امام خازن رحمه الله فرمائى: (فإن قلت: جعل الكواكب زينة للسماء يقتضى بقاءها، وجعلها رجوما للشياطين يقتضى زوالها، فكيف الجمع بين الحالتين؟) قلت: قالوا: إنه ليس المراد أنهم يرمون بإجرام الكواكب، بل يجوز أن تنفصل من الكواكب شعلة، وترمى الشياطين بتلك الشعلة، وهى الشهب، مثلها كمثل قبس يؤخذ من النار، وهى على حالها.
تفسير الخازن: ۳۱۹/٤سورة الملك:۵.

[3]) الكنزالمتوارى:۱۲۸/۱۳.

**لِلسَّمَاءِ، وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ، وَعَلَامَاتٍ يُهْتَدَى بِهَا، فَمَنْ تَأَوَّلَ فِيهَا بِغَيْرِ ذٰلِكَ أَخْطَأَ، وَأَضَاعَ نَصِيبَهُ، وَتَكَلَّفَ مَا لَا عِلْمَ لَهُ بِهِ.**

او حضرت قتاده رحمه الله (١) د آيت مبارك ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ﴾ په تفسير كښې فرمائى چه الله تعالى دا ستورى د دريو مقاصدو دپاره پيدا كړى دى. ددې په ذريعه ئى آسمان له ښائست وركړو، د شيطانانود دفع كولودپاره ئى ذريعه جوړكړل اوداسې نشانې ئى جوړكړل دكوم په ذريعه چه لار خودنه اوكړې شى. نوكوم كسان چه ددې دريو مقاصدونه علاوه ددې كوم تاويل كوى نوهغه به يقينًا خطاكاروى. د خپل آخرت نصيب به ضائع كونكې وى اوددې د معلومولودپاره به بې خايه تكلف كوى.دكوم چه هغه ته علم نه وى.

**د قتاده ﷺ د اثرمقصد:** حضرت قتاده چه د تخليق نجوم كوم فوائد په دې عبارت كښې ذكركړى دى په هغې كښې خو په دوو باندې تفصيلى خبره په تيرو صفحاتوكښې شوې ده. خوددې ستورو دريمه فائده داده چه ددې په ذريعه په سفر كښې لارخودنه كيدې شى. چنانچه دزمكې څيزونه صرف د لارو علامتونه نه دى بلكه د خوشى تشى صحراګانو بيابانونو دريابونو سمندرونو اوګنړو ځنګلو كښې ستورى هم د لارو علامتونه دى چه قافلې د دوى په ذريعه روانې وى. د سمت طرف او لارو پته دستورو په ذريعه لګى. كه چرې دا علامتونه نه وونو ډيرمشكلات به پيښيدل. خاص كر د نن صبا جديد خلائى دوركښې ددې اهميت ډيرزيات دې.. د لوئى لوئى لوګى والاجهازونو د كپتانانو اسره هم دغه قطب نما (كمپاس) وى چه قطب ستورى.سبحان الله الخالق العلام (٢) سمت اوطرف متعين كوى.(٣) خلاصه دا شوه چه الله تعالى دا ستورى د دريو مقاصدو دپاره پيدا كړى دى. ددې نه علاوه كه څوك په دې كښې تاويلونه كوى نوهغه خطاكار دې اوبې خايه تكليفونه اوچتوى. ددې نه د حضرت قتاده مقصدپه نجوميانو باندې رد كول دى چه دستورو په ذريعه نيك بختى اوبدبختى معلوموى.(٤)

د حضرت قتاده رحمه الله دا اثر دلته مختصراً نقل كړې شوې دې. ددې نور تفصيل عبدبن حميد په دې الفاظوسره نقل كړې دې: ((إن ناسا جَهَلَةً بأمر الله قد أحدثوا فى هذه النجوم كهانة: من غرس كذا كان كذا، ومن سافر بنجم كذا كان كذا، ولعمري ما من النجوم نجم إلا ويولد به الطويل والقصير، والأحمر والأبيض، والحسن والدميم، وما علم هذه النجوم وهذه الدابة وهذا الطائر شيء من الغيب))(٥)

يعنى څه خلق چه دالله تعالى دامر نه بې خبره دى هغوى دا ستورى د كهانت ذريعه جوړه كړى دى. كله وائى چه د فلانكى ستورى د راختو په وخت چه كومه ونه (بوټى) اولګولې شى هغه ته به دا دا فانده وى اوكله وائى چه څوك د فلانكى ستورى د راختو په وخت سفركوى هغه سره به دامعامله كيږى وغيره وغيره. په خدائې ستورو كښې هريو ستورى سره اوږده هم پيدا كيږى ښكته قد والاهم

---

(١) ددوى حلات كشف البارى كتاب الإيمان: ٣/٢ باب الإيمان أن يحب لأخيه.....، كښې تير شوى دى

(٢) قطب ستورې (Polaris) هميشه د شمال طرف ته وى د دې په امداد سره د طرفونو پيژندل په آسانتى سره كيږى. په صحراګانو اوسمندرونوكښې د مسافرو لارخودنه كوى ددې دزمكې نه فاصله ۴۶۶ نورى كاله ده. دا د نمر نه ۱۶۳۰ درجې زيات روښانه دى. فهم فلكيات ۲۱۱ دستورو فاصلې نورى كال.

(٣) ملخصاً وبتصرف يسير من تفسير ماجدى، سورة النحل: ٧٧٥/٢ النحل: ١٦.

(٤) قال الإمام الكشميرى رحمه الله تعالى: أما النحوسة والبركة، فإنها أهون على الله من ذلك. كيف! وأنها مسخرة تصعد وتغرب، تغيب وتشرق، وتدور كل ساعة كالخدام، فهى أصغير على الله من أن تكون فيها النحوسة والبركة. نعم، يعلم من القرآن أن فى السموات دفاتر، وفيها تدابير أيضا، وإليه أشار البخارى من قوله: فمن تأول فيها بغير ذلك أخطا. فيض البارى: ٣٠٤/٤.

(٥) فتح البارى: ٢٩٥/٦ والكنز المتوارى: ١٢٨/١٣ وعمدة القارى: ١١٥/١٥.

پيدا كيږي سره هم او سپين هم، ښه صورت والا او بدصورت هم. نودې ستورو دې خناورو او دې مرغو ته د غيب څه خبر دې؟ (تولې اټكلي خبرې دى د كومې چه هيڅ حقيقت نه وي).

**دمذكوره اثر تخريج:** دا اثر عبدبن حميد رحمه الله په خپل تفسير كښې يونس عن شيبان عن قتادة په طريق سره د سورة النحل كلمه ﴿وَعَلَامَاتٍ﴾[1] دتفسير لاندې نقل كړې ده.[2]

**دمذكوره اثر ترجمة الباب سره مناسبت:** دحضرت قتاده رحمه الله ددې اثر مناسبت ترجمة الباب سره واضح دې چه په دې كښې دتخليق نجوم حكمتونه او فوائد بيان كړې شوى دى او په نجوميانو باندې رد كړې شوې دې.

**دداؤدى اعتراض اودحافظ صاحب جواب:** علامه داؤدى رحمه الله دلته دحضر قتاده رحمه الله د قول په دې جمله «أخطأ وأضاع نفسه» باندې اعتراض كولو سره وئيلى دى چه دلته د حضرت نه تسامح شوې دې ددې په ځائې هغوى له داسې وئيل پكاروو «قائل ذلك كافر» چه داسې عقيده لرونكې خو كافر دې.[3] حافظ صاحب رحمه الله فرمائى چه څوك داسې عقيده اولرى نودهغه كفر متعين نه دې بلكه دلته دوه خبرې دى: ① د چا دا عقيده لرل چه ستورى مؤثر بالذات دى او په امور كائنات كښې تصرف لرى. دا كفردې. ② په زمكه باندې ښكاره كيدونكې يوه معامله باندې كه چرې ستورى په ښنه كړې شى چه د ستورو په اؤختو راؤختو سره دا بدلونونه واقع كيږى نودا د كفر عقيده نه ده.[4] لكه چه موسمياتو والاچه د مختلفو حسابونو او آلاتو په ذريعه سره كله د باران اوكله د واؤرې وريدو يا د نورو موسمى بدلون اطلاع وركوى كه دا مؤثر بالذات نه ګنړلې شى نو كفر نه دې.(۲) په دې باره كښې به نور تفصيل ان شاء الله كتاب الاستسقاء كښې راځى.

**دعلم نجوم باره كښې احاديث:** خطيب بغدادى رحمه الله ذم النجوم كښې دحضرت عمر رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل كړې دى: «لاتسألوا عن النجوم»[6] يعنى د ستورو باره كښې پوښتنه كونكى مه ګرځئ. دحضرت على رضي الله عنه نه روايت دې: «نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن النظر فى النجوم».[7] يعنى حضورپاك ﷺ د ستورو باره كښې غور اوفكر نه منع كړې ده. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك

---

[1]) سورت النحل:۱۶.

[2]) فتح البارى: ۲۹۶/۶عمدة القارى: ۱۱۵/۱۵.

[3]) فتح البارى: ۲۹۵/۶والتوضيح: ۲۷/۱۹.

[4]) حواله جات بالا، وعمدة القارى: ۱۱۵/۱۵.

[5]) وفى كتاب الأنوار لأبى حنيفه: المنكر فى الذم من النجوم نسبة الأمر إلى الكواكب، وأنهاهى المؤثرة، فأما من نسب التأثير إلى خالقها، وزعم أنه نصبها أعلاما، وضربها آثارا على ما يحدثه، فلا جناح عليه. عمدة القارى:۱۱۵/۱۵وكذا انظر الأنواء فى مواسم العرب لابن قتيبة الدينورى: ۲۰-۹۱معنى العرب فى نسبة المطر إلى النوء.

[6]) التوضيح: ۲۷/۱۹والفردوس للديلمى: ۶۴/۵رقم: ۷۴۷۰.

[7]) التوضيح:۲۸/۱۹والضعفاء الكبير:۵۰/۲رقم: ۴۸۰والكامل لابن عدى: ۴۲/۴-۴۱ رقم: ۶۵۳

فرمائي: «إذا ذكر أصحابي فأمسكوا، وإذا ذكر النجوم فأمسكوا، وإذا ذكر القدر فأمسكوا» [1] د نورو صحابه کرامو نه هم داشان احاديث نقل دی. [2] مشهور عباسی خليفه مامون رشيد قول دې چه دوه علوم داسې دی په کوم کښې چه ما ډیره دلچسپی واخستله اود هغې د ژوروالی پورې لاړم مګر هغه مې صحيح اونه موندل، یو علم نجوم او بل علم سحر. [3]

**قوله: وقال ابن عباس: (هشيما): متغيرا:** د (هشيما) په ذريعه د قرآن کريم آيت ﴿فَأَصْبَحَ هَشِيمًا تَذْرُوهُ الرِّيَاحُ﴾ [4]. اشاره فرمائيلې ده، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه تفسيری قول کولو سره مصنف رحمة الله عليه ددې لفظ وضاحت کول غواړی چې ددې (هشيما) معنی متغير او بدل شوې ده [5].

او ابوعبيده رحمه الله ددې لفظ معنی يابسا متفتتا سره کړې ده. دا چونکه د وښو صفت دې په دې وجه به دلته ددې معنی وی اوچ واښه کوم چه هوا اخوا ديخوا الوزوی. [6]

**د مذکوره اثر تخريج:** حافظ رحمه الله فرمائی چه ماته موصولاً ددې طريق نه دې ملاؤ شوې خو اسماعيل بن ابی زياد رحمه الله په خپل تفسير کښې دا قول د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړې دې. [7]

**قوله: والأب: ما يأكل الأنعام:** په دې عبارت کښې آيت مبارک ﴿وَفَاكِهَةً وَأَبًّا﴾ [8] طرف ته اشاره کړې شوې ده. اود الأب تفسيرئی کړې دې. داتفسيری جمله هم دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما ده. چنانچه دهغوی په قول الأب هغه څيز ته وائی کوم چه څناور خوری. هسې په لغت کښې الأب شنه يا اوچ وښوته وائی. [9] بعض حضراتو فرمائيلی دی چه د الأب په څناورو کښې هم هغه درجه ده کوم چه د فواکه (ميوو) په انسانانو کښې ده. [10]

**د مذکوره اثر تخريج:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تفسيری اثر ابن ابی حاتم رحمه الله د عاصم بن کليب عن أبيه په طريق سره په خپل تفسير کښې ذکر کړې دې. په هغې کښې دی: «الأب: ما أنبتت الأرض مما تأكله الدواب، ولا يأكله الناس» [11]

**قوله: والأنام: الخلق:** په دې کښې امام بخاری رحمه الله د آيت مبارک ﴿وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ﴾ [12]

---

[1] رواه الطبرانی فی الكبير: ۱۹۸/۱۰ رقم: ٤٨٠ وأبونعيم فی الحلة: ١٨٠/٤.

[2] دتفصيل دپاره اوګورئی تعليقات التوضيح: ۲۸/۱۹.

[3] التوضيح: ۲ی۹/۱۹.

[4] سورة الكهف: ٤٥

[5] عمدة القاری: ١١٥/١٥

[6] فتح الباری: ۲۹٥/۶ ومجاز القرآن: ٤٠٥/۱ سورة الكهف.

[7] حواله بالا، وعمدة القاری: ١١٥/١٥ والتوضيح: ٣٠/١٩ وتغليق التعليق: ٤٩٠/٣.

[8] سورت عبس: ٣١.

[9] القاموس الوحيد مادة: الأب.

[10] التوضيح: ٣٠/١٩.

[11] حواله بالا، عمدة القاری: ١١٥/١٥ وفتح الباری: ٢٩٦/٦ وتغليق التعليق: ٤٩٠/٣.

[12] سورت الرحمن: ١٠.

طرف ته اشاره كولوسره د لفظ الانام تفسير بيان كړې دې. مذكوره تفسير هم دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې چه لفظ الانام په معنى خلق يعنى مخلوق دې. دا د على بن ابى طلحه رحمه الله طريق دې خو د سماك عن عكرمه په طريق سره حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې لفظ معنى الناس نقل ده. اوس به په دواړو كښې د عموم خصوص نسبت پيدا شي. يعنى ناس خاص دې اوخلق عام دې. اودحضرت حسن بصرى رحمه الله په طريق سره الأنام معنى الجن والانس بيان كړې شوې ده. اودحضرت شعبى رحمه الله نه روايت دې چه هر ژوندى څيزته انام وائى.(۱)

**دَمذكوره اثر تخريج**: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر هم ابن ابى حاتم دعلى بن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.(۲)

**قوله: (برزخ): حاجب**: په دې كښې آيت مبارك ﴿بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ﴾ (۳)لفظ برزخ طرف ته اشاره ده اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې تفسير حاجب نقل كړې شوې دې. دكوم معنى چه حائل او بنديز دې. د آيت مطلب دادې چه نمكين او شيرين دواړو په مينځ كښې يونه ښكاريدونكې قدرتى بنديز دې چه دواړه قسم اوبه په خپل مينځ كښې يوځائى كيدو ته نه پريږدى.(۴)

اكثر په نسخ بخارى كښې هم دغه شان حاجب دې خود مستملى او كشميهنى په نسخوكښې حاجز دې. يعنى د باء موحده په ځائى زاء معجمه دې. معنى د دواړو تقريباً هم يوه ده.(۵)

**دَمذكوره اثر تخريج**: په دې عبارت كښې آيت مبارك ﴿ وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا﴾ (۶) تفسير كړې شوې دې چه په اصل كښې د حضرت مجاهد رحمه الله تفسيرى كلام دې چه الفافا په معنى دملتفة دې. د كوم معنى چه ګڼړ اوډيره ده. د آيت ترجمه ده "اوګڼړ باغات".(۷)

**دَالفاف تحقيق**: د الفاف واحد څه دې؟ په دې كښې د اهل لغت اختلاف دې. د ابن الملقن رحمه الله په قول ددې واحد لف دې. خود يوقول مطابق ددې واحد لفيف دې. ليكن امام كسائى رحمه الله دا جمع الجمع ګرځولې دې. امام ابوجعفر طبرى رحمه الله فرمائى چه د اهل عربيت د الفاف په مفرد كښې اختلاف دې. بعض نحاة بصره ددې مفرد لف ګرځوى او بعض نحاة كوفه لف او لفيف دواړو ته مفرد وائى.

نورفرمائى چه الفاف هم جمع ده اوددې مفرد لف هم جمع ده. چنانچه وائى جنة لفّاء او جنات لف، بياد لف جمع الفاف ده ځكه چه دعربونه دا خبره نه ده اوريدلې شوې چه هغوى شجرة لف وائى. نوددې واحد لفاء دې د كوم چه جمع لف ده اود لف جمع الفاف ده. چنانچه هغه جمع الجمع ده. لكه چه د طبرى رحمه الله په نيز هم دغه راجح دې.

**قوله: والغلب: الملتفة**: په دې كښې آيت مبارك ﴿وَّحَدَآئِقَ غُلْبًا﴾ (۱)تفسير كړې شوې دې چه ددې

---

۱) التوضيح: ۳۰/۱۹وعمدة القارى: ۱۱۵/۱۵وفتح البارى: ۲۹۶/۶وتغليق التعليق: ۴۹۰/۳.

۲) حواله جات بالا.

۳) سورت الرحمن: ۲۰.

۴) ددې آيت مضمون سره متعلق نور تفصيل وړاندې باب نمبر ۱۰ كښې راځى.

۵) عمدة القارى: ۱۱۶/۱۵وفتح البارى: ۲۹۶/۶وشرح القسطلانى: ۲۵۶/۵.

۶) سورت النبأ: ۱۶.

۷) القاموس الوحيد مادة: لفّ وعمدة القارى:۱۱۶/۱۵.

معنى ملتفة ده يعنى په يوبل كښې پيوست، گڼ باغونه، د باب سمع نه غلب الحديقة معنى ده. د باغ گڼ كيدل. دا تفسير هم دحضرت مجاهد رحمه الله نه نقل دې. [2]

**ددواړو اثارو تخريج:** حضرت مجاهد رحمه الله دا دواړه آثار عبدبن حميد رحمه الله نه ابن ابى نجيح عن مجاهد په طريق سره په خپل تفسير كښې موصولاً نقل كړي دي. [3]

**قوله: ﴿فراشا﴾: مهادا، كقوله: ﴿وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ﴾:** په دې عبارت كښې آيت مبارك ﴿الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا﴾ [4] دتفسير طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه د فراش معنى مهاد ده او مهاد هوارې او ښكته زمكې ته وائى. بيا ددې معنى د تائيد دپاره ئې يوبل آيت پيش كړو ﴿وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ﴾ [5] چه كومه معنى د مستقر ده هم هغه معنى د مهاد او فراش ده او د مستقر معنى ده د قيام ځائى، ټكانه او مركز وغيره.

**د آيت مبارك مفهوم:** د دواړو آياتونو مفهوم دادې چه منعم حقيقى الله تبارك وتعالى په انسان باندې د خپل انعام او فضل اظهار فرمائى چه مونږ ستاسو دپاره زمكه هواره او نرمه جوړه كړه دې دپاره چه په آسانئى سره اوګرځيدې شئى او خپل معاملات راغونډ كړې شئى. زمكه ښكته پورته جوړه نه كړه چه انسان چرته په سكون سره كيناستې نه شى.

تاسو په خپله خيال اوكړئى كه زمكه چرته خړه يا بومبرقنى غوندې ځيز وې په كوم چه كيناستل تلل اوقدم كيخودل ممكن نه وې نو د انسان به څه حال وو؟ كه زمكه د خپل هيئت په اعتبار سره ګول وه يا چيته وه، بهرحال ددې تعارف د انسان او انسانيت دپاره ددې نه بهتر ممكن نه دې چه دا د انسان د پاره د فرش كار وركوى او په دې كار باندې هم الله تعالى دا لګولې ده. ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾

**دمذكوره اثر تخريج:** پورته ذكر كړې شوې تفسير دحضرت قتاده رحمه الله اوحضرت ربيع بن انس رحمه الله نه روايت كړې شوې دې هغوى د فراش تفسير مهاد سره كړې دې. اوامام طبرى رحمه الله ددې دواړو دا اثر موصولاً نقل كړې دې. [6]

**قوله: ﴿نكدا﴾: قليلا:** په دې عبارت كښې د آيت مبارك ﴿وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا﴾ [7] لفظ نكدا تفسير ئې فرمائيلې دې چه ددې معنى قليل او كم ده. ددې لفظ نورې هم معنې راخى لكه بخيل، ډير كنجوس، بې فيض سړې. ددې جمع انكاد ده. [8]

**درباغ لاله رويد:** دآيت د دې حصې مفهوم دادې چه كومه زمكه خرابه وى نودهغې نه بغير د ناقص او

---

[1] سورت عبس: ۳۰.

[2] عمدة القارى: ۱۱۶/۱۵ والقاموس الوحيد، مادة: غلب.

[3] عمدة القارى: ۱۱۶/۱۵ وفتح البارى: ۲۹۶/۶ وتغليق التعليق: ۴۹۰/۳.

[4] سورت البقرة: ۲۲.

[5] سورت البقرة: ۳۶.

[6] عمدة القارى: ۱۱۶/۱۵ فتح البارى: ۲۹۶/۶ وتفسير الطبرى: ۱۲۶/۱ البقرة: ۲۲.

[7] سورت الاعراف: ۵۸.

[8] عمدة القارى: ۱۱۶/۱۵ فتح البارى: ۲۹۶/۶ والقاموس الوحيد، مادة: نكد.

خراب نه بل څه نه راوځي. دې نه وراندې د آيت تكړه داده. ﴿وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ﴾ چه كومه زمكه ښه وي د الله تعالى په حكم سره دهغې شينكي ښه راوځي. حضرت مولانا محمد ادريس كاندهلوى رحمه الله فرمائى: د ښكلې اوپاكې زمكې نه دمؤمن زړه مراد دې اودناكاره او خرابې زمكې نه د كافر زړه مراد دې. او قرآن كريم په منزله د باران رحمت او آب حيات دې. دا باران چه د مؤمن د زړه په زمكه باندې اووريږي نو دهغې نه قسما قسم ثمرات او بركات راښكاره كيږي. هغه د قرآن كريم د مواعظ نه ښه فائده اوچته كړه. اود كافر د زړه زمكه شوره وه هغې د باران هدايت نه هيڅ اثر قبول نه كړو. بلكه د هغې نه دكفر اوالحاد ازغني جهاړې راؤوتلې.

باراں کہ در لطافت طبعش خلاف نیست

در باغ لالہ روید ودر شورہ بوم خس[1]

**دَ مذكوره اثر تخريج:** دا اثر ابن ابى حاتم رحمه الله دعلى بن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دې چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلى دى: «**هذا مثل ضرب للكفار، كالبلد السبخة المالحة، التى لا تخرج منها البركة**»[2] دغه شان ابن ابى حاتم رحمه الله دسدى رحمه الله په طريق سره نقل كړى د «**النكد: الشىء القليل الذي لا ينفع**»[3]

**ترجمة الباب سره دَاياتونو مناسبت:** قال ابن عباس.... لكه چه تاسو اوكتل چه امام بخارى رحمه الله دلته د ډيرو زياتو آياتونو تفسير ذكر كړې دې. د غريب الفاظو وضاحت ئې فرمائيلې دې مگر مسئله داده چه ددې آياتونو ترجمة الباب سره يعنى نجوم سره څه تعلق نشته دې؟

ددې اشكال څلور جوابات دى: ① علامه سندهى رحمه الله فرمائى لكه چه امام بخارى ددې الفاظ غريبه اوكلمات تفسير به دلته ځكه ذكر كړې دى چه د دې تعلق سره ددې چه نجوم سره نه دې مگر خلق سره بهر حال شته دې.[4] نجوم هم مخلوق دې اودا څيزونه هم، يعنى واښه زمكه او باغونه وغيره.

② اوعلامه عينى رحمه الله او علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه د ادنى ملابست د وجې نه مؤلف رحمه الله دا كلمات دخپل عادت موافق د خبرې نه خبره ويستلو سره استطراداً ذكر كړې دى دې دپاره چه فائده كښې اضافه اوشى.[5]

③ اوحافظ ابن حجر رحمه الله مناسبت بالباب دحضرت قتاده رحمه الله د كلام دا زياتوالي رحمه الله **أي: إن ناساً جهلة بأمر الله قد أحدثوا في هذه النجوم....**» نه اخذ كړى ده كوم چه شاته دعبد بن حميد رحمه الله په حواله سره تيره شوه چه د يوڅيز تخليق، حسن اوقبيح، طول اوقصر اوتوروالې او سپينوالې كښې د ستورو څه كردار نه وى بلكې د الله تعالى په غوښتلو سره كيږى هر څيز هم هغه پيدا كوى. خو بيا هم په قول د حافظ ابن حجر رحمه الله څه كلمات استطراداً ذكر كړې شوى دى.[6]

---

[1] معارف القرآن كاندهلوى: ۱۳۸/۳
[2] فتح البارى: ۲۹۶/۶ وعمدة القارى: ۱۱۶/۱۵.
[3] حواله جات بالا، وتفسير ابن ابى حاتم: ۱۵۰۴/۵.
[4] حاشية السندهى على البخارى: ۴۵۴/۱ طبع قديمى، والكنز المتوارى: ۱۲۸/۱۳.
[5] عمدة القارى: ۱۱۵/۱۵ و إرشاد السارى: ۲۵۶/۵.
[6] فتح البارى: ۲۹۵/۶.

③ حضرت شيخ الحديث محمد زكريا كاندهلوى رحمه الله فرمائى چه زما په نيز دا خبره هم كولې كيدې شوه چه سپوږمئى او ستورى د بعض ستورو د ميوو پخولو په هغې كښې ښانست پيدا كولو او خوند زياتولو كښې لوئى او اهم كردار وى دا څه پټ فناه خبره نه ده. حضرت ليكى: «ويمكن عند هذا العبد الضعيف أن يقال: إنه قد تقرر فى محله أن للشمس والقمر وبعض النجوم تأثيرا فى نضج الثمار، وإحداث النضارة واللذة فيها، فتأمل، فإنه لطيف» والله اعلم بالصواب.[1]

# ۴- باب: صِفَةِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ بِحُسْبَانٍ.

**ماقبل سره مناسبت:** مخكښنى باب د ستورو سره متعلق وو. د سپوږمئى او نمر تعلق هم د ستورو سره دې. امام بخارى رحمه الله په خاص توګه د نمر او سپوږمئى په جدا باب كښې ذكر كړې دې. ځكه چه په ستورو كښې ددې دواړو يو خاص شان دې. الله تعالى هم ددې دواړو په خاص خصوصيت سره ذكر فرمائيلى دې. چنانچه خپل مختلف نعمتونه شميرلونه پس فرمائى ﴿اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ﴾[2] ځكه چه د عالم دنيا ټول نظام كار ددې دواړو مرهون منت دې او ددوى حركات او شعاګانو سره تړلې دې.

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله د سپوږمئى او نمر كوم صفت د حسبان دې د هغې تفسير كول غواړى چه د حسبان څه معنى ده وغيره وغيره.[3] ددې لاندې به د دواړو اجسام سماويه څه نور صفات هم ذكر كولې شى. لكه څنګه چه به د راتلونكى تفصيلاتو نه معلومه شى.

**قَالَ مُجَاهِدٌ: كَحُسْبَانِ الرَّحَى. وَقَالَ غَيْرُهُ: بِحِسَابٍ وَمَنَازِلَ لَا يَعْدُوَانِهَا. حُسْبَانٌ: جَمَاعَةُ حِسَابٍ، مِثْلُ شِهَابٍ وَشُهْبَانٍ.**

امام بخارى رحمه الله په دې عبارت كښې د سورت رحمن آيت ﴿اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ﴾ تفسير كولو سره دوه اقوال نقل كړى دى. يو حضرت مجاهد رحمه الله او بل د غيره وئيلو سره د نورو حضراتو. د غيره نه مراد ابن عباس رضي الله عنهما دې. د صغانى رحمه الله په نسخه كښې ددې تصريح ده. حربى رحمه الله او طبرى رحمه الله هم په سند صحيح سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دغه نقل كړى دى. امام فراء رحمه الله هم په دې دويم قول باندې جزم كړې دې.[4] بهرحال دواړه تفسيرونه صحيح دى او په دې كښې هيڅ فرق نشته دې.

د رومبى تفسير ماحصل دادې چه سپوږمئى او نمر په خپلو خپلو مدارونو كښې داسې روان دى په ګردش كښې دى لكه ميچن چه دوه ارخيزه چليږى او ددې حركت رحوى وى. دا دواړه د خپل مقرر دائرې نه انحراف نه كوى. لكه څنګه چه د ميچن دواړه كانړى په خپله خپله دائره كښې په حركت كښې وى د مركز نه د هغوى اخوا كيدل ممكن نه وى حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى «يعنى بذلك أنهما لا يتخلفان عما هو مقرر لهما، كالرحى، لا يمكن دورانها على غير ما معين فى دورانه من القرب والبعد من القطعة».[5]

د دويم تفسير مطلب دادې چه هر دواړه اجسام په خپل خپل نظام كښې يو مخصوص حساب او رفتار

---

[1] الكنز المتوارى: ۱۲۹/۱۳.
[2] سورت الرحمن: ۵.
[3] فتح البارى: ۲۹۸/۶ وعمدة القارى: ۱۱۶/۱۵ والكنز المتوارى: ۱۲۹/۱۳.
[4] فتح البارى: ۲۹۸/۶ ومعانى القرآن للفراء: ۱۱۲/۳.
[5] لامع الدرارى: ۳۳۸/۷ والكنز المتوارى: ۱۲۹/۱۳.

سره روان دی. په دوی کښې د هريو يو خاص منزل مقرر دې د کوم نه چه هغوی تجاوز نه کوی او نه ئې کولې شی. او حساب هم داسې چه د لاکهونو کروړونو کالونو نه دا نظام شمسی او قمری روان دې. مګر داسې مضبوط حساب چه په دې کښې کله هم د منټ يا سيکنډ فرق نه راځی.
دحضرت مولانا محمد حسن مکی صاحب رحمه الله په تقرير کښې دی چه د لته تشبيه په دې باره کښې ده چه دواړه په يوه طريقه هم په يو خانی (محور) کښې روان دی د دواړو د پاره په دې کښې بدلون ممکن نه دې. والله اعلم. (١)

**قوله: حسبان جماعة حساب، مثل شهاب وشهبان**: د ابوعبيد رحمه الله قول دې کوم چه هغوی په المجاز کښې ذکر کړې دې. (٢) چه حسبان جمع ده او ددې مفرد حساب دې لکه چه د شهاب جمع شهبان راځی. علامه اسماعيلی رحمه الله فرمائی چه کوم خلق دا د حساب نه مشتق کوی نو دهغوی په نيز دا لفظ دوه احتماله لری جمع به وی يا به مصدر وی. (٣)
دعلامه عينی رحمه الله کلام په دې سلسله کښې نور واضح دې فرمائی: حسبان کله مصدر وی لکه غفران نقصان او کفران وغيره او کله جمع وی لکه شهبان چه د شهاب جمع ده رکبان چه د راکب جمع ده او رهبان چه د راهب جمع ده. (٤) اوحضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله دا قول ذکر کولو مقصد دادې چه دا کلمه څنګه چه مصدر دې دغه شان جمع هم ده او دغه شان دا لفظ مشترك دې. (٥)

**دمجاهد رحمه الله د اثر تخريج**: د امام مجاهد رحمه الله قول علامه فريابی رحمه الله په خپل تفسير کښې ابن أبي نجيح عن مجاهد په طريق سره موصولاً نقل کړې دې. (٦)

**د ابن عباس رضی الله عنهما د اثر تخريج**: دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اثر کوم چه مؤلف رحمه الله وقال غيره وئيلو سره نقل کړې دې. چه عبدبن حميد رحمه الله حربی رحمه الله او طبری رحمه الله ټولو موصولاً نقل کړې دې. ددې قول نسبت ابومالك غفاری رضی الله عنه طرف ته هم کړې شوې دې کوم چه عبدبن حميد رحمه الله نقل کړې دې. (٧)

﴿وَضُحَاهَا﴾/الشمس: ١/: ضَوْؤُهَا. ﴿أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ﴾ /يس: ٤٠/لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ أَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْآخَرِ: وَلَا يَنْبَغِي لَهُمَا ذَلِكَ. ﴿سَابِقُ النَّهَارِ﴾/يس: ٤٠/: يَتَطَالَبَانِ، حَثِيثَانِ. ﴿نَسْلَخُ﴾/يس: ٣٧/: نُخْرِجُ أَحَدَهُمَا مِنَ الْآخَرِ وَنُجْرِي كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا. ﴿وَاهِيَةٌ﴾/الحاقة: ١٦/: وَهْيُهَا تَشَقُّقُهَا. ﴿أَرْجَائِهَا﴾/الحاقة: ١٧/: مَا لَمْ يَنْشَقَّ مِنْهَا، فَهُمْ عَلَى حَافَتَيْهَا، كَقَوْلِكَ: عَلَى أَرْجَاءِ الْبِئْرِ. ﴿أَغْطَشَ﴾/النازعات: ٢٩/: و﴿جَنَّ﴾/الأنعام: ٧٦/: أَظْلَمَ.

**قوله: ﴿وَضُحَاهَا﴾ ضَوْؤُهَا**: د آيت مبارك ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا﴾ (٨) د لفظ ضحاها تفسير بيانولې شی

---

(١) تعليقات اللامع: ٣٣٨/٧ والكنز المتوارى: ١٢٩/١٣.

(٢) مجاز القرآن: ٢٤٢/٢ سورة الرحمن، مكتبة الخانجي، القاهرة.

(٣) فتح البارى: ٢٩٨/٦ والكنز المتوارى: ١٢٩/١٢.

(٤) عمدة القارى: ١١٦/١٥.

(٥) لامع الدرارى: ٣٣٨/٧ والكنز المتوارى: ١٢٩/١٣.

(٦) تفسير مجاهد: ٦٣٩/٢ والطبرى: ٦٨/٢٧ فتح البارى: ٢٩٨/٦ عمدة القارى: ١١٦/١٥.

(٧) تفسير الطبرى: ٦٨/٢٧ وفتح البارى: ٢٩٨/٦ عمدة القارى: ١١٦/١٥ تغليق التعليق: ٤٩٢/٣ والتوضيح: ٣٤/١٩ والحاكم: ٤٧٤/٢ كتاب التفسير باب تفسير سورة الرحمن رقم: ٣٧٦٨ وصححه المغنى فى تلخيصه.

(٨) سورت الشمس: ١.

چه معنى ضوء يعنى رنړا ده. داهم دحضرت مجاهد رحمه الله قول دې. ددې لفظ نورې معنې هم بيان کړې شوې دی.[1]
مګر په قول د ابن التين رحمه الله داهل لغت په نيز معروف هم دغه دی چه ضحى هغه وخت دې کوم وخت چه نمر راؤخيژى اوددې نه پس لږ شان وخت. رنړا نوره خوره شي نودې ته ضحاء وائي يعنى فتحه ضاد او مده سره.[2].

**دَ مذکوره اثر تخريج:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا اثر عبدبن حميد رحمه الله په خپل تفسير کښې موصولاً نقل کړې دې.[3]

**قوله:: ﴿اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ﴾ لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ أَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْآخَرِ، وَلَا يَنْبَغِي لَهُمَا ذٰلِكَ** : په دې عبارت کښې آيت مبارک ﴿لَا الشَّمْسُ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا اللَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ ۚ وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾[4] تفسير کولې شى ، دا تفسير هم د حضرت مجاهد رحمة الله عليه نه روايت دې . د عبارت مطلب دادې چې د سپوږمۍ او نمر دواړو دپاره دا ښه نه دی چې د يو بل رنړا پټه کړی ګنی په مقرر نظام کښې به خلل پيدا شى .

**قوله:: ﴿سَابِقُ النَّهَارِ﴾ يَتَطَالَبَانِ، حَثِيثَانِ** : هم ددې ذکرشوى آيت طرف ته اشاره ده دحثيث معنى سريع او تيز ده.[5] مطلب دادې چه دا دواړه يوبل پسې لګيدلې دی ليکن يوبل نه شى راګيرولې. داهم دحضرت مجاهد رحمه الله تفسير دې.

**قوله:: ﴿نَسْلَخُ﴾ نُخْرِجُ أَحَدَهُمَا مِنَ الْآخَرِ وَنُجْرِي كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** : د مذکوره بالاآيت طرف ته اشاره ده ددې ټولو پوره وضاحت کتاب التفسير کښې راغلې دې.[6]

**دَمذکوره تخريج اثر:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا تفسيرى اثر علامه فريابى رحمه الله خپل تفسير کښې ابن ابى نجيح رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل کړې دې.[7]

**يوه اهم فائده:** ددې ځائې عبارت کښې نجري كل واحد منهما نون سره دې. دغه شان به لفظ کل منصوب وى خو وړاندې کتاب التفسير[8] په روايت کښې ياء مثناة سره يجري دې. فاعل لفظ کل دې. په اول صورت کښې به مطلب داشى الله تعالى فرمائى چه مونږ دواړه چلوو. په دويم صورت کښې به مطلب داشى چه هغه دواړه په آسمان کښې روان دی. لکه چه د فريابى رحمه الله په تفسير کښې دی: ((ويجري كل

[1] التوضيح: ١٩/٣٥ وعمدة القارى: ١١٧/١٥ وتفسير مجاهد: ٧٦٢/٢.
[2] حواله جات بالا
[3] حواله جات بالا، وفتح البارى: ٢٩٨/٦.
[4] سورة يس: ٤٠ .
[5] القاموس الوحيد مادة: حثيث وعمدة القارى: ١١٧/١٥ والتوضيح: ٣٥/١٩.
[6] كشف البارى كتاب التفسير: ٥٤١.
[7] فتح البارى: ٢٩٨/٦ وعمدة القارى: ١١٧/١٥.
[8] بخارى شريف: ٧٠٩/٢ كتاب التفسير قديمى.

منهما في فلك))[1]

**قوله:: (وَاهِيَةٌ) وهيها تشققها** په دې عبارت کښې آيت مبارك (وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ)[2] د لفظ واهية تفسير بيان کړې شوې دې چه دوهي معنى تشقق يعني د شليدلو ده. دغه شان چاودلو ته هم تشقق وائى. دا د فراء يا قزاز قول دې[3] د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دواهية تفسير ضعيفة متمزقة نقل کړې شوې دې.[4]

**قوله:: (أَرْجَآئِهَا) ما لم ينشق منها، فهم على حافتيها، كقولك: على أرجاء البئر** آيت مبارك (وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى أَرْجَآئِهَا ۚ وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ)[5]. د لفظ أرجاء تفسير کولې شي. أرجاء جمع ده اوددې مفرد رجاء دې. دکوهى غاړې ته وائى. رجوان: دکوهى دوه غاړې. بل دمطلقا غاړې اوګوټ دپاره هم دا لفظ استعمالولې شى.[6]

د (أَرْجَآئِهَا) د ضمير په مرجع کښې دوه اقوال دى. حضرت قتاده رحمه الله او حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله سماء مرجع ګرځوى (وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى أَرْجَآئِهَا): أي على حافات السماء اوحضرت سعيد بن جبير رحمه الله دنيا ته على حافات الدنيا.[7]

دحافظ رحمه الله په قول د اول قول تصويب کړې شوې دې اوددې په تائيد کښې ئې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړې دې. ((والملك على حافات السماء حين تشقق))[8] امام رازى رحمه الله په تفسير كبير کښې د آيت معنى بيانولو سره فرمائى چه دقيامت په ورځ کله آسمان اوشليږى نو فرښتې د شليدو د خايونونه د آسمان د غاړو طرف ته منتقل کيږى.[9]

**يواشكال اودهغې جوابات:** دلته دا شكال پيدا كيږى چه د فرښتو خو به ړومبى ګرز سره مرګ واقع شى. د الله تعالى ارشاد دې (وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ۖ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرٰى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُونَ)[10] بيا اخوا ديخوا د منتقل كيدو څه معنى؟ ددې اشكال مختلف جوابات دى: ① فرښتې به د يولحظې دپاره د آسمان په غاړو کښې اودريږى بيا به مرې شى.
② (وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى أَرْجَآئِهَا) نه مراد هغه فرښتې دى کومې چه دمرګ نه مستثنى دى دچاباره کښې چه

---

[1]) فتح البارى: ۲۹۸/۶.
[2]) سورت الحاقة: ۱۶.
[3]) كما قال ابن الملقن. التوضيح: ۳۵/۱۹..
[4]) حواله بالا والفتح: ۲۹۸/۶والعمدة : ۱۱۷/۱۵ومعانى القرآن للفراء: ۱۸۱/۳دار المصرية.
[5]) سورة الحاقة :۱۷
[6]) عمدة القارى: ۱۱۷/۱۵والقاموس الوحيدمادة: رجا
[7]) فتح البارى: ۲۹۸/۶وعمدة القارى: ۱۱۷/۱۵والكنز المتوارى: ۱۳۰/۱۳.
[8]) حواله جات بالا.
[9]) التفسير الكبير: ۹۶/۳۰سورة الحاقة والكنز المتوارى:۱۳۰/۱۳.
[10]) سورت الزمر: ۶۸

پخپله الله تعالى ارشاد فرمائى ﴿ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ﴾ يعنى د غارو والا فرښتې به د مرګ نه مستثنى وى.[1]

③ علامه سليمان جمل رحمه الله فرمائى د آيت معنى داده چه فرښتې به په هغه اطراف كښې ولاړې وى چه دغه وخت لا پريوتلې نه وى ځكه چه دهغوى خپل مساكن خوبه د آسمان د شليدو د وجې نه برباد شوې وى. په دغه غارو باندې به دهغوى د اودريدو وجه داوى چه هغوى به د الله تعالى د امر په انتظار وى چه په زمكه باندې كوزيدوسره د هغې اوسيدونكى راګير كړى. والله اعلم.[2]

**قوله:: ﴿أَغْطَشَ﴾ و﴿جن﴾ أَظْلَمَ**: په اول كلمه كښې آيت مبارك ﴿وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا﴾[3] طرف ته اودويمه كلمه كښې ﴿فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ اللَّيْلُ رَأَى كَوْكَبًا قَالَ هَذَا رَبِّي فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ لَا أُحِبُّ الْآفِلِينَ﴾[4] طرف ته اشاره ده. د لفظ أظلم په ذريعه ددې تفسير كړې شوې دې چه ددې معنى د تيارې كولو ده.[5]

د اول آيت تفسير دحضرت قتاده رحمه الله دې اوددويم تفسير د امام ابوعبيده رحمه الله. چه هغوى په المجاز كښې په دې الفاظوسره كړې دې. ﴿ فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ اللَّيْلُ ﴾ : أي غطى عليه وأظلم.[6]

**د اول تفسير تخريج**: دامام قتاده رحمه الله مذكوره پورتنې تفسيرى اثر عبدبن حميد رحمه الله په خپل تفسير كښې په خپل طريق سره موصولاً ذكر كړې دې.[7]

**قوله:: وقال الحسن: ﴿كورت﴾ تكور حتى يذهب ضوءها**: دلته مصنف رحمه الله آيت مبارك ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾[8] په تفسير كښې دحضرت حسن بصرى رحمه الله قول ذكر كړې دې چه نمر به راغونډ كړې شى تردې چه دهغه رڼا به ختمه شى.

**دمذكوره اثر تخريج**: د حضرت حسن بصرى رحمه الله دا اثر ابن ابى حاتم رحمه الله په خپل تفسير كښې ابو رجاء عن الحسن په طريق سره موصولاً بيان كړې دې.[9]

**قوله:: ﴿والليل وما وسق﴾: جمع من دابة**: د شپې يوصفت دادې چه هغه هرڅيز پتوى هرشى د هغې په تياره كښې پټيږى خوددې په خلاف د ورځې هرشى په حركت كښې راځى او په خپل كاركښې

---

[1] التفسير الكبير: ۹۶/۳۰.
[2] حاشية الجمل على الجلالين: ۹۵/۹سورة الحاقة الآية:۱۷والكنز المتوارى:۱۳۰/۱۳.
[3] سورت النازعات:۲۹.
[4] سورت الانعام:۷۶.
[5] فتح البارى:۲۹۸/۶عمدة القارى: ۱۱۷/۱۵.
[6] فتح البارى:۲۹۸/۶عمدة القارى: ۱۱۷/۱۵مجاز القرآن: ۱۹۸/۱سورة الانعام:۷۶و ۲۸۵/۲.
[7] حواله جات بالا
[8] سورت التكوير:۱.
[9] فتح البارى: ۳۹۸/۶وتغليق التعليق: ۴۹۲/۲والتوضيح: ۳۵/۱۹.

لګیا کیږي. په آیت مبارك کښې د شپې هم دغه صفت په خصوصیت سره بیان کړې شوې دې.[1] د من دابة قید په ظاهره اتفاقي دې خکه چه شپه هرشي راجمع کوي صرف خناور نه. والله اعلم.

**دمذکوره اثر تخریج:** دا اثر عبدبن حمید رحمه الله دمبارك بن فضاله عن الحسن په طریق سره موصولاً نقل کړې دې. بل طبري رحمه الله هم دا اثر ابن علیه عن ابی رجاء په طریق سره موصولاً ذکر کړې دې.[2]

**قوله:: ﴿اتسق﴾: أستوي:** د آیت مبارك ﴿وَالْقَمَرِ إِذَا اتَّسَقَ﴾[3] لفظ ﴿اتَّسَقَ﴾ معنی بیانولې شي چه ددې معنی برابر اود استواء ده. اود آیت معنی ده کله چه سپوږمۍ پوره شي بدر کامل جوړه شي اودا د ایام بیض په شپو کښې کیږي.[4] اتسق په اصل کښې أوتسق وو واؤ په تاء سره بدل کړې شو دواړه تاء مدغم کړې شوې.[5]

ددې مشتق منه هم وسق دې. دکوم معنی چه اوس پورته ذکر کړې شوه چه جمع کول دي. سپوږمۍ هم په دې شپو کښې خپله رڼا جمع کوي. قاله مجاهد.[6]

**دمذکوره اثر تخریج:** حضرت حسن رحمه الله دا اثر د عبدبن حمید رحمه الله نه منصور عن الحسن په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.[7] امام طبري رحمه الله هم دا اثر موصولاً ذکر کړې دې.[8]

**قوله:: ﴿بروجا﴾ منازل الشمس والقمر:** د الله تعالی د ارشاد ﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ جَعَلَ فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾[9] د لفظ بروج تفسیر کولې شي. ددې لفظ ډیر مطلبونه اوتفسیرونه کړې شوي دي دکوم نه چه یو امام بخاري رحمه الله اختیار کړې دې کوم چه د حضرت حسن بصري رحمه الله نه نقل دې چه د بروج معنی د سپوږمۍ او نمر منازل دي.[10] آسمان په دوولسو برجونو کښې تقسیم دې د هرې یوې دولسمې حصې نوم برج دې. بیا دا دوولس برجونه په اتلسو منزلونو کښې تقسیم دي اود هربرج دپاره دوه منزلونه او ثلث مقرر دې. دا اته ویشت منزلونه د قمر یعنې سپوږمۍ دي اود هر برج دیرش درجې مقرر دي اود دولسو برجو درې سوه شپیته (۳۶۰) درجې دي. دا ټولې درجې چه کله نمر پوره کوي نو د هغه یوه دوره پوره کیږي دا دوره د ټول آسمان ده. نمر دا په یو کال کښې او سپوږمۍ په اته ویشت ورځو کښې پوره کوي.[11]

---

[1] التوضیح: ۳۶/۱۹.

[2] فتح الباري: ۲۹۸/۶ وعمدة القاري: ۱۱۷/۱۵ وتفسیر الطبري: ۷۶/۳۰.

[3] الانشقاق: ۱۸.

[4] التوضیح: ۳۶/۱۹ عمدة القاري: ۱۱۸/۱۵.

[5] عمدة القاري: ۱۱۸/۱۵.

[6] حواله بالا. والتوضیح: ۳۶/۱۹.

[7] فتح الباري: ۲۹۸/۶ وعمدة القاري: ۱۱۸/۱۵ وتغلیق التعلیق: ۴۹۳/۳.

[8] تفسیر طبري: ۷۷/۳۰ خو ابن الملقن رحمه الله دحضرت حسن رحمه الله دا ټول آثار دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما طرف ته منسوب کړي دي. اوګورئ: التوضیح: ۳۲/۱۹.

[9] سورت الفرقان: ۶۱

[10] فتح الباري: ۲۹۹/۶ وعمدة القاري: ۱۱۸/۱۵.

[11] معارف القرآن کاندهلوي: ۲۹۳/۴، ۵۱۹/۵

خو د ابوصالح رحمه الله نه ددې تفسير لونې لونې ستورى نقل دې او عطيه عوفى رحمه الله، يحيى بن رافع رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه دا په آسمان كښې څه محلات دى.[1] علامه طبرى رحمه الله دا آخرى قول راجح ګرځولې دې چه په آيت كښې د بروج نه محلات او قصور مراد دى.[2]

نجوميانو او جوتشيانو دخپل فرضى علم دپاره چه كوم اصطلاحات مقرر كړى دى هغه دلته هيڅ كله مراد نه دى. والله اعلم.[3]

**دمذكوره اثر تخريج:** دحضرت حسن بصرى رحمه الله دا اثر عبدبن حميد رحمه الله موصولاً نقل كړې دې.[4]

**قوله:: الحرور بالنهار مع الشمس:** آيت مبارك ﴿ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ ﴾[5] تفسير فرمائى چه حرور د نمر ګرمئى او تاؤ ته وائى. دا د ابوعبيده رحمه الله تفسير دې كوم چه هغوى په المجاز كښې ذكر كړې دې.[6] خو فراء رحمه الله فرمائى چه حرور د هميشه ګرمئى ته وائى كه هغه په شپه كښې وى او كه په ورځ كښې وى او سموم د ورځې ګرمئى (تاؤ) ته وائى.[7]

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَرُؤْبَةُ: الْحَرُورُ بِاللَّيْلِ، وَالسَّمُومُ بِالنَّهَارِ، يُقَالُ: ﴿يُولِجُ﴾/الحج: ۶۱/: يُكَوِّرُ ﴿وَلِيجَةً﴾/التوبة: ۱۶/: كُلُّ شَيْءٍ أَدْخَلْتَهُ فِي شَيْءٍ.

**قوله:: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَرُؤْبَةُ: الْحَرُورُ بِاللَّيْلِ، وَالسَّمُومُ بِالنَّهَارِ:** حضرت ابن عباس رضى الله عنهما او رؤبه بن عجاج تميمى رحمه الله قول دادې چه حرور د شپې ګرمې هوا او سموم په ورځ كښې چليدونكې ګرمې هوا ته وائى. او د سدى رحمه الله نه روايت دې چه په آيت مبارك كښې ظل او حرور نه مراد جنت او دوزخ دې. د سدى رحمه الله دا قول ابن ابى حاتم رحمه الله نقل كړې دې.[8]

**د مذكوره اثر تخريج:** حافظ رحمه الله فرمائى چه دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما طرف ته منسوب كړې شوې دا اثر موصولاً چا نقل كړې دې. ماته تراوسه پورې معلومه نه شوه.[9] خو د رؤبه بن عجاج رحمه الله قول ابو عبيده رحمه الله په المجاز كښې ذكر كړې دې.[10]

**رؤبه بن عجاج:** دا مشهور شاعر ابوالجحاف يا ابومحمد رؤبه بن عبدالله العجاج بن رؤبه تميمى سعدى رحمه الله دې. رجزيه شاعر وو په دې فن كښې دهغه ډير لوئى نوم وو او د عرب په مشهورو فصحاء

---

[1] فتح البارى: ۶/۲۹۹ عمدة القارى: ۱۵/۱۱۸ والتوضيح: ۱۹/۳۶ تفسير ابن أبى حاتم: ۸/۲۸۱۶.

[2] تفسير طبرى: ۱۹/۱۹.

[3] قال الإمام الكشميرى رحمه الله تعالى: أما النحوسة والبركة، فإنها أهون على الله من ذلك. كيف! وأنها مسخرة تصعد وتغرب، تغيب وتشرق، وتدور كل ساعة كالخدام، فهى أصغر على الله من أن تكون فيها النحوسة والبركة. نعم، يعلم من القرآن أن فى السموات دفاتر، وفيها تدابير أيضا، وإليه أشار البخارى من قوله: فمن تأول فيها بغير ذلك أخطأ. فيض البارى: ۴/۳۰۴.

[4] فتح البارى: ۶/۲۹۹.

[5] سورت فاطر: ۲۱.

[6] مجاز القرآن: ۲/۱۵۴ والتوضيح: ۱۹/۳۷.

[7] فتح البارى: ۶/۲۹۹ عمدة القارى: ۱۵/۱۱۸ وتفسير طبرى: ۱۰/۴۰۶.

[8] فتح البارى: ۶/۲۹۹ عمدة القارى: ۱۵/۱۱۸.

[9] فتح البارى: ۶/۲۹۹ خو د ابن الملقن رحمه الله په قول ابن ابى زيات دا اثر په تفسير ابن عباس رضى الله عنهما كښې ذكر كړې دې. التوضيح: ۱۹/۳۷.

[10] الفتح: ۶/۲۹۹ والعمدة القارى: ۱۵/۱۱۸ وتغليق التعليق: ۳/۴۹۳ ومجاز القرآن: ۲/۱۵۴ الفاطر: ۲۸.

كښې دهغوى شمير كيدلو. مخضرم الدولتين دې يعنى د اموى او عباسى دواړو خلافتونو زمانه ئې ليدلې ده. ددواړو د ډيروخلفاؤ مدح سرائى ئې هم كړې ده.[1]

دې د خپل پلار عبدالله عجاج رحمه الله او دغفل بن حنظله بكرى رحمه الله نه د حديث روايت كوى. ددوى نه روايت كونكو كښې د هغوى څوئې عبدالله نه علاوه عمرو بن العلاء - وهومن أقرانه - يونس بن حبيب، خلف الاحمر، يحيى القطان، نضر بن شميل، ابوعبيده معمر بن المثنى، ابوزيد انصارى او عثمان بن الهيثم الموذن وغيره شامل دى.[2]

دې د روايت حديث په اعتبارسره مختلف فيه راوى دې. بعض تضعيف كړې او بعض توثيق، نوددرميانه درجې راوى دې. مگر په لغت شعر اوفصاحت كښې امام منلې كيدو. چنانچه د ژوند اكثر حصه ئې په بصره كښې تيره كړې ده. دهغه زمانې اكثر اكابر اهل لغت دهغوى نه استفاده كړې ده. دې په شعر كښې حجت او لغت كښې مقتداوو. په دې وجه چه كله دهغوى وفات اوشو نومشهور امام نحو خليل بن احمد فراهيدى رحمه الله دا وقيع جمله ارشاد كړه «دفنّا الشعرواللغة والفصاحة».[3]

امام بخارى رحمه الله دده نه صرف يوتعليق نقل كړې دې دكوم تعلق چه لغت سره دې نه چه حديث سره اوپه لغت كښې لكه چه اوس تير شوهغه امام وو.[4]

كله چه ابراهيم بن عبدالله بن حسن بن على رحمه الله په بصره كښې د اموى خلافت خلاف خروج كړې وو نو رؤبه بن عجاج رحمه الله د فتنې د ويرې نه د كلى طرف ته وتلې وو او وهم هلته ۱۴۵هجرى كښې د ډيروتكاليفو زغملونه پس انتقال شو. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.[5]

**قوله: يقال: ﴿يولج﴾: يكور**: آيت مبارك ﴿يُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ﴾[6] تفسير فرمائى چه د يولج معنى يكور ده. يعنى راغونډول شپه په ورځ كښې. ابوعبيده رحمه الله فرمائى چه مطلب دادې چه شپه وړه كوى لكه چه په گرميانو كښې كيږى اوورځ زياتوى. ددې برعكس په يخنيانو كښې كوى چه شپې لوئى او ورځې وړې كيږى.[7]

**قوله: ﴿وليجة﴾ كل شيء أدخلته في شيء**: وليجة هغه څيز كوم چه څوك په يوبل څيز كښې داخل كړى (اوهغه د هغې حصه نه وى)، لكه چه وزن فعليه په معنى مفعوله وى. صاحب الجمل علامه سليمان رحمه الله دكلام نه هم دغه مستفاد كيږى. چنانچه وليجه به په معنى د مدخوله وى.[8]

پورته ذكر كړې شوې قول د امام ابوعبيده رحمه الله دې كوم چه هغه د آيت مبارك ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً﴾[1] وضاحت كولوسره

---

[1] تهذيب ابن حجر: ۳/۲۹۰والأعلام للزركلى: ۳/۳٤.

[2] تهذيب التهذيب: ۳/۲۹۰.

[3] الأعلام للزركلى: ۳/۳٤ووفيات الأعيان: ۱/۱۸۷.

[4] تهذيب التهذيب: ۳/۲۹۱وميزان الاعتدال: ۳/٤۷۹.

[5] تهذيب التهذيب: ۳/۲۹۱وميزان الاعتدال: ۳/٤۸۰.

[6] سورت الفاطر:۱۳.

[7] فتح البارى: ٦/۲۹۹وعمدة القارى: ۱۵/۱۱۸.

[8] لامع الدرارى وتعليقاته: ۷/۳۳۹والكنز المتوارى:۱۳/۱۳۱وحاشية لجمل على الجلالين: ۲/۲۳۵.

ارشاد فرمائيلي دي.(۲) حضرت مفسرين رحمهم الله ددي کلمې مختلف معاني ليکلي دی مثلاً خيانت، مکر، غيرمسلمو سره پټ روابط ساتل چه د مسلمانانو راز غيرمسلم ته ښکاره کول وغيره.(۳)

**ترجمة الباب سره د ايات مناسبت:** امام بخاري رحمه الله ترجمة الباب صفة الشمس والقمر قائم فرمائيلې وودې لاندې ډير تفسيري کلمات هم دمختلف مفسرينو حضراتو په حواله سره درج کړي. ددغه ټولو کلماتو مناسبت په ترجمه سره واضح دې چه په هغې کښې د دې دواړو يعنی سپوږمئی او نمر څه نه څه صفت بيان کړې شوې دې.

خود آخري کلمې باب سره په ظاهره مناسبت نشته دې يعني د ﴿وَلِيجَةً﴾، ځکه چه ددې سپوږمئی او نمر سره څه واسطه نشته دې. غالباً داکلمه د سابقه کلمې ﴿يُولِجُ﴾ مناسبت سره دلته ذکرکړې شوې ده کومه چه د باب افعال نه وه اووليجه د باب ضرب نه ده. استطراداً ئې دلته ذکر کړې ده. والله اعلم بالصواب.

ددې نه پس په دې پوهه شئي چه مصنف رحمه الله ددې باب لاندې شپږ احاديث ذکر کړي دی د کوم نه چه رومبې حديث دحضرت ابوذر رضي الله عنه دې.

## الحديث الاول

[۳۰۲۷] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ [ص:۱۰۸] إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِأَبِي ذَرٍّ حِينَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ: «أَتَدْرِي أَيْنَ تَذْهَبُ؟»، قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: "فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتَّى تَسْجُدَ تَحْتَ العَرْشِ، فَتَسْتَأْذِنَ فَيُؤْذَنُ لَهَا وَيُوشِكُ أَنْ تَسْجُدَ، فَلاَ يُقْبَلَ مِنْهَا، وَتَسْتَأْذِنَ فَلاَ يُؤْذَنَ لَهَا يُقَالُ لَهَا: ارْجِعِي مِنْ حَيْثُ جِئْتِ، فَتَطْلُعُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى: {وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذَلِكَ تَقْدِيرُ العَزِيزِ العَلِيمِ} (۴)"[۴۵۲۴، ۴۵۲۵، ۶۹۸۸، ۶۹۹۶](۵)

---

(۱) سورت التوبة: ۱۶.

(۲) فتح البارى: ۲۹۹/۶ وعمدة القارى: ۱۱۸/۱۵ ومجاز القرآن: ۲۵۴/۱ سورة التوبة.

(۳) عمدة القارى: ۱۱۸/۱۵ والكنز المتوارى: ۱۳۱/۱۳.

(۴) يس: ۳۸

(۵) قوله: عن أبى ذر رضى الله عنه، الحديث: رواه البخارى فى تفسير سورة يس، باب قوله تعالى: ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا﴾ رقم الحديث ۴۸۰۲-۴۸۰۳ وفى التوحيد باب ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ رقم: ۷۴۲۴ وباب قوله تعالى ﴿تَعْرُجُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ إِلَيْهِ﴾ رقم: ۷۴۳۳ ومسلم رقم: ۳۹۹-۴۰۲ فى الإيمان باب الزمن الذى لا يقبل فيه الإيمان والترمذى رقم: ۳۲۲۷ وفى التفسير باب ومن سورة يس، وفى الفتن باب ماجاء فى طلوع الشمس من مغربها، رقم: ۲۱۸۶.

## تراجم رجال

**محمدبن يوسف:** دا محمدبن يوسف بن واقد فريابى رحمه الله دي. ددوى تفصيلى تذكره كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم..... په ضمن كښې تيره شوې ده. [1]

**سفيان:** دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى كښې او تفصيلى حالات ((كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا....كښې تير شوى دى. [2]

**اعمش:** دامشهورمحدث ابومحمدسليمان بن مهران الكاهلى المعروف بالاعمش رحمه الله دې. ددوى حالات ((كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم)) لاندې تيرشوى دى. [3]

**ابراهيم تيمي:** دا ابراهيم بن يزيد بن شريك تيمى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله......، لاندې راغلى دى. [4]

**ابيه:** دا مشهور تابعى حضرت يزيدبن شريك بن طارق رحمه الله دې. [5]

**ابي ذر:** دامشهور صحابى رسول حضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه دې.د دوى تفصيلى تذكره كتاب الإيمان باب المعاصى من أمر الجاهلية په ضمن كښې راغلى دى. [6]

**مستقرمكانى مراد دې كه زمانى؟** آيت دې ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ په دې كښې اختلاف دې چه دلته مستقر مكانى مراد دې كه زمانى؟ دحديث باب نه د مستقر مكانى تائيد كيږى چه نمر دعرش لاندې لاړشى سجده كوى ليكن بعض علماء وائى چه دې نه مستقر زمانى مراددې. يعنى دده د حركت انتها مراد ده چه هغه هلته تلو سره ختم شى كله چه الله تعالى دا ختمول غواړى.

بعض مفسرين حضرات لكه قاضى بيضاوى رحمه الله [7] دويم تفسير ليكلې دې نوشيخ عبدالحق محدث دهلوى دلته ډير خفه دې اوهغه دا وائى چه دا ټول د فلسفې نه د متاثر كيدو اثر دې. واقعه داده چه آيت مبارك دخپل اطلاق په اعتبارسره د دواړو تفسيرونو محتمل دې. په دې كښې هيڅ استعجاب نشته چه حديث مخې ته كولوسره مستقر مكانى مراد واخستې شى او آيت مخې ته كيخودوسره مستقر زمانى مراد واخستې شى. [8]

اوس پاتې شوه داخبره چه نمر سجده څنگه كوى؟ نوددې تفصيل كتاب التفسيركښې شوې دې. [9]

---

[1] كشف الباى: ۲۵۲/۳.

[2] اوگورئى كشف الباري: ۲۳۸/۱.

[3] اوگورئى: كشف الباري: ۲۵۱/۲.

[4] كشف البارى: ۲/۵٤٤.

[5] ددوى دحالاتودپاره اوگورئى كتاب فضائل المدينة باب حرم المدينة

[6] كشف البارى: ۲۳۸/۲.

[7] تفسير البيضاوى مع حاشية الشهاب: ۲۲/۸،يس: ۳۸.

[8] وإليه أشار الشهاب الخفاجى رحمه الله فى حاشيته على البيضاوى: ۲۳/۸وفيض البارى: ۳۰٦/٤ولمعات التنقيح شرح مشكوة المصابيح: ۶۸۵/۸كتاب الفتن باب لعلامات بين يدى الساعة.... الفصل الاول رقم:۵٤٦۸.

[9] كشف البارى كتاب التفسير ص: ۵٤۷-۵٤۵.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنى دې چه په دې كښې د نمر يو صفت دا بيان كړې شوې دې چه هغه روزانه د عرش لاندې د سجدې دپاره خى.... دا هم د ټولو صفاتو د شمس نه يو صفت دې دې سره د ورځې دورانيه مكمل كيږى.[1]

دباب دويم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث الثاني

**[٣٠٢٨]-حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ المُخْتَارِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ الدَّانَاجُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الشَّمْسُ وَالقَمَرُ مُكَوَّرَانِ يَوْمَ القِيَامَةِ»**[2]

## تراجم رجال

**مسدد:** دامسدد بن مسرهد اسدى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره **كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه** لاندې راغلې ده.[3]

**عبدالعزيزبن المختار:** داعبدالعزيز بن المختار انصارى بصرى رحمه الله دې.[4]

**عبدالله الداناج:** دا عبدالله بن فيروزداناج بصرى رحمه الله دې. دانا فارسى ژبه كښې عالم ته وائى. كله چه دهغه تعريف اوكړې شو نوهغه داناج شو لكه نمونه (فارسى) ته عربى كښې نموذج وائى چه د آخرې هاء په جيم معجمه سره بدل وركوى. بعض حضراتو ددوى لقب دانا نقل كړې دې مګر په دواړو كښې هيڅ فرق نشته دې. د داناج او دانا دواړو معنى يوه ده.[5] په صغار تابعين كښې ددوى شمير كيږى.[6]

دې دحضرت يانس حضرت ابوبرزه اسلمى رضي الله عنه نه علاوه ابوسلمه بن عبد الرحمن[7] ابوساسان حصين بن منذر، ابو رافع الصائغ، سليمان بن يسار عكرمه رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت كوى. اوددوى نه روايت كونكو كښې حضرت قتاده (**وهومن أقرانه**) سعيد بن ابى عروبه، حماد بن سلمه، همام بن يحيى، عبدالعزيز بن المختار اسماعيل بن عليه رحمهم الله وغيره شامل دى.[8]

---

[1] فتح البارى: ٢٩٩/٦عمدة القارى: ١١٩/١٥.

[2] قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث،انفرد به الإمام البخارى رحمه الله. انظر تحفة الأشراف: ٤٦٤/١٠رقم: ١٤٩٦٧.

[3] كشف البارى:٢/٢.

[4] ددوى حالاتودپاره اوګورئى كتاب الصلاة باب التعاون في بناء المسجد.

[5] تهذيب الكمال: ٤٣٧/١٥وإكمال مغلطاى: ١٢٣/٨تهذيب ابن حجر: ٣٥٩/٥.

[6] فتح البارى: ٢٩٩/٦.

[7] وذكرابن أبى حاتم أنه رأى أبا برزة الأسلمى وروى عن أبى سلمة ففرق بينهما الجرح والتعديل:١٣٦/٥وإكمال مغلطاى: ١٢٤/٤.

[8] دَ شيوخ اوتلامذه دَ تفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال:٤٣٧/١٥تهذيب ابن حجر: ٣٥٩/٥.

امام ابوزرعه رازى رحمه الله فرمائى ثقة.[1] امام نسائى رحمه الله فرمانى «لابأس به».[2] ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[3] امام عجلى رحمه الله فرمانى «بصري ثقة».[4]
امام بخارى رحمه الله د عبدالله بن داناج رحمه الله نه صرف هم دغه يو حديث باب روايت كړې دې.[5]
په ائمه سته كښې د امام ترمذي رحمه الله نه علاوه نورو پنځوواړو حضراتو د هغه روايات قبول كړى دى.
رحمه الله تعالى رحمة واسعة.[6]

**ابوسلمه بن عبدالرحمن**: دا مشهور تابعى حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنى رحمه الله دې.
د دوى تفصيلى حالات **كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان** كښې راغلى دى.[7]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې د دوى تذكره **كتاب الإيمان باب أمور الإيمان** كښې تيره شوې ده.[8]

**قوله: قال: الشمس والقمر مكوران يوم القيامة**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك دې چه د قيامت په ورځ به سپوږمئى او نمر دواړه راغونډولې شى.
مكوران صيغه تثنيه ده د تكوير نه مشتق ده . اول دا خبره راغلې ده چه د دې معنى د راغونډولو ده.
اوس د حديث شريف مطلب دا شو چه د قيامت په ورځ به دا دواړه راغونډولې شى او د دې رڼړا به ختمولې شى.

د مسند بزار رحمه الله وغيره په روايت كښې دا اضافه هم نقل ده: «في النار، فقال الحسن: وما ذنبهما؟ قال أبوسلمة: أنا أحدثك عن رسول الله صلى الله عليه وسلم وأنت تقول: ما ذنبهما؟ فسكت الحسن».[9]

**د حديث نور تفصيل**: علامه طحاوى رحمه الله په شرح مشكل الآثار كښې نور تفصيل دا نقل كړې دې چه عبدالله دانا رحمه الله فرمائى چه خالد بن عبدالله بن خالد بن اسيد په كومه زمانه كښې چه د بصره ګورنرو هم په هغه زمانه كښې به د حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن رحمه الله په مجلس كښې كوم چه به په جامع مسجد كښې لګيدلې وو كښې هم حاضر شو. هم په دغه دوران كښې حضرت حسن بصرى رحمه الله تشريف راوړو او حضرت ابوسلمه رحمه الله سره كيناستو او د احاديثو مذاكره ئې كوله. چنانچه حضرت ابوسلمه رحمه الله د دې مذاكره په دوران كښې احاديث، او حديث باب واورولو چه د قيامت په ورځ به سپوږمئى او نمر جمع كولو سره راغونډ كړې شى او په جهنم كښې به غورزولې شى. او دواړو ته به د غوائى شكل وركولې شى. په دې باندې حضرت حسن بصرى رحمه الله اووئيلې آخر په كوم

---

[1] ) تهذيب الكمال:٤٣٧/١٥ تهذيب ابن حجر: ٣٥٩/٥.
[2] ) تهذيب الكمال:٤٣٧/١٥ تهذيب ابن حجر: ٣٥٩/٥ وخلاصة الخزرجى: ٢١٠.
[3] ) ٣٩/٥.
[4] ) تعليقات تهذيب الكمال:٤٣٨/١٥.
[5] ) فتح البارى: ٢٩٩/٦.
[6] ) تهذيب الكمال:٤٣٨/١٥.
[7] ) كشف البارى:٣٢٣/٢.
[8] ) كشف البارى:٢٥٩/١.
[9] ) مسندالبزار: ٤٥٤/٢ رقم:٨٦٩٦ وفيض القدير: ٢٣٤/٤ حرف الشين رقم: ٤٩٤٨.

بنيادباندې؟ دې دواړو داسې څه ګناه کړې ده چه دوی ته به دومره خطرناکه سزا ورکولې شي؟ علامه طحاوي رحمه الله ليکي: ((فكان ما كان من الحسن في هذا الحديث إنكارا على أبي سلمة إنما كان — والله أعلم — لما وقع في قلبه أنهما يلقيان في النار ليعذبا بذلك)) خو حضرت ابوسلمه د هغه د اشکال خو څه جواب اونه کړو صرف ئې دا اوفرمائيل چه تاسو ته زه د نبی کريم ﷺ ارشاد نقل کوم په دې باندې حسن بصري خاموش شو.[1]

**دَ حضرت حسن بصري رحمه الله دَ حيرانتيا وجه:** دلته حضرت حسن بصري رحمه الله د حديث په مضمون باندې دحيرانتيا اظهار کړې دې اودعلت تپوس ئې کړې دې چه په جهنم کښې غورزولوسره د کوم جرم سزا ورکولې شي؟ دا څه نوې خبره خو نه وه. دغه شان اشکال خو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته هم شوې ووچنانچه حضرت کعب احبار رحمه الله دا اووئيل چه ((يجاء بهما كأنهما ثوران عقيران، فيقذفان في النار))[2]

علامه طبري رحمه الله سند متصل سره د حضرت عکرمه نه نقل کړی دی چه کله حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا خبره واورېده نوهغه حضرت کعب رضي الله عنه دروغژن اوګنړلو اووئی فرمائيل: ((هذه يهودية يريد إدخالها في الإسلام، الله أكرم وأجل من أن يعذب على طاعته، ألم تر إلى قوله تعالى: ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ﴾؟[3] يعني دوبهما في طاعته، فكيف يعذب عبدين أثنى الله عليهما؟))[4]

يعنی دا يهوديت دې کوم چه کعب په اسلام کښې داخلولوسره ددې حصه جوړول غواړي دالله تعالی شان ددې نه ډير لوئی او اوچت دې. اود هغه د کريمانه خصلت نه دا ډيره لرې خبره ده چه ځاله په خپل طاعت باندې سزا ورکړي. ولې ستاسو مخې ته دالله تعالی داکلام نه دې ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ﴾ دا دواړه الله تعالی دخپل طاعت عادتی جوړ کړی دی. نودا څنګه ممکن ده چه خپل داسې طاعت ګذاروته الله تعالی عذاب ورکړي دکومو چه پخپله هغه تعريف کړې دې؟

د سورت حج آيت نمبر ١٨ نه هم دغه سوال پيداکيږي. په دې آيت کښې الله تعالی رب العزت فرمائی په زمکو او آسمانونوکښې چه کوم څه دی هغه ټول، دارنګه سپوږمئ نمبر ستوری اوغرونه ونې او ټول څناور ټول دالله تعالی په مخکښې سجده کوی مګر څه داسې کم ظرف هم دی په چا باندې چه دالله تعالی عذاب مقررشوی دې. دويم فريق ﴿وَكَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ﴾[5] دې. عقل پخپله تپوس کوی چه کله دا دواړه په اول فريق کښې شامل دی د طاعت ګذارو سره ددوی تعلق دې نود دويم فريق په شاملتاب هغوی ته ولې کيږي؟ دا خو نعوذبالله زياتې دې؟[6]

**دَ مذکوره اشکال مختلف جوابات:** دحضرت حسن بصري رحمه الله او د ابن عباس رضي الله عنهما دواړو خبره په خپل ځائې صحيح ده خود نورو حضراتو خبره هم ټيک ده د دواړو په موقف کښې هيڅ تضاد نشته دې. د دې مختلف وجوهات دی: ① د نورو حضراتو د موقف تائيد ددې آيت نه هم کيږي ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ

---

[1]) شرح مشكل الآثار: ١٧٠/١رقم: ١٨٣وأعلام الحديث للخطابي: ١٤٧٥/٢عمدة القاري:١٢٠/١٥.

[2]) التوضيح١٩/ ٤٠كتاب العظمة لأبي شيخ: ١١٦٣/٤ذكرعظمة الله.... دارالعاصمه، رياض.

[3]) سورت ابراهيم : ٣٣.

[4]) التوضيح:٤١/١٩وتفسير الطبري: ٤٥٨/٧عمدة القاري: ١٢٠/١٥.

[5]) سورت الحج:١٨.

[6]) شرح مشكل الآثار للطحاوي: ١٧٢/١رقم: ١٨٤باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ من قوله:إن الشمس والقمر ثوران.

دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ۗ اَنْتُمْ لَهَا وٰرِدُوْنَ۝﴾ (۱) په کوم کښې چه کافرانو ته خطاب دې چه تاسو او ستاسو ټول معبودان باطله به د جهنم خشاك جوړيږي.

تاسو پوهيږئي چه په دنيا کښې د مظاهر قدرت عبادت پوجا کونکو هيڅ کمې نشته د سپوږمنى او نمر په هره زمانه کښې عبادت شوې دې. نن هم د دنيا په ډيرو خطو کښې ددې عبادت کولې شى. لهذا د آيت مبارك په رڼا کښې دا دواړه هم د جهنم حصه کيدل پکاردى چه خلق ددوى عبادت کوى. ددې تائيد ددې روايت ددې تکړې نه هم کيږى کوم چه ابويعلى موصلى رحمه الله د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل کړې ده. په دې کښې دى: «ليراهما من عبدهما»(۲) دې د پاره چه کوم خلقو ددې دواړو اجرام سماوى عبادت کولو هغوى چه دا په دوزخ کښې سوزيدونکى اووينى نو عبرت به اخلى مګر هلته به دا څه فائده نه ورکوى.

③ علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه دواړه سپوږمنى او نمر راغونډولو سره په جهنم کښې د غورزولو مقصد هغوى ته عذاب ورکول نه دى بلکه د دغه مظاهر پرستو تنبيه او توبيخ به کيږى چه په دنيا کښې به ئى ددې عبادت کولو. دې د پاره چه دوى ته معلومه شى چه دهغوى د سپوږمنى او نمر عبادت باطل اولغو وو او په دنيا کښې دا عبث کار کولو سره خپل خانونه تباه او برباد کولو سره راغلى دى. ددې بعينه مثال هغه روايت دې په کوم کښې چه راغلى دى چه مچان به ټول په دوزخ ته ځى.(۳) حالانکه ددوى هم څه ګناه نشته دې. چنانچه دا مچان په دوزخ کښې د اچولو مقصد به صرف دا وى چه ددغه دوزخيانو په تکليف کښې زياتوالى اوکړې شى. علامه خطابى رحمه الله فرمائي «والمعنى في ذلك: لتكون عقوبة لأهل النار، يتأذون بها، كما يتأذون بالحيات وشبهها»(۴)

③ تقريباً هم دغه دويم سره يوشان جواب امام طحاوى رحمه الله هم ورکړې دې هغوى فرمائى چه موږ د حضرت ابوسلمه رحمه الله د طرف نه به حضرت حسن بصرى رحمه الله ته په جواب کښې دا وايو چه سپوږمنى او نمر به په دې وجه راغونډولې شى چه دوزخيانو ته به ددې په ذريعه عذاب ورکولې شى نه دا چه دا دواړه به د دوزخ د عذاب سره مخ کولې شى.

ګورئى که نه چه په دوزخ کښې به فرښتې هم وى چه دوزخيانو ته به عذاب ورکوى نو ددې دواړو حيثيت به هم په دوزخ کښې د دغه ټولو فرښتو په شان وى. د الله تعالى دا ارشاد مبارك مخې ته کيږدئى. ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْۤا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَاۤ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ۝﴾ (۵)

په دې کښې ﴿لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَاۤ اَمَرَهُمْ﴾ معنى ده «من تعذيب أهل النار» دوزخيانو ته چه د عذاب ورکولو کوم حکم هغوى ته الله تعالى ورکوى په هغې کښې به دوى حکم عدولى نه کوى. ښکاره خبره ده چه ددې فرښتو په جهنم کښې د موجودګئى مطلب هيڅ کله دا نه دې چه دوى څه ګناه کړې ده د کومې

---

(۱) سورت الأنبياء: ۹۸.

(۲) مسند أبي يعلى الموصلي: إنما عزاها إليه الحافظ، ولم أجدها في مسنده. والله اعلم.

(۳) الحديث رواه البزار في مسنده رقم: ۳۴۹۸ والطبراني في المعجم الكبير ۱۲/۳۸۹ رقم: ۱۳۴۳۶ عن ابن عمر رضي الله عنهما، ۱۲/۳۹۸ رقم: ۱۳۴۶۸ وفي الأوسط: ۲/۱۶۰ رقم: ۱۵۷۵ ومعجم الزوائد: ۴/۴۱.

(۴) أعلام الحديث خطابي: ۲/۱۴۷۶.

(۵) سورت التحريم: ۶

په وجه چه هغوی په دوزخ کښې غورزولې شوی دی. هم دغه شان د سپوږمئی او نمر معامله ده هغې هم څه ګناه نه ده کړې بلکه دا به هم د فرښتو په شان دوزخیانو ته د عذاب مزه ورځکی.

طحاوی رحمه الله فرمائی: «وكذلك الشمس والقمر، هما فيها بهذه المنزلة، معذّبان لأهل النار بذنوبهم، لا معذّبان فيها، إذ لا ذنوب لهما»[1] هم دغه خبره علامه اسماعیلی رحمه الله هم ارشاد فرمائیلې ده.[2]

**د بحث خلاصه:** اوس ددې پوره بحث خلاصه داشوه چه دا دواړه به په دوزخ کښې د څه ګناه د وجې نه نه شی اچولې بلکه په دې وجه به اچولې شی چه د شمس اوقمر د عبادت کونکو په حسرت کښې اضافه اوشی. یوه فائده به دا هم کیږی چه ددوی په ورتلو سره به د جهنم په ګرمئی کښې اضافه کیږی اود هغې اشتعال به زیاتیږی نولکه چا چه ددې عبادت کولو هم هغه به په عذاب ورکولو کښې د تشدید سبب جوړیږی. والله اعلم بالصواب.

**د ثوران عقيران معنى:** دې نه پس داخبره یاده ساتئی چه هم دغه روایت د نورو صحابه کرامو نه هم نقل دې مثلاً ابوداؤد طیالسی رحمه الله وغیره د حضرت انس رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل کړی دی. «إن الشمس والقمر ثوران عقيران في النار»[3]

خود حضرت کعب احبار رحمه الله روایت وړاندې تیرشوې دې نو په حدیث باب اوهغه احادیثو کښې فرق دادې چه په دې کښې د مکوران په ځائې عقیران دې. عقیران هغه ځناور د کوم پتونونه چه پرې کړې شوی وی. مطلب دا چه سپوږمئی او نمر به لکه چه دوه ذبح کړې شوی غوایان وی. اوس دا دوه تشبیهونه شو یو مکوران بل عقیران. د مکوران وضاحت اول کړې شوې دې چه ددې دواړو رڼا به ختمه کړې شی نودا به د پنیر د دوو ټکړو په شان شی چه ښکاری خو به سپین مګر په دې کښې به رڼا نه وی نودا تشبیه سلب نور سره متعلق ده.

خود دویمې تشبیه تعلق د سیر سره دې چه په آخرت کښې به ددې دواړو سیر اوحرکت منقطع شی لکه مضبوط غوایان کله چه دهغوی خپې پرې کړې شی نو هغه دحرکت کولو قابل نه پاتې کیږی خوزیدې راخوزیدې نه شی. ددې حدیث دا مطلب هیڅ کله نه دې چه په حقیقت کښې به د دغه دواړو غوایانو چه په اصل کښې به سپوږمئی اونمر وی خپې پرې کولې شی. امام طحاوی رحمه الله فرمائی. «فعادا بإقطاعهما عن ذلك كالزمنين بالعقر، فقيل لهما: عقيران، على استعارة هذا الاسم لهما، لا على حقيقة حلول عقر بهما.......»[4]

---

[1]) شرح مشكل الآثار للطحاوي: ١٧١/١باب رقم: ٣٠بيان مشكل ماروى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم من قوله: إن الشمس والقمر ثوران......

[2]) قال الإسماعيلي: وقد جعل الله في النار ملائكة، وليست تتأذى بها، ولا تعذب بها، وحجارة يعذب بها أهل النار. فيجوز أن يجعل الشمس والقمر عذابا في النار لأهل النار، أو بآلة من آلات العذاب، نعوذ بالله من النار. التوضيح: ١٩/٤٤عمدة القارى: ١٢٠/١٥فتح البارى: ٣٠٠/٦.

[3]) مسند الطيالسى: ٥٧٤/٢رقم:٢٢١٧مسند أنس بن مالك رضی الله عنه ومسند أبى يعلى الموصلى: ٤٠١/٣رقم: ٤١٠٢ والكامل لابن عدى: ٩٦٩/٣والحديث حسن.

[4]) شرح مشكل الآثار للطحاوى: ١٧٢/١فتح البارى: ٣٠٠/٦فيض القدير للمناوى: ٢٣٤/٣رقم: ٤٩٤٩.

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې خكه چه د سپوږمئى اونمر راغونډول يووصف دې. [١]

د باب دريم حديث د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې.

## الحديث الثالث

[٣٠٢٩] - حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْقَاسِمِ، حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ كَانَ يُخْبِرُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، وَلَكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمَا فَصَلُّوا» - [ر ٩٩٥] [٢]

**ترجمه:** حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه حضورپاك اوفرمائيل چه دې نمر او سپوږمئى دواړو ته د چاد مرګ د وجې نه تندر لګى نه د چا په ژوندى كيدو سره، بلكه دا دواړه خودالله تعالى نښانې دى. چنانچه كله چه تاسو دا دواړه په تندر كښې اووينئى نود (كسوف يا خسوف) مونځ كوئى.

## تراجم رجال

**يحيى بن سليمان:** دايحيى بن سليمان بن يحيى جعفى كوفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب كتابة العلم كښې تيرشوى دى. [٣]

**ابن وهب:** دا عبدالله بن وهب مسلم مصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه..... لاندې تيره شوې ده. [٤]

**عمرو:** دا ابواميه عمرو بن الحارث مصرى انصارى رحمه الله دې. [٥]

**عبدالرحمن بن القاسم:** داعبدالرحمن بن قاسم بن محمد بن ابى بكر صديق رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذكره كتاب الغسل باب هل يدخل الجنب يده.....؟ په ضمن كښې تيرشوى دى. [٦]

**ابيه:** دا مشهور تابعى بزرګ حضرت قاسم بن محمدبن ابى بكر صديق رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذكره كتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب والطيب عند الغسل په ضمن كښې تيره شوې ده. [٧]

**عبدالله بن عمر رضی الله عنه:** دا مشهور صحابى رسول حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. ددوى حالات

---

[١] عمدة القارى: ١٥/١٢٠.

[٢] قوله: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما: الحديث: مر تخريجه فى كتاب صلوة الكسوف.

[٣] كشف البارى: ٤/٣٢٧.

[٤] كشف البارى: ٣/٢٧٧.

[٥] ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب المسح على الخفين.

[٦] كشف البارى: كتاب الغسل: ٥٥٧.

[٧] كشف البارى: كتاب الغسل: ٤٣٩.

كتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام..... ، لاندې ذكر كړې شوى دى.[1]
د باب څلورم حديث د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دى.

## الحديث الرابع

[۳۰۳۰]-حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ لاَ يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلاَ لِحَيَاتِهِ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذَلِكَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ» [ر ۲۹] ([2])

## تراجم رجال

**اسماعيل**: دا اسماعيل بن ابى اويس مدنى اصبحى رحمه الله دى. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من كره أن يعود فى الكفر.... ، كښې تير شوى دى.[3]

**مالك**: دا امام دار الهجرة امام مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دى. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان كړې شوى دى.[4]

**زيد بن اسلم**: دا زيد بن اسلم عدوى مولى عمر رحمه الله دى.

**عطاء بن يسار**: دا ابومحمد عطاء بن يسار هلالى مدنى رحمه الله دى.

**عبدالله بن عباس**: دا مشهور صحابى حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما دى. ددې دريوارو محدثين حضراتو تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب كفران العشير، وكفر.... ، كښې بيان كړې شوى دى.[5]
د باب پنځم حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها دى.

## الحديث الخامس

[۳۰۳۱]-حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَخْبَرَتْهُ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ، قَامَ فَكَبَّرَ وَقَرَأَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَالَ: «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ»، وَقَامَ كَمَا هُوَ، فَقَرَأَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً، وَهِيَ أَدْنَى مِنَ القِرَاءَةِ الأُولَى، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا، وَهِيَ أَدْنَى مِنَ الرَّكْعَةِ الأُولَى، ثُمَّ سَجَدَ سُجُودًا طَوِيلًا، ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ

---

[1] كشف البارى: ۶۳۷/۱

[2] قوله: عن عبدالله بن عباس رضي الله عنهما الحديث، مر تخريجه فى كتاب الكسوف.

[3] كشف البارى: ۱۱۳/۲.

[4] كشف البارى: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

[5] كشف البارى: ۲۰۵/۲-۲۰۳ د ابن عباس رضي الله عنهما دپاره نور اوګورئى كشف البارى: ۳۳۵/۱.

الآخِرَةِ مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ سَلَّمَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ، فَخَطَبَ النَّاسَ، فَقَالَ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ وَالقَمَرِ: «إِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ لاَ يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلاَ لِحَيَاتِهِ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمَا فَافْزَعُوا إِلَى الصَّلاَةِ».-[ر ٩٩٧] (١)

## تراجم رجال

**يحيى بن بكير**: دا يحيى بن عبدالله بن بكير مخزومى رحمه الله دي.

**الليث**: دا مشهور امام ليث بن سعد فهمى رحمه الله دي.

**عقيل**: دامشهور امام حديث عقيل بن خالد رحمه الله دي.(٢)

**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددي څلورو وارو حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.(٣)

**عروة بن الزبير**: داحضرت عروه بن زبير بن عوام مدنى رحمه الله دي. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى اوتفصيلى حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې بيان كړې شوى دى.(٤)

**عائشه** رضي الله عنها: دحضرت عائشه رضي الله عنها حالات بدء الوحى ددريم حديث لاندې راغلى دى.(٥)

د باب آخرى او شپږم حديث دحضرت ابومسعود عقبه بن عمرو رضي الله عنه دي.

## الحديث السادس

[٣٠٣٢]- حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي قَيْسٌ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الشَّمْسُ وَالقَمَرُ لاَ يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلاَ لِحَيَاتِهِ [ص:١٠٩]، وَلَكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمَا فَصَلُّوا».-[ر ٩٩٣] (٦)

## تراجم رجال

**محمدبن المثنى**: دا محمد بن المثنى عنزى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب حلاوة الإيمان كښې راغلې.(٧)

---

(١) قوله: أن عائشة رضى الله عنها.....و الحديث: مرتخريجه فى الكسوف باب الصدقة فى الكسوف.

(٢) ددوى تفصيلى تذكره كتاب العلم باب فضل العلم كښې راغلى ده. كشف البارى ٤٥٥/٣.

(٣) كشف البارى: ٣٢٦/١-٣٢٣.

(٤) كشف البارى: ٢٩١/١، ٤٣٦/٢.

(٥) كشف البارى: ٢٩١/١.

(٦) قوله عن أبى مسعود رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب الكسوف باب لا تنكسف الشمس لموت أحد ولا لحياته.

(٧) كشف البارى: ٢٥/٢.

**یحیی:** دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان رحمه الله دی. د دوی تذکره **کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه.....**، لاندې ذکر کړې شوې ده. (۱)

**اسماعیل:** دا اسماعیل بن ابی خالد احمسی بجلی رحمه الله دی. د دوی حالات **کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده**، لاندې راغلی دی. (۲)

**قیس:** دا قیس بن ابی حازم احمسی بجلی رحمه الله دی. د دوی تذکره **کتاب الإیمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم الدین النصیحة.....**، کښې راغلې ده. (۳)

**ابی مسعود:** دا مشهور بدری صحابی حضرت ابن مسعود عقبه بن عمرو انصاری رضی الله عنه دی. د دوی تفصیلی حالات **کتاب الإیمان باب ما جاء أن الأعمال بالنیة.....**، په ذیل کښې بیان کړې شوې دی. (۴)
د دې آخرې څلور احادیثو شرح به ان شاء الله تعالی کتاب الکسوف کښې راځی.

**داحدیث د مسند عقبه نه دې:** دا حدیث د حضرت ابو مسعود عقبه بن عمرو البدری رضی الله عنه د مسانید نه دې خو په بعض نسخو کښې ابن مسعود دې یعنی حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دې. علامه کرمانی رحمه الله فرمانی چه دا دویم احتمال سره د دې چه په دې اعتبار سره صحیح دې چه حضرت قیس بن ابی حازم رحمه الله د حضرت ابن مسعود نه هم روایت کوی. مګر ټول روات په دې باندې متفق دی چه داحدیث د مسند عقبه رضی الله عنه نه دې د مسند عبد الله رضی الله عنه نه نه دې. (۵)

اوحافظ ابن حجر رحمه الله دا دویم احتمال تصحیف ګرځولې دې او فرمانی: ((**وقوله فی الحدیث الأخیر: عن أبی مسعود، کذا فی الأصول بأداة الکنیة، وهو أبو مسعود البدری، ووقع فی بعض النسخ: عن ابن مسعود، بالموحدة والنون وهو تصحیف**)) (۶)

**ترجمة الباب سره د احادیثو مطابقت:** د باب دا آخری څلورو احادیثو مطابقت بالترجمه په دې معنی دې چه کسوف کوم ته چه د نمر تندر نیول وائی یا کوم ته چه د سپوږمۍ تندر نیول وائی د دواړو د صفاتونه دی. (۷)

## ۵- باب: ما جاء فی قوله: ((وَهُوَ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ نُشُرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ))

**ماقبل سره مناسبت:** کتاب د بدء الخلق روان دې. امام بخاری رحمه الله لکه څنګه چه د نجوم، شمس او قمر ذکر اوکړو هم دغه شان د هواګانو هم ذکر فرمانی.

---

(۱) کشف الباری: ۲/۲.
(۲) کشف الباری: ۲۷۹/۱.
(۳) کشف الباری: ۷۶۱/۲.
(۴) کشف الباری: ۷٤۸/۲.
(۵) شرح الکرمانی: ۱۶۱/۱۳ عمدة القاری: ۱۲۲/۱۵-۱۲۱.
(۶) فتح الباری: ۳۰۰/۶.
(۷) عمدة القاری: ۱۲۱/۱۵.

**د ترجمة الباب مقصد:** ددې خائى نه امام بخارى رحمه الله دهواګانوذکرفرمانى چه الله تعالى يوطرف ته ډير شيان پيداکړى دى نوبل طرف ته هواګانې هم دهغه مخلوق دې هم دهغه په حکم سره روانې دى چه اوريځې راجمع کوى. بيا هم دغه اوريځې د الله تعالى په حکم باندې بارانونه ورو ى. دا د رحمت هواګانې وى خو کله هواګانې د عذاب په توګه هم چليږى. تفصيل ان شاء الله وړاندې راځى

(قَاصِفًا) /الإسراء: ۶۹/: تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ. (لَوَاقِحَ) /الحجر: ۲۲/: مَلَاقِحَ مُلْقِحَةً. (إِعْصَارٌ) /البقرة: ۲۶۶/: رِيحٌ عَاصِفٌ تَهُبُّ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى السَّمَاءِ كَعَمُودٍ فِيهِ نَارٌ. (صِرٌّ) /آل عمران: ۱۱۷/: بَرْدٌ. (نُشُرًا): مُتَفَرِّقَةً.

**قوله: (قَاصِفًا) تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ:** ددې عبارت په ذريعه امام بخارى رحمه الله د آيت مبارك ﴿فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ﴾ [1] (قَاصِفًا) تفسير اوتوضيح کوى چه قاصفا معنى ده هغه هوا کوم چه هر څه مات رامات کړى

**قوله: الريح القاصف:** تيزه راتنبيدونکى هوا ددې جمع القواصف ده [2]
دغه پورته ذکرکړې شوې تفسيرى قول د امام ابوعبيده رحمه الله دې کوم چه هغوى په المجاز کښې ذکرکړې دې. [3] هم ددې په شان قول دحضرت قتاده رحمه الله نه هم نقل دې [4]

**اته قسمه هواګانې:** حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما فرمائى چه د هواګانو اته قسمونه دى. څلور عذابونه دى نو باقى څلور رحمت. د رحمت والا هواګانې دادى: ① ناشرات ② ذاريات ③ مرسلات ④ مبشرات. اود عذاب والاد هواګانو نومونه دادى: عاصف اوقاصف، ددې دواړو تعلق سمندر سره دې. صرصر او عقيم ددې دواړو تعلق د اوچې سره دې [5]

**قوله: (لَوَاقِحَ) مَلَاقِحَ مُلْقِحَةً:** په دې عبارت کښې آيت مبارك ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ [6]. مونږ هواګانې باران ورونکې جوړولوسره اوليګلې، سره د لفظ لواقح تفسير کړې شوې دې چه لواقح ملاقح په معنى کښې دې کوم چه د ملقحة جمع ده. دا داسې اوګڼړئ چه لقحت الناقة (باب سمع) اونحوها معنى ده د اوښې حامله کيدل. دا فعل لازم دې هم ددې اسم فاعل لاقح دې. د کوم جمع چه لواقح ده. اوس به ددې معنى شى حاملې اوښې.

الله تعالى په مذکوره آيت مبارك کښې دا لفظ هواګانوسره ذکرکړو دکوم مطلب چه به وى حامله هوا ګانې. يعنى د اوبونه ډکې هواګانې. حالانکه په هواکښې اوبه نه وى بلکه په اوريځوکښې وى کوم چه هوا ګانې چلوى. دې نه علاوه القحت الريح السحاب (افعال) په معنى کښې دى د هوا اوريځ سره جنګيدل

---

[1] سورة الاسراء : ۶۹
[2] عمدة القارى:۱۲۲/۱۵التوضيح: ۴۶/۱۹والقاموس الوحيد. مادة: قصف.
[3] مجاز القرآن: ۳۸۵/۱ سورة الإسراء: ۶۹
[4] تعليقات التوضح: ۴۶/۱۹وتفسير الطبرى: ۱۱۴/۸.
[5] عمدة القارى: ۱۲۲/۱۵والتوضيح: ۴۶/۱۹.
[6] سورة الحجرات :۲۲

او باران ورول. دا متعدى دې اسم فاعل دى ملقحة دې دكوم جمع چه ملاقح ده.[۱]

**دامام بخارى رحمه الله مقصد:** اوس امام بخارى رحمه الله دا فرمائيل غواړى چه په آيت مبارك كښې راغلې لفظ لواقح لازم دې خو متعدى په معنى كښې دې. ګنى د آيت مفهوم واضح كيږى نه. حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى «يعني أن الرياح ليست لاقحة، بل هي ملقحة، فكأن اللازم بمعنى المتعدي»[۲] هم دغه خبره په لږ زيات وضاحت سره حضرت مولانا محمد حسن مكى رحمه الله په تقرير كښې هم ده هغوى فرمائى: «يريد أن المراد باللواقح: الملاقح، دون معناه الحقيقي، لأن اللاقحة لازم، يقال: لقحت الناقة أي حملت، والملقحة متعدية، يقال: ألقح الفحل الناقة»[۳] حضرت مولانامكى رحمه الله نور فرمائى چه بعض حضراتو لواقح د ملقحة خلاف قياس جمع ګرځولې ده خودا غلطه ده ځكه چه دا د لاقحة جمع ده. استاذ محترم (حضرت ګنګوهى رحمه الله) هم دغه فرمائيلى دى.[۴]

**دَ ابوعبيده رحمه الله اوابن اسحاق رحمه الله رائې:** اوهغه حضرات كوم چه لواقح ته د ملقحة جمع وائى. امام ابوعبيده رحمه الله او ابن اسحاق رحمه الله دى.[۵] هم د دغه روستو ذكرشوى اتباع كولوسره ابوعبيده رحمه الله هم دغه قول اختيار كړې دې خو بعض حضراتو په ده باندې نكير كړې دې. علامه ابن ملقن رحمه الله فرمائى: «هذا قول أبي عبيدة وغيره، وأنكره بعضهم، وقال: هو بعيد جدا، لأن حذف الزوائد إنما يجوز من مثل هذا في الشعر، ولكنه جمع لاقحة ولاقح بلا خلاف»[۶]

دې لفظ لاندې شراح ډير څه ليكلى دى خو زړه ته لګيدونكې خبره د ابن جرير طبرى رحمه الله ده هغه فرمائې چه صواب دادې چه رياح لاقحه هم دى اوملقحه هم دى. لاقحه خو په دې لحاظ سره چه هغه اوبه اوچتوى اوملقحه په دې اعتبارسره چه هغه اوبه د اوريځو دننه رسوى.[۷] بيا ابن جرير رحمه الله د خپل قول د تائيد اوتقويت دپاره دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه ارشاد نقل كړې دې دكوم سند چه قوى دې. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائې «يرسل الله الرياح، فتحمل الماء، فتلقح السحاب، وتمر به، فتدر كما تدر اللقحة ثم تمطر»[۸] يعنى الله تعالى اوريځې راليږى چه اوبه اوچتوى، اوريځې باردار كوى بيا چه كله په دې باندې چليږى نودا اوريځې بښه باران ورولى. لكه څنګه چه د پيئو وركونكى اوښه ډير زيات پيئى وركوى. د امام لغت علامه زهرى رحمه الله نه هم دغه شان قول نقل دې.[۹] او هم دغه معنى اومفهوم زيات واضح دې. والله اعلم بالصواب.

---

[۱] لسان العرب مادة: لقح والقاموس الوحيد مادة: لقح.

[۲] الكنز المتوارى: ۱۳۳/۱۳ولامع الدرارى: ۳٤۰/۷.

[۳] حواله جات بالا.

[۴] حواله جات بالا.

[۵] مجاز القرآن: ۳٤۸/۱عمدة القارى: ۱۲۲/۱۵والتوضيح: ٤۷/۱۹.

[۶] عمدة القارى: ۱۲۲/۱۵والتوضيح: ٤۷/۱۹وفتح البارى: ۳۰۱/۶وإرشاد السارى: ۲۶۱/۵.

[۷] جامع البيان: ۱٤/۱٤سورة الحجر.

[۸] حواله بالا: ۱۵/۱٤-۱٤سورة الحجر ولباب التأويل فى معانى التنزيل للخازن: ۱۱۱/۳.

[۹] الكنز المتوارى: ۱۳۵/۱۳-۱۳٤عمدة القارى: ۱۲۲/۱۵فتح البارى: ۳۰۱/۶والتوضيح: ٤۷/۱۹وتهذيب اللغة: ۳۲۸۵/٤مادة: لقح.

**قوله:: ﴿إِعْصَارٌ﴾: رِيحٌ عَاصِفٌ تَهُبُّ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى السَّمَاءِ كَعَمُودٍ فِيهِ نَارٌ**: په دې عبارت سره آیت مبارك ﴿فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ﴾ [1] كښې د لفظ اعصار تفسير كړې شوې دې. چه په اصل كښې د امام ابوعبيده رحمه الله تفسيرى كلام دې. اعصار غولئى ته وائى يعنى ډيره تيزه هوا چه دوړې الوزوى دعمود په شكل كښې د آسمان طرف ته اوچتيږى. په دې كښې اور هم (بعض وخت) وى. د امام ضحاك رحمه الله نه ددې معنى دا نقل ده: «ريح فيها برد شديد» مگر د امام بخارى رحمه الله په اختيار كړې شوې معنى زياته واضحه او ښكاره ده چه پخپله رب كريم د اور تصريح فرمائيلې ده. ﴿فِيهِ نَارٌ﴾ اود نار نه مراد سموم يعنى گرمه هوا ده. قاله السدي. [2]

**قوله:: ﴿صِرٌّ﴾: بَرْدٌ**: په دې كښې د آيت مبارك ﴿رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ﴾ [3] لفظ صر توضيح كولې شي چه ددې معنى برد ده يعنى يخوالې. د ابوعبيده رحمه الله نه روايت دې صر سخت يخ ته وائى. اوس به د آيت معنى شى داسې هوا په كومه كښې چه ډيرزيات يخوالې وى. [4]

**قوله:: ﴿نُشُرًا﴾: مُتَفَرِّقَةً**: دلته چه په ترجمة الباب كښې كوم آيت جز جوړ كړې وو هم دهغې طرف ته اشاره ده. ﴿وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ نُشُرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ﴾ [5] چه په دې كښې د نشر معنى دمتفرق ده. نشر دنشور جمع ده يعنى اوريحې اوچتونكې اوالوزونكې هواگانې. دا تفسير هم دامام ابوعبيده رحمه الله د كلام مقتضى مطابق دې. هغوى د نشرا تفسير فرمائيلې دې: «أي: من كل مهب وجانب وناحية» [6].
البته دا دې واضحه وى چه دا تفسير د آيت د هغه قراءت مطابق دې په كوم كښې چه نشرا راغلې دې. زمونږ په قراءت كښې بشرا دې. د كوم معنى چه مبشرات ده يعنى بشارت او خوشخبرى وركونكې هواگانې. د كوم چه يو تفسير باران هم كړې شوې دې. [7]

**دَ ايت ترجمة الباب سره مناسبت**: امام بخارى رحمه الله آيت د رحمت د ترجمې جز جوړ كړې وو خو ددې لاندې مونږ خودلې وو چه مؤلف رحمه الله به د نور قسم هواگانو ذكرهم كوى. چنانچه هغه چه يو طرف ته د رحمت نه ډكو هواگانو ذكر اوكړو نو بل طرف ته نى د عذاب والا هواگانو ذكر هم اوكړو. خكه چه «وبضدها تتبين الأشياء» والله اعلم.
دې نه پس داسې اوگنړئى چه امام بخارى رحمه الله د باب لاندې دوه احاديث ذكر كړى دى په كوم كښې چه رومبې حديث دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې.

---

[1] سورت البقرة: ۲۶۶.

[2] عمدة القاري: ۱۲۲/۱۵ فتح الباري: ۳۰۱/۶ والتوضيح: ۴۷/۱۹.

[3] سورت آل عمران: ۱۱۷.

[4] عمدة القاري: ۱۲۲/۱۵ وفتح الباري: ۳۰۱/۶.

[5] سورت الفرقان: ۴۸.

[6] حواله جات بالا

[7] عمدة القاري: ۱۲۲/۱۵ والتوضيح: ۴۸/۱۹.

## الحديث الاول

[۳۰۳۳]- حَدَّثَنَا آدَمُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الحَكَمِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «نُصِرْتُ بِالصَّبَا، وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ» [ر ۹۸۸] [1]

**ترجمه:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دنبى كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه حضورپاك فرمائيلى دى زما امداد په بادصبا سره كړې شوې دې اوقوم عاد د دبور په ذريعه هلاك كړې شو.

### تراجم رجال

**ادم:** دا ابوالحسن آدم بن ابى اياس عسقلانى رحمه الله دې.

**شعبه:** دا امير المؤمنين فى الحديث شعبه بن حجاج عتكى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو حالات **كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده** لاندې ذكر كړې شوې دى [2]

**الحكم:** دا الحكم بن عتيبه كندى كوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره **كتاب العلم باب السمر فى العلم** كښې راغلې ده. [3]

**مجاهد:** دا مشهور تابعى حضرت مجاهد بن حبر مخزومى رحمه الله دې. ددوى تذكره **كتاب العلم باب الفهم فى العلم** په ذيل كښې تيره شوې ده. [4]

**ابن عباس:** دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. د دوى اجمالى تذكره بدء الوحى اوتفصيلى **كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر...** كښې شوې ده. [5]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** داحديث كتاب الاستسقاء كښې راغلې دې دلته د ذكر كولو مقصد صرف دادې چه په دې كښې د رحمت هوا يعنى بادصبا ذكر دې. [6]

د باب دويم حديث د ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها دې. كوم چه ثلاثى روايت دې.

## الحديث الثانى

[۳۰۳۴]- حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا رَأَى مَخِيلَةً فِي السَّمَاءِ، أَقْبَلَ وَأَدْبَرَ، وَدَخَلَ وَخَرَجَ، وَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ، فَإِذَا أَمْطَرَتِ السَّمَاءُ سُرِّيَ عَنْهُ، فَعَرَّفَتْهُ عَائِشَةُ ذَلِكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

---

[1]) قوله: عن ابن عباس رضى الله عنهما: الحديث مر تخريجه فى الاستسقاء رقم: ۱۰۳۵.

[2]) كشف البارى: ۶۷۸/۱

[3]) كشف البارى: ۴۱۴/۴.

[4]) كشف البارى: ۳۰۷/۳.

[5]) كشف البارى: ۴۳۵/۱و۲۰۵/۲.

[6]) صحيح البخارى كتاب الاستسقاء باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: نصرت بالصبا رقم: ۱۰۳۵وعمدة القارى: ۱۲۲/۱۵.

اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ: «مَا أَدرِي لَعَلَّهُ كَمَا قَالَ قَومٌ»: {فَلَمَّا رَأَوهُ عَارِضًا مُستَقبِلَ أَودِيَتِهِم} [الأحقاف: ۲۴] الآيَةَ[۴۵۵۱] ([1])

## تراجم رجال

**مكى بن ابراهيم**: دا مشهور محدث مكى بن ابراهيم بن بشيربن فرقد حنظلى رحمه الله دي. د دوى تفصيلى تذكره كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس لاندې تيره شوې ده.([2])

**ابن جريج**: دا ابوالوليد عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج اموى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها... كښې راغلې.([3])

**عطاء**: دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب عظة النساء... كښې تيرشوى دى.([4])

**عائشه** رضي الله عنها: دحضرت عائشه رضي الله عنها حالات بدء الوحى حديث دريم نمبر حديث كښې تيرشوى دى. ([5])

**قوله: قالت: كان النبى صلى الله عليه وسلم إذا رأى مخيلة فى السماء** حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى چه كله به نبى كريم صلى الله عليه وسلم په فضا كښې داسې اوريځې ليدلې د كومې د وريدو چه گمان وى.......

**قوله: مخيلة**: د ميم زبر اوخاء زير اوياء سكون سره دې پرق پروق والاهغه اوريځې د كومې د وريدو چه گمان وى. «السحابة التى يخال فيها المطر»([6])

د نسائى په روايت كښې ددې وضاحت هم شته «إذا رأى مخيلة، يعنى: الغيم»([7])

**قوله: أقبل وأدبر، ودخل وخرج، وتغير وجهه**: رسول الله صلى الله عليه وسلم وړاندې كيدو روستو كيدو، دننه به تلو بيا به هر راوتو او مخ مبارك به ئې متغير كيدلو.

**دَ اضطراب اوپريشانئ وجه**: داد اضطرابى كيفيت نه كنايه دې چه اوريځو ليدلو سره به حضورپاك پريشان كيدلو چه چرته دا د عذاب والا اوريځې نه وى اود حضورپاك امت هم د عامة الناس د

---

[1]) قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث أخرجه البخارى فى تفسير سورة الأحقاف باب قوله تعالى: ﴿فَلَمَّا رَأَوهُ عَارِضًا مُستَقبِلَ أَودِيَتِهِم قَالُوا هَذَا عَارِضٌ مُمطِرُنَا بَل هُوَ مَا استَعجَلتُم بِهِ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ رقم: ۴۸۲۰، ۴۸۲۸ وفى الأدب باب التبسم والضحك رقم: ۶۰۹۲ ومسلم رق: ۲۰۸۶-۲۰۸۴ فى الاستسقاء باب التعوذ عند رؤية الريح، وأبوداؤد رقم: ۵۰۹۹-۵۰۹۸ فى الأدب باب مايقول إذا هاجت الريح، والترمذى رقم: ۳۲۵۷ فى التفسير باب من سورة الإحقاف وفى كتاب الدعوات باب مايقول إذا هاجت الريح رقم: ۳۴۴۹ وابن ماجه فى سننه كتاب الدعاء باب مايدعو به الرجل إذا رأى السحاب والمطر رقم: ۴۸۸۹، ۳۸۹۱.

[2]) كشف البارى: ۴۸۱/۳.

[3]) كشف البارى كتاب الحيض: ۲۰۴.

[4]) كشف البارى: ۳۷/۴.

[5]) كشف البارى: ۲۹۱/۱.

[6]) عمدة القارى: ۱۲۲/۱۵ والتوضيح: ۴۹/۱۹ وفتح البارى: ۳۰۱/۱.

[7]) التوضيح: ۴۹/۱۹ والسنن الكبرى للنسائى: ۵۶۲/۱ كتاب الاستسقاء القول عندالمطر رقم: ۱۸۳۱.

گناهونو د وجې نه د عذاب ښكارنه شي. لكه څنګه چه هغه قوم (د هود عليه السلام قوم) چه دعذاب ښكار شوې چه د اوريځو په كتلو به خوشحاله كيدل اودهغې په كتلوسره به ئې داسې ويناكوله ګرځيدل به ﴿هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا﴾ [1] چه دا اوريځې په مونږ باندې باران راوورونكې دى. حالانكه هغه د عذاب اوريځې وې نو حضورپاك ته هم خطره محسوس شوه چه دا چرته هغه د عذاب والا اوريځې خونه دى؟ ددې نه دحضورپاك په خپل امت باندې د زحمت او شفقت په ښه شان سره اندازه كيږى. په حقيقت كښې ټول انبياء كرام عليهم السلام په دغه صفت باندې متصف پاتې دى چه هر يو نبى په خپل قوم باندې ډير زيات شفيق او مهربان وو او دا صفت په حضورپاك عليه السلام كښې هم تر آخرى درجې پورې موجود وو. [2]

**قوله: فإذا أمطرت السماء سري عنه**: بيا كله چه به آسمان باران راوورولو دحضورپاك ويره به لرې كيدله. مطلب دا چه حضورپاك ته به تسلى كيدله هغوى ﷺ به مطمئن كيدلو چه دا اوريځې دعذاب والا نه وې. ددې وضاحت د كتاب التفسير د روايت نه هم كيږى په هغې كښې دى: «**ما يؤمنني أن يكون فيه عذاب**» [3]

**قوله: فعرفته عائشة ذلك، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: ما أدري لعله كما قال قوم: ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ﴾**: حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په دې باره كښې د حضورپاك نه تپوس اوكړو نو حضورپاك اوفرمائيل ماته څه پته ده كيدې شي چه دلته هم هغه معامله وى كومه چه هغه قوم سره وه چه كله هغوى اوريځې دخپلو واديانو طرف ته راتلونكې اوليدلې نود (خوشحالئى نه ئې دا) اووئيل ﴿هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا﴾. په دې عبارت سره د رسول الله ﷺ د اضطرابى كيفيت نور وضاحت اوشو.

**قوله: عرفته**: دتعريف نه دې، مطلب دا چه دحضورپاك نه حضرت عائشه رضي الله عنها د مخ مبارك د بدليدو د وجې نه تپوس اوكړو. [4] عارض هغه اوريځو ته وائى چه د آسمان په افق باندې عرضاً ښكاره شوې وى. [5]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت**: ترجمة الباب سره دحديث مناسبت په دې وجه دې چه په دې كښې د باران ذكر دې د كوم سبب چه هواګانې جوړيږى. والله اعلم. [6]

---

[1] سورت الأحقاف: ٢٤.

[2] عمدةُ القارى: ١٢٣/١٥والتوضيح: ٤٩/١٩وفتح البارى: ٣٠١/٦.

[3] صحيح البخارى كتاب التفسير باب قوله: ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا.....﴾ رقم: ٤٨٢٩وعمدة القارى:١٢٢/١٥والتوضيح: ٤٩/١٩.

[4] عمدة القارى: ١٢٣/١٥.

[5] حواله بالا.

[6] حواله بالا.

# ۶- باب: ذِكْرِ الْمَلَائِكَةِ.

**ماقبل سره مناسبت**: د الله تعالى په مخلوقاتو باندې خبره شروع ده. تيرشوى باب درحمت دهواګانو په بيان كښې وو دكوم په ضمن كښې چه د نورو هواګانو هم ذكر راغلې وو اوس د ملائكه ذكر كيږى. سا والامخلوقاتوكښې فرښتې چونكه د نورو عامو مخلوقاتونه وړاندې پيدا شوى دى. په دې وجه مصنف رحمه الله دهغوى ذكر اول كوى.

**د ترجمة الباب مقصد**: دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمه نه دوه مقاصد دى: ① په هغه ملاحده باندې رد كول دى څوك چه دملائكه د وجود نه انكار كوى. تفصيل ان شاء الله مخكښې راروان دې. ② حضرت مصنف رحمه الله ددې ترجمه لاندې شپږ ديرش (۳۶) روايتونه موصول اومعلق نقل كرى دى. حالانكه د مصنف دا عادت نه دې. ([1])ليكن هغه دا خبره ثابتول غوارى چه (د قرآن كريم نه قطع نظر) د ملائكه د ثبوت دپاره روايات سره ددې چه اخبار آحاد دى خو بيا هم دهغې تعداد حد تواتر ته رسيدلې دې. دكوم نه چه دا معلوميږى چه د ملائكه ثبوت د احاديث متواتره نه دې.

**ملائكه لغوى تحقيق**: ملائكه جمع ده ددې مفرد ملك دې. اوس ددې ماده د اشتقاق څه ده؟ په دې كښې مختلف اقوال دى: ① ابن سيده رحمه الله فرمائى چه ملك په اصل كښې ملاك وو لكه چه شمال دې د كوم جمع چه شمائل ده. په دې كښې تخفيف اوشو همزه چونكه ثقيل دې په دې وجه د كثرت استعمال د وجې نه دا حذف كړې شوې دې. اودغه همزه په جمع كښې ښكاره شو اوددې په آخر كښې چه كومه تاء مدوره زياتوالې دې هغه يا خود مبالغه دپاره دې يا د تانيث جمع دپاره دې ګنى اصل جمع ملاتك ده. ([2])

② قزاز رحمه الله وائى دا لفظ د ألوكة نه مشتق دې دكوم معنى چه رسالت اوپيغام رسول دى. د فرښتو اصل كار هم پيغام رسول دى. دا قول د جمهور اوامام سيبويه رحمه الله هم دې. په دې صورت كښې به د دې اصل لاك وى. ([3])

③ يوقول دا دې چه دا «ملك –بكسر اللام –بفتح الميم وسكون اللام–» نه ماخوذ دې. دكوم معنى چه په مضبوطيا سره نيول دى «وهو الأخذ بالقوة» دا هم د لوئى قوت والاوى. ([4])

④ يوقول دا دې چه دا «ملك –بكسر اللام–» نه دى ځكه چه په دې كښې هريوته الله تعالى يومستقل څيز وركړې دې. مثلاً ملك الموت ته قبض ارواح اختيار وركړو اسرافيل ته د شپيلئى پوكولو اختيار وركړو وغيره. خودا قول فاسد دې ګنى د دې په جمع كښې به همزه نه وو. ([5]) لفظ ملك په قرآن كريم كښې د جمع په توګه هم استعمال شوې دې. دالله تعالى ارشاد دې ﴿وَالْمَلَكُ عَلَىٰ أَرْجَائِهَا﴾ ([6])
په دې ټولو كښې راجح قول دريم دې ځكه چه د رسالت او پيغام رسانئى كار دحضرت جبرائيل عليه السلام

---

[1]) فتح البارى: ۳۰۷/۶ والكنز المتوارى: ۱۳۸/۱۳.
[2]) عمدة القارى: ۱۲۳/۱۵ وفتح البارى: ۳۰۶/۶ والتوضيح: ۵۶/۱۹ والمحكم: ۴۷/۷.
[3]) عمدة القارى: ۱۲۳/۱۵ فتح البارى: ۳۰۶/۶ والتوضيح: ۵۶/۱۹
[4]) عمدة القارى: ۱۲۳/۱۵ فتح البارى: ۳۰۶/۶ ولسان العرب مادة: ملك.
[5]) عمدة القارى: ۱۲۳/۱۵ والتوضيح: ۵۶/۱۹
[6]) سورت الحاقة: ۱۶.

او يوځو فرښتې هغوى سره كونكې دى. ټولې فرښتې د پيغام رسولو كار نه كوى او ملائكه ټولو فرښتو ته وئيلى شى په خلاف ددې چه قوت په دې ټولو كښې زيات دې په دې صفت كښې هغه ټولې مشترك دى. اوس څه فرښتې په ركوع كښې دى څه په سجده كښې دى څوك په قيام كښې دى اوالله تعالى چه په كوم حال باندې كومې فرښتې مقرر كړى دى هغه هم يو شان په هغه حال باندې دى. يوه فرښته په ركوع كښې ده نو زرګونه كالونه تير شو هغه هم په ركوع كښې ده. يوه په سجده كښې ده نو د كله نه چه پيدا شوې هم په دغه حال كښې ده سترې كيږى نه. نودا دقوت خبره ده.[1]

**دملائكه اصطلاحى تعريف:** ملائكه كوم ته چه په اردو كښې فرشته وائى نورى مخلوق دې وجود خارجى لرى. عادةً انسان ته په نظر نه راځى. د ضرورت په وخت مختلف شكلونه اختيارولې شى ددوى مسكن او ځكانې په آسمانونو كښې دى. علامه رازى رحمه الله ليكى: ((**أجسام لطيفة هوائية، تقدر على التشكل بأشكال مختلفة، مسكنها السماوات، وهذا قول أكثر المسلمين**))[2] قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى ((**وذهب أكثر المسلمين إلى أنها أجسام لطيفة، قادرة على التشكل بأشكال مختلفة، مستدلين بأن الرسل كانوا يرونهم كذلك**))[3]

ددوى شمير اوتعدادچاته معلوم نه دې په وجود كښې په انسانانو باندې تقدم زمانى لرى. فطرت ئې معصومانه وى، د بدنى اوګناه ظهور ددوى نه ممكن نه دې. الله تعالى دا د نور نه پيدا كړى دى. په مسلم شريف وغيره كښې دحضرت عائشه صديقه رضى الله عنها نه روايت دې: ((**خلقت الملائكة من نور، وخلق الجان من مارج من نار، وخلق آدم مما وصف لكم**))[4]

خودعيسايانو خيال دې چه دا اعلى او افضل نفوس بشريه دى چه خپلو بدنونو او جوسو نه جدا شوى دى. ((**هى النفوس الفاضلة البشرية المفارقة للأبدان**)) اود حكما او فلاسفه خيال دادې چه فرښتې جواهر مجرده دى چه دنفوس ناطقه نه علاوه يوجدا او مستقل مخلوق دې.

**دَ فرښتو دوه قسمونه:** بياټولې فرښتې د قاضى بيضاوى په قول حقيقت كښې دوو قسمونو كښې تقسيم دى: ① په اول قسم كښې هغه فرښتې داخل دى چه هروخت د الله تعالى په معرفت كښې مستقرق وى. د غير الله سره متعلق هر خيال نه بچ وى لكه چه رب كريم ددوى باره كښې ارشاد فرمائى ﴿يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ﴾[5] چه هغوى شپه ورځ سحر مابنام هروخت د الله تعالى تسبيح او تحميد او تقديس كښې مشغول وى كله سترې كيږى نه. دوى ته د العليون او الملائكة المقربون نوم وركړې شوې دې.

② دويم قسم دهغه فرښتو دې چه د زمكې او آسمان ټول انتظامات پوره كوى. خالق لم يزل چه په ازل كښې كوم څه ددې كائنات باره كښې تردې وخته پورې فيصلې كړى دى هغه په ځانى راوړى په هيڅ معامله كښې دالله تعالى نافرمانى نه كوى دهغې نه هيڅ انحراف نه كوى هروخت د الله تعالى حكم

---

[1]) حاشية الشهاب الخفاجى على البيضاوى: ۱۸۲/۱وشرح القسطلانى: ۲۶۲/۵.

[2]) التفسير الكبير للرازى: ۱۴۷/۲/۱البقرة: ۳۰عمدة القارى: ۱۳۳/۱۵فتح البارى: ۳۰۶/۶.

[3]) البيضاوى مع حاشية الشهاب: ۱۸۲/۱البقرة: ۳۰.

[4]) صحيح الإمام مسلم كتاب الزهد باب فى أحاديث متفرقة رقم: ۲۹۹۶ومسند الإمام أحمد: ۱۶۸/۶رقم: ۲۵۷۰۹، ۱۶۸/۶ رقم: ۲۵۸۶۸ومسند عائشة رضى الله عنها ومصنف عبدالرزاق: ۳۵۳/۱۰رقم:۲۱۰۶۸.

[5]) سورت الأنبياء: ۲۰.

پوره كوى. دې ته المدبرات امرا ونيلې شى. بيا په دې كښې څه سماوى وى او څه ارضى (زمينى).[1]

**د سابقه اجمال تفصيل:** پورته دهغه خلقو اختلاف نقل كړې شوې ووچه د فرښتو د وجود قائل دى دهغوى په وجود باندې متفق دى. سره ددې چه دهغوى په حقيقت كښې دهغوى اختلاف دې په دې دريوارو مذاهبو كښې حق مذهب د اهل سنت دې دكوم چه جمهور اهل كلام قائل دى چه فرښتې د نور نه پيدا كړې شوى دى اود الله تعالى يو مستقل مخلوق دې.تركومې چه دنصارى د مذهب تعلق دې نوهغوى آيت مبارك ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾[2] په رڼا كښې باطل دى خكه رب تعالى فرښتو ته چه كله دا خطاب فرمائيلې وو هغه وخت انسان هډو موجود نه وو. دهغه تخليق نه وو شوې په دې وجه ((هى النفوس الفاضلة البشرية المفارقة للأبدان)) څه معنى نشته دې.[3]

د حكماء او فلاسفه مذهب باطل كيدل هم ښكاره دى خكه چه په قرآن اوسنت كښې داسې هيڅ خبره نه ملاويږى چه ددوى په موقف باندې دلالت كوى. دې نه علاوه څه خلق ستورى فرښتې ګڼړى. حافظ رحمه الله ددې تولو باره كښې ليكى: ((وأبطل من قال: إنها الكواكب، أو أنها الأنفس الخيرة التى فارقت أجسادها، وغير ذلك من الأقوال التى لا يوجد فى الأدلة السمعية شىء منها)).[4]

**دملائكه باره كښې د ملاحده موقف:** دهرې زمانې عقل پرستو د ملائكه د وجود نه انكار كړې دې ښكاره خبره ده خالص عقليت ګمراهئى طرف ته اوړى. دغه عقل پرستوسره هم دغه اوشو چه بوطرف ته د ډيرو زياتو حقائقو نه انكارى راروان دى نويل طرف ته هغوى د ملائكه نه هم انكار اوكړو. د هندوستان متجددين اوعقل پرستو مشر سرسيد د فرښتو د وجود نه د انكار كولودپاره پوره زور لګولې وو په خپل ګمان كښې ئې د دلائلو ډيرى لګولې دى.[5] مګر د قرآن كريم آيات كثيره او احاديث متواترة المعنى په موجودګئى كښې ددغه خبرو هيڅ حيثيت نشته. د يو مسلمان دپاره د وحى رڼا كافى ده. هغوى ته د اخواديخوا د فضول ددروغو خبرو څه ضرورت نشته. حافظ صاحب رحمه الله د ملائكه په وجود باندې مختلف احاديث نقل كولونه پس ليكى ((وفى هذا وما ورد من القرآن رد على من أنكر وجود الملائكة من الملاحدة)).[6]

**فرښتې خوراک څښاک نه كوى:** حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائى: ((الملائكة ليسوا ذكورا ولا إناثا، ولا يأكلون، ولا يشربون، ولا يتناكحون، ولا يتوالدون)).[7] يعنى فرښتې نه سړى دى نه ښځې، دوى نه خوراک كوى نه څښاک، اونه دوى نكاح كوى بل په دوى كښې د توالد او تناسل سلسله هم نشته.

---

[1] البيضاوى مع حاشية الشهاب: ١٨٣/١-١٨٢ وقال القسطلانى رحمه الله زيادة عليه: فهم بالنسبة إلى ما هيأهم الله له أقسام فمنهم حملة العرش، ومنهم كروبيون الذين هم حول العرش، وهم أشرف الملائكة مع حملة العرش، وهم الملائكة المقربون. ومنهم جبريل وميكائيل واسرافيل..... إلى آخرما بسطه من أنواعهم. إرشادالسارى: ٢٦٢/٥، والكنزالمتوارى: ١٣٨/١٣.

[2] سورت البقرة: ٣٠.

[3] حاشية الشهاب: ١٨٢/١.

[4] فتح البارى: ٣٠٦/٦.

[5] اوګورئى د سرسيد تفسير القرآن: ١/ ٦٠-٥٢

[6] فتح البارى: ٣٠٦/٦ الكنزالمتوارى: ١٣٦/١٣.

[7] فتح البارى: ٣٠٦/٦ وكذا انظر آكام المرجان: ١٠ الباب الحادى عشر.

معلومه شوه چه نصوص شرح کښې ددوی دپاره چه کومې دمذکر صيغې استعمال کړې شوې دی هغه د تشريف اوتعظيم دپاره دی نه چه دهغوی د جنس خودلو دپاره. په قرآن کريم کښې چه د فرښتو حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت ساره کومه قصه ذکر کړې شوې ده ﴿ وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرٰهِيمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوا۟ سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ ۖ فَمَا لَبِثَ أَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ۝ فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ۚ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلٰى قَوْمِ لُوطٍ ۝ ﴾ (١) دغه شان ﴿ هَلْ أَتٰىكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرٰهِيمَ الْمُكْرَمِينَ ۝ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ۝ فَرَاغَ إِلٰىٓ أَهْلِهِۦ فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ۝ فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ۝ ﴾ (٢) په دې سره هم په دې امر باندې دلالت کيږی چه فرښتې خوراك نه کوی. اوس ددوی خوراك څښاك څه دې؟ نوددې جواب دادې «طعامهم التسبيح، وشرابهم التقديس» (٣) اود شجره خلد باره کښې چه کوم خودلې شوی دی چه دا دهغه ونې نوم دې دکوم نه چه فرښتې خوراك کوی نودا قصه ثابته نه ده. (٤) خلاصه دا شوه چه داد انسان او جناتو نه بالکل يوجدا مخلوق دې.

**په ملائکه او انبياء کرامو کښې څوك افضل دی؟:** حضرت امام بخاری رحمه الله دلته لکه څنګه چه ستاسو په مخکښې دی د ملائکه ذکر دانبياء کرام عليهم السلام په ذکر باندې مقدم کړې دې. دهغوی ذکر ډير روستو راځی نوآيا ددې وجه داده چه په انبياء کرامو باندې ملائکه ته فضيلت حاصل دې؟ ملائکه افضل دی او انبياء کرام مفضول؟ ددې جواب دادې چه داسې نه ده افضل هم انبياء کرام عليهم السلام دی مګر د بعض وجوهاتو د وجې نه ئې د فرښتو ذکر مقدم کړې دې. ① د فرښتو پيدائش د انبياء کرامو د پيدائش نه وړاندې دې. ② د قرآن کريم په مختلف آياتونو کښې د فرښتو ذکرمقدم کړې شوې دې لکه چه ارشاد ربانی دې ﴿ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ﴾ (٥) په يوحديث کښې باقاعده ارشاد نبوی صلی الله عليه وسلم دې «ابدأ بما بدأ الله تعالى به» (٦). چه الله تعالى کوم ترتيب قائم کړې دې په هغې باندې ځئ د کوم نه چه هغه شروع کړې ده هم دهغې نه شروع کوئ. اګرچه دا حديث د حج باره کښې دې ليکن دې نه استدلال کيدې شی. ③ فرښتې د الله تعالى او انبياء کرامو په مينځ کښې واسطه وی هم دوی داالله تعالى پيغام انبياء کرامو ته رسوی. په دې وجه هم ددوی دمقدم کولوسره څه حرج نه پيداکيږی. خو بياهم ددې ټولو وجوهاتو باوجو دا لازم نه راځی چه فرښتو ته په انبياء کرامو باندې فضيلت حاصل شی. والله أعلم بالصواب. (٧)

وَقَالَ أَنَسٌ: قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ لِلنَّبِيِّ صلی الله عليه وسلم: إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ عَدُوُّ الْيَهُودِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ. [ر: ٣١٥١]

**دتعليق مقصد او باب سره مناسبت:** دا تعليق دې. په دې کښې دحضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه د يو اوږد حديث يوه ټکړه دلته نقل کړې شوې ده. په دې سره دحضرت جبرائيل عليه السلام اثبات کيږی. بل نور ملائك هم ثابتيږی. هم دغه د امام بخاری رحمه الله مدعی او مقصود هم وو.

---

(١) سورت هود: ٧٠-٦٩
(٢) سورت الذاريات: ٢٧-٢٤.
(٣) عمدة القاری: ١٢٣/١٥.
(٤) فتح باری: ٣٠٦/٦.
(٥) سورت البقره: ٢٧٩.
(٦) مسلم کتاب الحج باب حجة النبی صلی الله عليه وسلم رقم: ١٢٢١٨، ٢٩٥٠عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما
(٧) التفسير الکبير للإمام الرازی: ١/١٤٧/٢وفتح الباری: ٣٠٦/٦ والکنز المتواری:١٣٦/١٣.

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام بخاری رحمه الله موصولاً به څو مقاماتو باندې نقل کړې دې لکه کتاب احادیث الانبیاء مناقب الانصار وغیره.[1]

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿لَنَحْنُ الصَّافُّونَ﴾/الصافات: ۱۶۵/: الْمَلَائِكَةُ.**

ددې تعلیق مقصد هم واضح دې چه ددې آیت اود ابن عباس رضی الله عنهما د آیت ددې تفسیر نه دملائکه وجود ثابتیږی. پوره آیت داسې دې: ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّافُّونَ﴾ چه مونږ ترلې صفونه اودریږو. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ددې تفسیر په ملائکه سره کړې دې. دې نه علاوه هم دغه مضمون مرفوعاً هم نقل دې. طبرانی وغیره یو روایت نقل کړې دې د کوم الفاظ چه دادی: «مافی السماء الدنیا موضع قدم إلا علیه ملك ساجد أو قائم، فذلك قوله تعالی ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّافُّونَ﴾».[2] یعنی د دنیا په آسمان باندې د قدم کیخودو ځائې نشته دې مګر هلته یو نه یوه فرښته په حالت د سجدې یا په حالت د قیام کښې موجود ده. هم دا د الله تعالی په دې قول کښې بیان کړې شوی دی......[3]

**دمذکوره اثر تخریج:** دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما مذکوره اثر امام عبد الرازق رحمه الله «سماك عن عکرمه عن ابن عباس» په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.[4]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې اثر د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې. په دې سره هم د ملائکه وجود ثابتیږی.

ددې نه پس داسې اوګنړئی چه امام بخاری رحمه الله د خپل معروف عادت نه بالکل اخوا کیخودو سره په دې باب کښې ۳۰ نه زیات احادیث ذکر کړې دی. دا ددې کتاب د نوادر نه دی ځکه چه دحضرت مصنف رحمه الله غالب عادت هم دغه دې چه هغه د تراجم په ذریعه باندې د احادیثو تفصیل اوتوضیح کوی خو دلته داسې نه دی کړې شوی بس حدیث ئې ذکر کړې او روان دې.[5] ددې وجه وړاندې مونږ ذکر کړې ده چه امام بخاری رحمه الله د ملائکه په وجود باندې تواتر ثابتول غواړی. والله اعلم.

د باب د ټولو نه اولنې حدیث دحضرت مالك بن صعصعه رضی الله عنه دې.

## الحدیث الاول

[۳۰۳۵]- حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، ح وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، وَهِشَامٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَيْنَا أَنَا عِنْدَ الْبَيْتِ بَيْنَ

---

[1] صحیح البخاری کتاب أحادیث الأنبیاء باب خلق آدم.... رقم: ۳۳۲۹ وکتاب مناقب الأنصار (الهجرة) باب هجرة النبی صلی الله علیه وسلم.... رقم: ۳۹۱۱ وباب بلاترجمة رقم: ۳۹۳۸ وکتاب التفسیر باب قوله: ﴿مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ﴾ رقم: ۴۴۸۰.

[2] رواه الطبرانی: ۲۱۴/۹ رقم: ۹۰۴۲ عن ابن مسعود رضی الله عنه وکنز العمال: ۱۶۹/۱۰ کتاب العظمة من قسم الأفعال عن حکیم بن حزام وسعد بن العلاء رضی الله عنهما رقم: ۲۹۸۵۱ وتعظیم قدر الصلاة للمروزی: ۲۶۲/۱-۲۶۱ رقم: ۲۵۴-۲۵۳.

[3] فتح الباری: ۳۰۷/۶ وعمدة القاری: ۱۲۳/۱۵ والتوضیح: ۵۷/۱۹

[4] فتح الباری: ۳۰۷/۶ وتغلیق التعلیق: ۴۹۴/۳.

[5] فتح الباری: ۳۰۷/۶ والکنز المتواری: ۱۳۸/۱۳.

النَّائِمِ وَالْيَقْظَانِ -وَذَكَرَ: يَعْنِي رَجُلًا بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ- فَأُتِيتُ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ، مُلِئَ حِكْمَةً وَإِيمَانًا، فَشُقَّ مِنَ النَّحْرِ إِلَى مَرَاقِّ الْبَطْنِ، ثُمَّ غُسِلَ الْبَطْنُ بِمَاءِ زَمْزَمَ، ثُمَّ مُلِئَ حِكْمَةً وَإِيمَانًا، وَأُتِيتُ بِدَابَّةٍ أَبْيَضَ، دُونَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ: الْبُرَاقُ، فَانْطَلَقْتُ مَعَ جِبْرِيلَ حَتَّى أَتَيْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ جِبْرِيلُ. قِيلَ: مَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ، وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى آدَمَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنَ ابْنٍ وَنَبِيٍّ، فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ، قِيلَ مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: مَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: أُرْسِلَ إِلَيْهِ، قَالَ: نَعَمْ، قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ، وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى عِيسَى، وَيَحْيَى فَقَالَا: مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَنَبِيٍّ، فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الثَّالِثَةَ [ص: ١١٠]، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قِيلَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: مَنْ مَعَكَ؟ قِيلَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ، وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى يُوسُفَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ قَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَنَبِيٍّ، فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الرَّابِعَةَ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: مَنْ مَعَكَ؟ قِيلَ مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قِيلَ: نَعَمْ، قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى إِدْرِيسَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَنَبِيٍّ، فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الْخَامِسَةَ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قِيلَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْنَا عَلَى هَارُونَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَنَبِيٍّ، فَأَتَيْنَا عَلَى السَّمَاءِ السَّادِسَةِ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قِيلَ جِبْرِيلُ، قِيلَ: مَنْ مَعَكَ؟ قِيلَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ مَرْحَبًا بِهِ وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى مُوسَى، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَنَبِيٍّ، فَلَمَّا جَاوَزْتُ بَكَى، فَقِيلَ: مَا أَبْكَاكَ: قَالَ: يَا رَبِّ هَذَا الْغُلَامُ الَّذِي بُعِثَ بَعْدِي يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِهِ أَفْضَلُ مِمَّا يَدْخُلُ مِنْ أُمَّتِي، فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ السَّابِعَةَ، قِيلَ مَنْ هَذَا؟ قِيلَ: جِبْرِيلُ، قِيلَ مَنْ مَعَكَ؟ قِيلَ: مُحَمَّدٌ، قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ، مَرْحَبًا بِهِ وَلَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَأَتَيْتُ عَلَى إِبْرَاهِيمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ مِنَ ابْنٍ وَنَبِيٍّ، فَرُفِعَ لِيَ الْبَيْتُ الْمَعْمُورُ، فَسَأَلْتُ جِبْرِيلَ، فَقَالَ: هَذَا الْبَيْتُ الْمَعْمُورُ يُصَلِّي فِيهِ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ، إِذَا خَرَجُوا لَمْ يَعُودُوا إِلَيْهِ آخِرَ مَا عَلَيْهِمْ، وَرُفِعَتْ لِي سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى، فَإِذَا نَبِقُهَا كَأَنَّهُ قِلَالُ هَجَرٍ وَوَرَقُهَا، كَأَنَّهُ آذَانُ الْفُيُولِ فِي أَصْلِهَا أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ، وَنَهْرَانِ ظَاهِرَانِ، فَسَأَلْتُ جِبْرِيلَ، فَقَالَ: أَمَّا الْبَاطِنَانِ: فَفِي الْجَنَّةِ، وَأَمَّا الظَّاهِرَانِ: النِّيلُ وَالْفُرَاتُ، ثُمَّ فُرِضَتْ عَلَيَّ خَمْسُونَ صَلَاةً، فَأَقْبَلْتُ حَتَّى جِئْتُ مُوسَى، فَقَالَ: مَا صَنَعْتَ؟ قُلْتُ: فُرِضَتْ عَلَيَّ خَمْسُونَ صَلَاةً، قَالَ: أَنَا أَعْلَمُ بِالنَّاسِ مِنْكَ، عَالَجْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ، وَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ، فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ، فَسَلْهُ، فَرَجَعْتُ، فَسَأَلْتُهُ فَجَعَلَهَا أَرْبَعِينَ، ثُمَّ مِثْلَهُ، ثُمَّ ثَلَاثِينَ، ثُمَّ مِثْلَهُ فَجَعَلَ عِشْرِينَ، ثُمَّ مِثْلَهُ فَجَعَلَ عَشْرًا، فَأَتَيْتُ

مُوسَىٰ، فَقَالَ: مِثْلَهُ، فَجَعَلَهَا خَمْسًا، فَأَتَيْتُ مُوسَىٰ فَقَالَ: مَا صَنَعْتَ؟ قُلْتُ [ص: ۰]: جَعَلَهَا خَمْسًا، فَقَالَ مِثْلَهُ، قُلْتُ: سَلَّمْتُ بِخَيْرٍ، فَنُودِيَ إِنِّي قَدْ أَمْضَيْتُ فَرِيضَتِي، وَخَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِي، وَأَجْزِي الْحَسَنَةَ عَشْرًا، وَقَالَ هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ فِي الْبَيْتِ الْمَعْمُورِ [۳۲۱۳، ۳۲۴۷، ۳۶۷۴، ۵۲۸۷، وانظر ۳۴۲] (۱)

## تراجم رجال

**هدبه بن خالد**: دا ابوالاسود هدبه بن خالد قیسی بصری رحمه الله دی. (۲)

**همام**: دا همام بن یحیی بن دینار عوذی بصری رحمه الله دی. (۳)

**قتاده**: دا قتاده بن دعامه سدوسی بصری رحمه الله دی. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه په ذیل کښې راغلې ده. (۴)

**خلیفه**: دا خلیفه بن خیاط بصری رحمه الله دی. (۵)

**یزید بن زریع**: دا یزید بن زریع عیشی بصری تمیمی رحمه الله دی. (۶)

**سعید**: دا سعید بن ابی عروبه مهران یشکری بصری رحمه الله دی. (۷)

**هشام**: دا هشام بن ابی عبدالله دستوائی رحمه الله دی. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب زیادة الإیمان ونقصانه لاندې تیره شوې ده. (۸)

**انس بن مالک**: دا مشهور صحابی خادم رسول حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دی. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه په ذیل کښې راغلې ده. (۹)

**مالک بن صعصعه**: دا صحابی رسول حضرت مالک بن صعصعه بن وهب بن عدی بن مالک نجاری انصاری مدنی رضی الله عنه دی. (۱۰)

---

(۱) قوله: عن مالک بن صعصعة: الحدیث: رواه البخاری فی أحادیث الأنبیاء باب قوله الله تعالی ﴿وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ إِذْ رَأَىٰ نَارًا﴾ رقم: ۳۳۹۳ وباب قول الله تعالی ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا﴾ رقم: ۳۴۳۰ وفی کتاب مناقب الأنصار باب المعراج رقم: ۳۸۸۷ ومسلم رقم: ۴۱۶ باب من سورة ألم نشرح والنسائی رقم: ۴۴۹ فی الصلاة باب فرض الصلوة.

(۲) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب مواقیت الصلاة باب من صلی بالناس جماعة......

(۳) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب مواقیت الصلاة باب من نسی صلاة تحت رقم: ۵۹۷

(۴) کشف الباری: ۳/۲.

(۵) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب الجنائز باب المیت یسمع خفق النعال.

(۶) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب غسل المنی وفرکه......

(۷) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد......

(۸) کشف الباری: ۴۵۶/۲.

(۹) کشف الباری: ۴/۲.

(۱۰) تهذیب الکمال: ۲۷، ۱۴۷ رقم الترجمة: ۵۷۴۴ والإصابة: ۳۴۶/۳ رقم الترجمة: ۷۶۳۹.

دي د رسول الله ﷺ نه روايت کوی اوددوی نه حضرت انس رضی الله عنه د حديث روايت کوی. (۱)
د محدثينو د تصريح مطابق دمعراج په قصه کښې د ټولو نه صحيح حديث هم ددوی دې. «إنه ليس في أحاديث المعراج أصح ولا أحسن منه» (۲) ترد آخری ژونده پورې هم په مدينه منوره کښې پاتې دې. (۳)
ددوی نه صرف پنځه احاديث نقل دی. په کوم کښې چه يوحديث متفق عليه دې يعنی حديث باب.
(۴) حضرت مالك بن صعصعه رضی الله عنه د صحيحين اونسائی شريف راوی دې. رضی الله عنه وأرضاه. (۵)
دحضرت مالك بن صعصعه رضی الله عنه دا اورد حديث د معراج سره متعلق دی. دکوم مکمل تفصيلات چه کتاب الصلاة په شروع کښې راغلی دی. باقی څه مباحث به باب المعراج کښې راځی ان شاء الله. (۶)

**قوله: وقال همام عن قتادة عن الحسن عن أبي هريرة رضي الله عنه......**

داحديث امام بخاری رحمه الله په دوو سندونوسره نقل کړې دې. يوسند د هدبه رحمه الله اودويم سند د خليفه. د هدبه رحمه الله په سند کښې همام رحمه الله دې. داامام بخاری رحمه الله مقصد ددې عبارت نه دادې چه همام کله دا روايت نقل کوی نود بيت المعمور قصه د معراج د قصې نه جدا بيانوی. چنانچه هغه اصل حديث خو د «عن قتادة عن أنس» په سندسره نقل کوی اود بيت المعمور قصه «عن قتادة عن الحسن عن أبي هريرة» په سندسره روايت کوی.
ترکومې چه د سعيد بن ابی عروبه او هشام دستوائی معامله ده نو دا دواړه حضرات د بيت المعمور قصه د حضرت انس رضی الله عنه په حديث کښې مدرج بالخبر جوړولو سره نقل کوی چه دا قصه هغه د معراج قصې سره بيانوی خود همام رحمه الله روايت صواب او ارجح دې.
**دا تعليق نه دې:** دې نه علاوه دهمام رحمه الله روايت دلته موصول دې معلق نه دې. چاچه دا وئيلی دی چه دا معلق دې نودهغه قول صحيح نه دې. هغه ته وهم شوې دې. چنانچه حسن بن سفيان رحمه الله په خپل سند کښې مکمل طويل حديث د هدبه رحمه الله نه روايت کړې دې کله چه هغه دې عبارت ته رسيږی «فرفع لي البيت المعمور» نوحديث مکمل کولوسره ئې دا اوفرمائيل «قال قتادة: فحدثنا الحسن عن أبي هريرة أنه رأي البيت المعمور، يدخله كل يوم سبعون ألف ملك، ولا يعودون فيه» په آخر کښې ئې دا ذکر کړې دې. دکوم نه چه معلوميږی چه دا جدا روايت دې ددې تعلق بيت المعمور سره دې دمعراج قصې سره نه دې. (۷)
امام اسماعيلی رحمه الله هم دا روايت د حسن بن سفيان، ابويعلی، بغوی وغيره نه د هدبه رحمه الله په واسطه سره مفصلاً نقل کړې دې. ددې تفصيل نه داامام بخاری رحمه الله دا کلمات «في البيت المعمور» مراد هم

---

(۱) تهذيب الكمال: ۱۴۷/۲۷ رقم الترجمة: ۵۷۴۴ والإصابة: ۳۴۶/۳ رقم الترجمة: ۷۶۳۹.
(۲) تهذيب الكمال: ۱۴۸/۲۷ رقم الترجمة: ۵۷۴۴ وتعليقات خلاصة الخزرجي: ۳۶۷.
(۳) الإصابة: ۳۴۶/۳. خلاصة الخزرجي: ۳۶۷.
(۴) خلاصة الخزرجي: ۳۶۷ من اسمه مالك.
(۵) حواله بالا وتهذيب الكمال: ۱۴۸/۲۷.
(۶) كشف الباري: كتاب الصلاة ص: ۲۱۸-۸۷.
(۷) الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان: ۲۳۹/۱ كتاب الوحي، ذكر وصف الإسراء.. رقم: ۴۸ ومسند الإمام أحمد: ۲۰۹/۴ رقم ۱۷۸۳۵

واضح شو چه هغه دا فرق واضح کول غواړي. چنانچه طبري د سعيد بن ابي عروبه عن قتاده په طريق سره دا روايت نقل کړي دي: «البيت المعمور مسجد في السماء بحذاء الكعبة، لو خر لخر عليها، يدخله سبعون ألف ملك كل يوم، إذا خرجوا منه لم يعودوا» [1] يعنى بيت المعمور د کعبې شريفې عين دپاسه په آسمان کښې يوجمات دې که چرې فرض کړه راپريوځي نو په کعبه به راپريوځي. په دې کښې هره ورځ اويازره فرښتې داخليږي چه کله يوځل راووځي نوبيا نه وروا پس کيږي.

ددې روايت اودماقبل روايت نه محسوس کيږي چه حضرت قتاده رحمه الله د بيت المعمور قصه کله د حضرت انس رضي الله عنه په حديث کښې مدرج کوی اوکله تفصيل فرمائيلوسره ددوارو په مينځ کښې فرق ساتي اوچه کله تفصيل فرمايي نوبيا کله ددې سند ذکر کوی اوکله ئې مبهم ساتي. والله أعلم.

حافظ رحمه الله ليکی

«وهذا وما قبله يشعر بأن قتادة كان تارة يدرج قصة البيت المعمور في حديث أنس، وتارة يفصلها، وحين يفصلها تارة يذكر سندها، وتارة يبهمه» [2]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې حديث کښې د حضرت جبرائيل عليه السلام ذکر راغلي دې د چا تعلق چه د فرښتو د ټولگی کروبيون سره دې. په دې ډله کښې د فرښتو سردار دې. بل دحديث په آخره کښې دی «هذا البيت المعمور، يصلي فيه كل يوم سبعون ألف ملك......» نوجود دملائکه ثابت شو. [3]

د باب دويم حديث دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دې.

## الحديث الثاني

[۳۰۳۶] - حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ، قَالَ: "إِنَّ أَحَدَكُمْ يُجْمَعُ خَلْقُهُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يَبْعَثُ اللَّهُ مَلَكًا فَيُؤْمَرُ بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ، وَيُقَالُ لَهُ: اكْتُبْ عَمَلَهُ، وَرِزْقَهُ، وَأَجَلَهُ، وَشَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ، ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ الرُّوحُ، فَإِنَّ الرَّجُلَ مِنْكُمْ لَيَعْمَلُ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَنَّةِ إِلَّا ذِرَاعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ كِتَابُهُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ، وَيَعْمَلُ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّارِ إِلَّا ذِرَاعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ"

[۳۱۵۴، ۶۲۲۱، ۷۰۱۶] [4]

---

[1] جامع البيان: ۲۱/۵۶۵سورة الطور: ٤.

[2] فتح البارى: ۶/۳۰۸والكنز المتوارى: ۱۳/۱۴۵-۱۴۴وعمدة القارى: ۱۵/۱۲۹وإرشادالسارى: ۵/۲۶۵.

[3] عمدة القارى: ۱۵/۱۲۳.

[4] قوله: قال عبدالله: الحديث رواه البخارى فى القدر باب فى القدر رقم: ۵۹۴۶وفى الأنبياء باب خلق آدم وذريته رقم: ۳۳۳۲وفى التوحيد باب ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ﴾ رقم: ۷۴۵۴ومسلم رقم: ۶۷۲۴-۶۷۲۳فى القدر باب كيفية خلق الآدمى فى بطن أمه، وأبوداؤد رقم: ۴۷۰۸فى سننه باب فى القدر والترمذى باب ماجاء أن الأعمال بالخواتيم رقم: ۲۱۳۸وابن ماجه فى المقدمة باب فى القدر رقم: ۶۴

## تراجم رجال

**الحسن بن الربيع** دا ابوعلي الحسن بن الربيع بن سليمان بجلي قسري كوفي رحمه الله دې. [1]
د لرګو او بانړس کار به ئې کولو په دې وجه ورته خشاب او بوراني ونيلې شي. [2]
دې د ائمه حديث نه ابواسحاق فزاري، عبدالله بن ادريس، عبدالله بن مبارك، حمادبن زيد، ابوالاحوص، ابوعوانه، مهدي بن ميمون، عبدالواحد بن زياد، قيس بن الربيع اوحارث بن عبيد رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت کوي. ددوی نه حضرات شيخين ابوداؤد، عمرو بن منصورنسائي، محمدبن يحيى بن كثير حراني، ابو حاتم، ابوزرعه، عباس دوري، حنبل بن اسحاق، يعقوب بن سفيان فارسي، علي بن عبدالعزيز بغوي اسماعيل بن عبدالله سمويه، ابوعمران بن ابي غزيه رحمهم الله نه علاوه يوه لويه ډله دحديث روايت کوي. [3]
امام عجلي رحمه الله فرمائي ((**كان يبيع البواري، كوفي، ثقة، رجل صالح، متعبد**)) [4] ابوحاتم رحمه الله فرمائي ((**كان من أوثق أصحاب ابن إدريس**)) [5] نور فرمائي: ((**الحسن بن الربيع ثقة، وكنت أحسب أنه مكسور العنق، لانحنائه، حتى قيل لي: إنه لا ينظر إلى السماء**)) [6] يعني حسن ثقه دې مابه هميشه دهغه بنکته شوې سټ (بنکته شوې سر کنلو سره دا ګڼړل چه د ده سټ مات دې. بيا ماته اوخودلې شو چه په اصل کښې هغه د آسمان طرف ته نه ګوري. عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائي ((**كوفي ثقة**)) [7] حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي ((**الإمام الحافظ الحجة العابد.....، وكان من العلماء العاملين**)) [8] امام ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې او ليکلي دي چه حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله هغه پخپله په خپلو لاسونو باندې په قبر کښې ورکوز کړې دې اوخښ کړې وو. دا د هغوی ډير نيزدې شاګردوو. [9]
امام بخاري فرمائي چه ۲۲۰هجري کښې دهغوی انتقال شوې. خو ابن سعد رحمه الله ئې وفات په رمضان ۲۲۱هجري کښې ښائي [10] دې د ائمه سته راوي دې. ټولو د ده نه روايت کړې دې. رحمه الله تعالى رحمة واسعة. [11]

**ابوالاحوص** دا سلام بن سليم حنفي مولى بني حنيفه كوفي رحمه الله دې. [12]

---

[1] تهذيب الكمال: ۶/۱۴۸-۱۴۷وتهذيب ابن حجر: ۲/۲۷۸-۲۷۷وسير أعلام النبلاء: ۱۰/۳۹۹.
[2] تهذيب الكمال: ۶/۱۴۸وتهذيب ابن حجر: ۲/۲۷۸وسير أعلام النبلاء: ۱۰/۴۰۰.
[3] د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال: ۶/۱۵۰-۱۴۸.
[4] تهذيب الكمال: ۶/۱۵۰وتهذيب ابن حجر: ۲/۲۷۸.
[5] حواله بالا والجرح والتعديل: ۳رقم الترجمة: ۴۴.
[6] الجرح والتعديل: ۳رقم الترجمة: ۴۴ وتعليقات تهذيب الكمال: ۶/۱۵۰ وتهذيب التهذيب: ۲/۲۷۸.
[7] تهذيب الكمال: ۶/۱۴۸تاريخ بغداد: ۷/۳۰۸.
[8] سير أعلام النبلاء: ۱۰/۴۰۰-۳۹۹.
[9] الثقات لابن حبان: ۸/۱۷۲وتهذيب ابن حجر: ۲/۲۷۸.
[10] حواله جات بالا وتاريخ البخاري الكبير: ۲ رقم الترجمة: ۲۵۱۶وطبقات ابن سعد: ۶/۴۰۹وتهذيب الكمال: ۶/۱۵۱.
[11] تهذيب الكمال: ۶/۱۵۱.
[12] ددوی دحالاتو دپاره اوګورئ كتاب الأذان باب التفات في الصلاة.

**اعمش**: دا سليمان بن مهران الكاهلي المعروف بالاعمش رحمه الله دي. ددوي حالات كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم كښې تيرشوي دي.(۱)

**زيد بن وهب**: دا زيد بن وهب ابوسليمان همداني كوفي رحمه الله دي. (۲)

**عبدالله**: دا مشهور صحابي حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دي. ددوي تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم په ذيل كښې بيان كړې شوي دي.(۳)

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**: ددې حديث د ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله سره دې «ثم يبعث الله ملكا، فيؤمر بأربع كلمات......» چه په حديث كښې دهغه فرښتې ذكر دې چه د خلقو په تقديرونو ليكلو باندې مامور ده.(۴) په دې سره د فرښتو وجود ثابتيږي. ددې حديث تفصيلي شرح به ان شاء الله كتاب القدر كښې راځي.(۵)

د باب دريم حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.

## الحديث الثالث

[۳۰۳۷]-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ، أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَابَعَهُ أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَحَبَّ اللَّهُ العَبْدَ نَادَى جِبْرِيلَ: إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلاَنًا فَأَحْبِبْهُ، فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ، فَيُنَادِي جِبْرِيلُ فِي أَهْلِ السَّمَاءِ: إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلاَنًا فَأَحِبُّوهُ، فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ، ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ القَبُولُ فِي الأَرْضِ [۵۶۹۳، ۷۰۴۷](۶)

## تراجم رجال

**محمدبن سلام**: دا محمدبن سلام بيكندي رحمه الله دي. ددوي تذكره كتاب الإيمان باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: أنا أعلمكم بالله....، كښې تيره شوې ده.(۷)

**مخلد**: دامخلد بن يزيد الحراني القرشي رحمه الله دي. (۱)

---

۱) كشف الباري: ۲/۲۵۱.

۲) ددوي دحالاتو دپاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر في شدة الحر.

۳) كشف الباري: ۲/۲۵۷.

۴) عمدة القاري: ۱۵/۱۲۹وفتح الباري: ۶/۳۰۹.

۵) صحيح البخاري كتاب القدرباب في القدر رقم: ۶۵۹۴.

۶) قوله: قال أبوهريرة: الحديث، رواه البخاري في التوحيد باب كلام الرب مع جبرائيل ونداء الله الملائكة رقم: ۷۴۸۵وفي الأدب باب المقة في الله تعالى رقم: ۶۰۴۰ومسلم رقم: ۶۷۰۵-۶۷۰۷في البروالصلة باب إذا أحب الله عبداحببه إلى عباده، والترمذي في التفسيرباب ومن سورة مريم...... رقم: ۳۱۶۱.

۷) كشف الباري: ۲/۹۳.

ابن جريج دا ابوالوليد عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج اموى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها.... كښې تيره شوې ده.[2]

موسى بن عقبه: دا امام مغازى حضرت موسى بن عقبه اسدى مدنى رحمه الله دي. د دوى حالات كتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء لاندې تيرشوى دى.[3]

نافع: دا مشهور تابعى محدث حضرت نافع مولى ابن عمر رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد په ذيل كښې راغلى دى.[4]

ابوهريرة: دَ مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان لاندې تيرشوى دى.[5] د دې حديث شرح كتاب الادب كښې رغلې ده.[6]

**قوله: وتابعه أبوعاصم عن ابن جريج...** امام بخارى رحمه الله دا حديث دلته په دوو طرق سره ذكر كړې دې. يو موصول بل معلق. ((وتابعه أبوعاصم عن ابن جريج)) سره معلق روايت شروع كيږى. دې نه وړاندې موصول روايت دى. امام بخارى رحمه الله د موصول په ځائې دلته دمعلق روايت الفاظ ذكر كړى دى. اومعلق روايت موصولاً امام رحمه الله په كتاب الادب كښې ذكر كړى دى.[7]

دا په دغه مقاماتو كښې يو مقام دې چرته چه امام بخارى رحمه الله د خپل شيخ په واسطه سره معلق روايت نقل كړې دې ځكه چه ابوعاصم رحمه الله دهغه شيخ دې ليكن ددې باوجود د واسطې سره د هغه نه معلق روايت كوى.[8]

ترجمة الباب سره مناسبت: ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله كښې دې: ((إذا احب الله العبد نادي جبريل)) الله تعالى حضرت جبرائيل عليه السلام ته آواز وركوى.[9]

دباب څلورم حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه دې.

## الحديث الرابع

[٣٠٣٨]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهَا سَمِعَتْ

---

[1] دَ دوى دَحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الاذان باب ماجاء فى الشوم.

[2] كشف البارى كتاب الحيض: ٢٠٤.

[3] كشف البارى: ١٧٧/٥.

[4] كشف البارى: ٦٥١/٤.

[5] كشف البارى: ٦٥٩/١.

[6] كشف البارى كتاب الادب: ٤١٦-٤١٤ باب المقة من الله.

[7] صحيح البخارى كتاب الادب باب المقة من الله رقم: ٦٠٤٠.

[8] فتح البارى: ٣٠٩/٦ وعمدة القارى: ١٣٠/١٥.

[9] حواله جات بالا.

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ المَلَائِكَةَ تَنْزِلُ فِي العَنَانِ: وَهُوَ السَّحَابُ، فَتَذْكُرُ الأَمْرَ قُضِيَ فِي السَّمَاءِ، فَتَسْتَرِقُ الشَّيَاطِينُ السَّمْعَ فَتَسْمَعُهُ، فَتُوحِيهِ إِلَى الكُهَّانِ، فَيَكْذِبُونَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ" [۳۱۱٤، وانظر ۵٤۲۹] [1]

## تراجم رجال

**محمد: دې محمدنه څوک مراد دي؟** د دې حديث د سند په شروع كښې چه دا كوم محمد غير منسوب راغلې دې، دې نه څوك مراد دې؟ په دې كښې د شراح اختلاف دې. ① ابومسعود غسانی جيانی رحمه الله وينا دا ده چه دې نه مراد مشهور محدث امام محمد بن يحيى ذهلى رحمه الله دې. ② د بخاری شريف مشهور ناسخ ابوذر د دې حديث نقل كولو نه پس ليكى: «محمد هذا هو البخاري».

**د حافظ رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله دا دويم احتمال راجح ګرځولو سره فرمائيلى دى چه اسماعيلى رحمه الله او ابونعيم رحمه الله دواړو ته داحديث د امام بخارى رحمه الله د روايت نه بغيرنه دې ملاؤشوې هم په دې وجه دواړو دا حديث هم دهغه نه نقل كړې ګنې د امام بخارى رحمه الله د روايت نه علاوه كه د بل چا نه روايت نقل وې نودهغه پورې رسيدل د دې دواړو حضراتو دپاره ګرانه نه وه [2]

**د علامه عينى رحمه الله رائې او راجح قول:** خو علامه عينى رحمه الله اولنې احتمال راجح ګرځولې دې. زمونږ په خيال هم دمحمد رحمه الله نه امام ذهلى دې. دعلامه عينى رحمه الله موقف صحيح او مضبوط معلوميږى. دهغوى وينا داده چه امام اسماعيلى او حافظ ابونعيم ته كه چرې دا روايت د بل خائى نه ملاؤ شوې وې نو په دې سره دا لازم نه راځى چه د دې نه هم بخارى رحمه الله مراد دې. دا ښكاره شان خبره ده څكه چه دامام بخارى رحمه الله داعادت چرته هم نه دې پاتې چه هغه د خپل شيخ نه وړاندې خپل نوم ذكر كړې اوداسې اووائى حدثنا محمد ﴿بيا سرې دخپل خان باره كښې داسې څنګه ونيلى شى چه حدثنا محمد؟﴾. دې نه علاوه د صحيح بخارى په رجال كښې محمد بن يحيى بن عبدالله بن خالد بن فارس ابوعبدالله ذهلى رحمه الله هم دې. امام بخارى رحمه الله تقريباً په ديرش مقاماتو باندې دهغه نه روايت كړې دې اوچرته ئى هم د نوم داسې تصريح نه ده كړې «حدثنا محمد بن يحى الذهلى» بلكه كله صرف حدثنا محمد وائې او كله محمد بن عبدالله چه د نيكه طرف ته نسبت كوى او كله د قرنيكه وړنيكه طرف ته منسوب كولو سره «حدثنا محمد بن خالد» وائى. [3]

**دمذكوره صنيع وجه:** اوس په قدرتى توګه دا سوال پيدا شو چه حضرت مصنف رحمه الله داسې ولې كوى؟ نو د دې وجه معروف ده د امام بخارى رحمه الله په حالاتو كښې تاسو لوستلې دى چه كوم وخت هغوى په ۲۵۰ هجرى كښې نيشاپور ته تشريف اوړلې وو نو په مسئله خلق قرآن باندې دهغوى خپل استاذ محمد بن يحيى ذهلى رحمه الله سره ئى اختلاف شوې وو. حضرت مصنف رحمه الله دهغوى نه د حديث سماع

---

[1] قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث، رواه البخارى فى الطب باب الكهانة رقم: ۵۷۶۲ وفى الادب باب قول الرجل للشىء: ليس بشيء، رقم: ۶۲۱۳ وفى التوحيد باب قراءة الفاجر والمنافق وأصواتهم رقم: ۷۵۶۱ وفى بدء الخلق باب صفة إبليس وجنوده رقم: ۳۲۸۸ ومسلم فى السلام باب تحريم الكهانة وإتيان الكهان رقم: ۵۸۱۸-۵۸۱۶.

[2] فتح البارى: ۳۰۹/۶ وإرشاد السارى: ۲۶۸/۵.

[3] تهذيب الكمال: ۶۲۲/۲۶ رقم الترجمه: ۵۶۸۶.

اول کړې وه اود هغوی شيخ وو نودهغوی د رواياتو بيانولو سلسله خوجاری وه مګر د نوم تصريح کول ئې پريخودل.(١) دعلامه عينی رحمه الله د موقف تائيد ددې خبرې نه هم کيږی چه د حديث په سند کښې بل شيخ ابن ابی مريم رحمه الله يعنی سعيد بن الحکم رحمه الله دې. دهغوی نه امام بخاری رحمه الله په خپل کتاب کښې تعليقًا روايت خو نقل کړې دې مګر مسندأ او موصولاً ئې روايت نه دې کړې.(٢) ددې نه هم دغه معلوميږی چه دمحمدنه مراد ذهلی دې نه چه بخاری. والله اعلم ، وعلمه اتم واحکم
**الليث**: دا مشهور امام ليث بن سعد فهمی رحمه الله دې. ددوی مختصر ذکر بدء الوحی دريم حديث کښې راغلې دې.(٣)
**ابن ابی جعفر**: دا عبيدالله بن ابی جعفر يسار قرشی رحمه الله دې.
**محمدبن عبدالرحمن**: دامحمدبن عبدالرحمن بن نوفل بن اسود يتيم عروه رحمه الله دې.(٤)
**عروة بن الزبير**: دا حضرت عروه بن زبير بن عوام قرشی مدنی رحمه الله دې. د دوی اجمالی حالات بدء الوحی او تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې تيرشوی دی.(٥)
**عائشه** رضی الله عنها: دام المؤمنين عائشه صديقه رضی الله عنها حالات بدء الوحی دويم حديث لاندې تيرشوی دی.(٦)
**دسندخصوصيت**: ددې سند يوخصوصيت دادې چه ددې دنصف اول رجال بصری دی اود نصف ثانی رجال مدنی دی. يعنی محمدبن عبدالرحمن، عروه او حضرت عائشه رضی الله عنها دا دريواړه مدنی دی.(٧)
**تنبيه**: داحديث وړاندې مخ ته باب صفة ابليس کښې هم راځی. ددې حديث تفصيلی شرح کتاب الطب او کتاب الأدب کښې راغلې ده.(٨)
د باب پنځم حديث د حضرت ابوهريره رضی الله عنه دی.

## الحديث الخامس

[٣٠٣٩]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَالأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص: ١١٣]: «إِذَا كَانَ يَوْمُ الجُمُعَةِ، كَانَ عَلَى كُلِّ بَابٍ مِنْ أَبْوَابِ المَسْجِدِ المَلاَئِكَةُ، يَكْتُبُونَ الأَوَّلَ فَالأَوَّلَ، فَإِذَا جَلَسَ الإِمَامُ طَوَوُا الصُّحُفَ، وَجَاءُوا يَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ». [ر ٨٤١] (٩)

---

(١) عمدة القاری: ١٥/١٣٣-١٣٢ دواقعې د تفصيل دپاره اوګورئ: كشف الباری: ١/١٤٧.
(٢) تهذيب الكمال: ١٠/٣٩٣رقم الترجمة: ٢٢٣٥.
(٣) كشف الباری:١/٣٢٤.
(٤) د دواړو بزرګانود تذکره دپاره اوګورئ كتاب الغسل باب الجنب يتوضأ......
(٥) كشف الباری: ٢/٤٣٦.
(٦) كشف الباری: ١/٢٩١.
(٧) عمدة القاری: ١٥/١٣٣فتح الباری: ٦/٣٠٩.
(٨) كشف الباری كتاب الطب: ٩٦-٩٤كتاب الادب: ٦٣٦-٦٣٥ نوراوګورئ التوضيح:١٩/٢١٣-٢١٢.
(٩) قوله: عن أبی هريرة رضی الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب الجمعة باب الاستماع إلى الخطبة.

## تراجم رجال

**احمدبن يونس:** دا احمدبن عبدالله بن يونس يربوعى رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب من قال: إن الايمان هوالعمل لاندې تيرشوى دى.[1]

**ابراهيم بن سعد:** دا ابراهيم بن سعد بن ابراهيم زهرى مدنى رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب من كره أن يعود...... كښې تيرشوى دى.[2]

**ابن شهاب:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددوې مختصر ذكر بدء الوحى دريم حديث كښې تير شوې دي.[3]

**ابى سلمه:** دا مشهور تابعى حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنى رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب صوم رمضان احتساباً من الايمان كښې راغلى دى.[4]

**الاغر:** دا ابوعبدالله سلمان جهنى مدنى رحمه الله دي.[5]

**ابوهريره:** دا مشهورصحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې دواړو احاديثوترجمة الباب سره مطابقت لفظ الملائكة كښې دې[7] د باب شپږم حديث هم دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دى.

## الحديث السادس

[۳۰۴۰]-حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: مَرَّ عُمَرُ فِي الْمَسْجِدِ وَحَسَّانُ يُنْشِدُ فَقَالَ: كُنْتُ أُنْشِدُ فِيهِ، وَفِيهِ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ، ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَى أَبِي هُرَيْرَةَ، فَقَالَ: أَنْشُدُكَ بِاللَّهِ، أَسَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَجِبْ عَنِّي، اللَّهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ؟» قَالَ: نَعَمْ [ر ۴۴۲][8]

---

[1] كشف البارى: ۱۵۹/۲.
[2] كشف البارى: ۱۲۰/۲.
[3] كشف البارى كتاب الغسل: ۱۹٤.
[4] كشف البارى: ۳۲۳/۲.
[5] ددوى حالاتودېاره اوګورئى كتاب الجمعة باب الاستماع إلى الخطبة.....
[6] كشف البارى: ۶۵۹/۱ داحديث كتاب الجمعه كښې تيرشوې دې صحيح البخارى كتاب الجمعة باب الاستماع إلى الخطبة.
[7] عمدة القارى: ۱۳۳/۱۵.
[8] قوله: عن سعيد بن المسيب: الحديث مرتخريجه كتاب الصلاة باب الشعر فى المسجد.

**ترجمه:** حضرت سعید بن مسیب رحمه الله فرمائی چه حضرت عمر رضي الله عنه مسجد نبوی سره تیریدو په داسې حال کښې چه حضرت حسان رضي الله عنه اشعار لوستل. ونی فرمائیل ما به هغه وخت هم دا شعر لوستلو کله به چه تا (عمر) نه بهتر (نبی کریم ﷺ) موجود وو. بیا هغه دحضرت ابوهریره رضي الله عنه طرف ته متوجه شو اوهغه ته ئې د الله تعالی قسم ورکولوسره معلومه کړه چه آیا تا نبی کریم ﷺ فرمائیلوسره اوریدلې وو چه (اې حسان) زما د طرف نه (ددغه مشرکانو د فضول وینا) جواب ورکړه، اې الله په روح القدس سره د حضرت حسان امداد اوکړه؟ حضرت ابوهریره رضي الله عنه په جواب کښې اوونیل اوجی. ددې حدیث شرح کتاب الصلاة کښې تیره شوې ده.[1]

## تراجم رجال

**علی بن عبدالله:** دامشهور محدث علی بن عبدالله المدینی رحمه الله دې. د دوی تذکره **کتاب العلم باب الفهم فی العلم** لاندې بیان کړې شوی دی.[2]

**سفیان:** دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی کښې او تفصیلی حالات **کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا....** کښې تیرشوی دی.[3]

**الزهری:** دا مشهور محدث محمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې. ددوی مختصر ذکر بدء الوحی دریم حدیث لاندې راغلی دی.[4]

**سعیدبن مسیب:** دا سعیدبن مسیب بن حزن قرشی مخزومی رحمه الله دې. ددوی حالات **کتاب الإیمان باب من قال: إن الإیمان هو العمل** لاندې تیرشوی دی.[5]

د باب اووم حدیث دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه دې.

## الحدیث السابع

**[۳۰۴۱]- حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَسَّانَ: «اهْجُهُمْ - أَوْ هَاجِهِمْ وَجِبْرِيلُ مَعَكَ»** [۳۸۹۷، ۵۸۰۱][6]

---

[1] صحیح البخاری کتاب الصلاة باب الشعر فی المسجد رقم: ٤٥٣.

[2] کشف الباری: ٣/٢٢٤.

[3] کشف الباری: ١/٢٣٨الحدیث الأول: ٣/١٠٢.

[4] کشف الباری: ١/٣٢٦.

[5] کشف الباری: ٢/١٥٩.

[6] قوله: عن البراء رضی الله عنه: الحدیث رواه البخاری فی المغازی باب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم من الأحزاب رقم: ٤١٢٤-٤١٢٣وفی الأدب باب هجاء المشرکین رقم: ٦١٥٣ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة باب فضائل حسان بن ثابت رضی الله عنه ٦٣٤٦-٦٣٤٥

## تراجم رجال

**حفص بن عمر**: داحفص بن عمر الحوصى رحمه الله دي. (۱)
**شعبه**: دا امير المؤمنين في الحديث شعبه بن حجاج عتكى بصرى دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تير شوى دى. (۲)
**عدى بن ثابت**: دا مشهور تابعى حضرت عدى بن ثابت انصارى كوفى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الايمان باب ماجاء أن الأعمال بالنية والحسبة لاندې راغلې ده. (۳)
**البراء بن عازب**: دا مشهور صحابى رسول حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دي. ددوى تذكره كتاب الايمان باب الصلوة من الايمان لاندې راغلې ده. (۴) ددې حديث مختصر شرح كتاب الادب كښې راغلې ده (۵)
**ترجمة الباب سره مناسبت**: ددې دواړو احاديث ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث كښې «اللهم أيده بروح القدس» معاً حديث براء بن عازب رضي الله عنه ذكركولوسره د روح القدس تعيين اوكړې شو چه دروح القدس نه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام دي. (۶)
**يوه اهم فائده**: دحديث باب دا الفاظ «عن البراء رضى الله عنه قال: قال النبى صلى الله عليه وسلم» نه معلوميږي چه دا حديث دحضرت براء بن عازب مسند دې مگر داسې نه ده. هم دغه حديث امام نسائى رحمه الله هم «يزيد بن زريع عن سعيد» په طريق سره نقل كړې دې. (۷) په دې كښې داخودلى شوى دى چه براء رضي الله عنه د حضرت حسان نه نقل كوى. والله اعلم.
دباب اتم حديث دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي.

## الحديث الثامن

[۳۰۳۲] - حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، ح حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ، أَخْبَرَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنَ هِلَالٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى غُبَارٍ سَاطِعٍ فِي سِكَّةِ بَنِي غَنْمٍ» زَادَ مُوسَى، «مَوْكِبَ جِبْرِيلَ» (۸) [۳۸۹۲]

---

(۱) ددوى دحالاتودپاره اوګورئ، كتاب الوضوء باب ماجاء فى قول الله تعالى ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَوٰةِ﴾.
(۲) كشف البارى: ۶۷۸/۱.
(۳) كشف البارى: ۷۴۵/۲.
(۴) كشف البارى: ۳۷۵/۲.
(۵) كشف البارى كتاب الأدب: ۵۷۲باب هجاء المشركين.
(۶) عمدة القارى: ۱۳۳-۱۳۴/۱۵فتح البارى: ۳۱۰/۶.
(۷) السنن الكبرى للنسائى: ۴۹۳/۳كتاب القضاء، باب شهادة الشاعر رقم: ۶۰۲۵
(۸) قوله: عن أنس بن مالک رضى الله عنه: الحديث، انفرد به البخارى وأخرجه أيضاً فى المغازى باب مرجع النبى صلى الله عليه وسلم من الأحزاب.... رقم: ۴۱۱۸انظر تحفة الأشراف: ۲۱۵/۱رقم:۸۲۱

**ترجمه:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه د بنوغنم په کوڅوکښې راوچتیدونکې دوړې لکه چه اوس هم وینم. موسی په خپل روایت کښې "موکب جبریل" الفاظ زیاتی بیان کړی دی.

## تراجم رجال

**اسحاق:** دا اسحاق بن ابراهیم بن مخلد بن ابراهیم ابن راهویه مروزی رحمه الله دې.
ددوی تذکره **کتاب العلم باب فضل من علم وعلم** لاندې تیره شوې ده.(١)

**وهب بن جریر:** دا وهب بن جریر بن حازم رحمه الله دې.(٢)

**ابی:** د اب نه مراد جریر بن حازم رحمه الله دې.(٣)

**حمیدبن هلال:** داحمیدبن هلال بن هبیره عدوی بصری رحمه الله دې.(٤)

**انس بن مالک:** دا مشهور صحابی خادم رسول حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې. ددوی تذکره **کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه** په ذیل کښې راغلې ده.(٥)

**دمختلف کلماتو وضاحت: سکة:** د سین کسره او کاف مشدده سره کوڅې ته وائی. دمغازی په روایت کښې (٦) د سکة په ځائی زقاق الفاظ دی چه د زقة جمع ده ددې معنی هم کوڅه ده.

**غبار ساطع:** اوچت شوې یا الوتلې دوړې. د بنوغنم نه د خزرج شاخ بنوغنم – بفتح الغین وسکون النون – بن مالك بن نجار مراد دې. دحضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه تعلق هم دې قبیلې سره وو.(٧) علامه کرمانی رحمه الله دلته داوئیلی دی چه د بنوغنم نه مراد د بنو تغلب یوشاخ دې خو په دې کښې دهغه نه تسامح شوې دې ځکه چه د کوم وخت په حدیث کښې خبره کیږی په هغه زمانه کښې دا خلق په مدینه منوره کښې نه وو.(٨)

**موکب جبریل:** دحضرت جبرائیل علیه السلام شاهانه سورلی.(٩)

**زاد موسی: موکب جبریل:** دموسی نه ابن اسماعیل تبوذکی رحمه الله مراد دې.

**دمذکوره تعلیق مقصد:** دامام بخاری رحمه الله د دې عبارت نه مراد دادې چه هم دغه حدیث په مذکوره سند سره جریر بن حازم رحمه الله نه موسی بن اسماعیل رحمه الله هم روایت کوی. موسی چه کله روایت کوی نو په متن کښې موکب جبرایل الفاظ زیاتوالې هم ذکر کوی.(١٠)

---

(١) کشف الباری: ٤٢٨/٣.
(٢) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من.....
(٣) د دوی دحالاتو دپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب الخوخة والممر.....
(٤) دوی دحالاتو دپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب یرد المصلی.....
(٥) کشف الباری: ٤/٢.
(٦) صحیح البخاری کتاب المغازی باب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم..... رقم: ٤١١٨.
(٧) فتح الباری: ٣١٠/٦عمدة القاری: ١٣٤/١٥.
(٨) حواله جات بالا وشرح الکرمانی: ١٧-١٣/٠.
(٩) فیض الباری: ١٠٠/٤ إرشادالساری: ٢٦٩/٥عمدة القاری: ١٣٤/١٥.
(١٠) عمدة القاری: ١٣٤/١٥فتح الباری: ٣١٠/٦.

**دمذکوره تعليق تخريج:** دموسی بن اسماعيل رحمه الله ذکرشوي پورتني تعليق حضرت مصنف رحمه الله مغازي کښې موصولاً ذکرکړې دې.[1]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره مناسبت په دې معنی باندې دې چه په حديث موصول کښې د دوږو الوزولو وجه ذکرنه وه. تعليق موسی ذکرکولوسره نې ددې وجه بيان کړه چه د جبرائيل عليه السلام د شاهانه سورلئی تګ سره دوږې الوتلې چنانچه د فرښتې ذکر او اثبات دې.[2]

**تنبيه:** دحديث باب دوه سندونه دی تحويل هم دې. د اسحاق نه مراد ابن راهويه رحمه الله دې. ابن السکن هم دغه شان بيان کړې دې په کوم چه کلاباذی رحمه الله جزم کړې دې. بل اسماعيلی رحمه الله او ابونعيم رحمه الله هم ددې تصريح کړې ده چه ابن راهويه رحمه الله مراد دې.[3] دحديث باقی شرح مغازي کښې راغلې ده.[4]

د باب نهم حديث د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث التاسع

[۳۰۴۳] - حَدَّثَنَا فَرْوَةُ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ الحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يَأْتِيكَ الوَحْيُ؟ قَالَ: «كُلُّ ذَاكَ يَأْتِينِي المَلَكُ أَحْيَانًا فِي مِثْلِ صَلْصَلَةِ الجَرَسِ، فَيَفْصِمُ عَنِّي، وَقَدْ وَعَيْتُ مَا قَالَ، وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ، وَيَتَمَثَّلُ لِي المَلَكُ أَحْيَانًا رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي، فَأَعِي مَا يَقُولُ»[5] [ر ۲٦۸٦]

## ترجم رجال

**فروة:** دا فروه بن ابی مغراء کندی کوفي رحمه الله دې.[6]

**علی بن مسهر:** دا علی بن مسهر قرشی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی تذکره کتاب الحيض باب مباشرة الحائض کښې راغلې ده.[7]

**هشام:** دا هشام بن عروه بن زبير بن عوام اسدی رحمه الله دې.

---

[1] صحيح البخاري كتاب المغازي باب مرجع النبي صلى الله عليه وسلم ...... رقم: ٤١١٨ فتح الباري: ٣١٠/٦ وعمدة القاري: ١٣٤/١٥ والتوضيح: ٨٦/١٩ وإرشاد الساري: ٢٦٩/٥.

[2] عمدة القاري: ١٣٤/١٥.

[3] فتح الباري: ٣١٠/٦ عمدة القاري: ١٣٤/١٥ والتوضيح: ٨٦/١٩

[4] كشف الباري: كتاب المغازي: ٢٩٩.

[5] قوله: عائشة رضي الله عنها: الحديث، مرتخريجه انظر كشف الباري بدء الوحي: ٢٨٩/١.

[6] ددوی د حالاتو کتلو دپاره اوګورئی كتاب الجنائز باب ماجاء فی قبر النبی صلی الله عليه وسلم.

[7] كشف الباري: كتاب الحيض: ٢٤٨.

**عروه:** دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحى دويم حديث كښې او اجمالى په كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوې ده.[1]

**عائشة رضي الله عنها:** دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې راغلى دى[2] دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت شوې دا مشهور حديث په شروع د كتاب بدء الوحى كښې تير شوې دې.[3]

**د ترجمة الباب مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت لفظ الملك كښې دې چه دوه ځل په حديث كښې راغلې دې دكوم معنى چه فرښتې دې.[4]

د باب لسم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث العاشر

[٣٠٣٣]-حَدَّثَنَا آدَمُ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: «مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، دَعَتْهُ خَزَنَةُ الجَنَّةِ، أَيْ فُلْ هَلُمَّ» فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: ذَاكَ الَّذِي لاَ تَوَى عَلَيْهِ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ»[5] [ر ٢٦٨٦]

## تراجم رجال

**ادم:** دا ابوالحسن آدم بن ابى اياس عسقلاني رحمه الله دې. ددوى مختصر تذكره كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده كښې راغلې ده.[6]

**شيبان:** دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن نحوى رحمه الله دې.

**يحيى بن ابى كثير:** دا يحيى بن ابى كثير طائى يمانى رحمه الله دې. ددې دواړو بزرګانو تفصيلى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې راغلې ده.

**ابوسلمه بن عبدالرحمن:** دا مشهور تابعى حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنى رحمه الله دې. ددوى مفصل حالات كتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابا من الايمان كښې راغلى دى.[7]

**ابوهريرة:** دمشهور صحابى ابوهريره رضي الله عنه حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان لاندې تيرشوى دى.[8]

---

[1] كشف البارى: ١/٢٩١، ٢/٤٣٦-٤٣٢.

[2] كشف البارى: ١/٢٩١.

[3] صحيح البخارى حديث نمبر ٢ كشف البارى: ١/٢٩٥/٣٢١.

[4] عمدة القارى: ١٥/١٣٤.

[5] قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث مرتخريجه كتاب الصوم باب الريان للصائمين.

[6] كشف البارى: ١/٦٧٨.

[7] كشف البارى: ٢/٣٢٣.

[8] كشف البارى: ١/٦٥٩.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دا حديث كتاب الجهاد كښې تيرشوې دې [1]، دلته دا دوباره ذكر كولومقصد ددې دا الفاظ دي: «دعته خزنة الجنة» د خزنة نه مراد فرښتې دی [2] د باب يولسم حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث الحادي عشر

[٣٠٣٥] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهَا: «يَا عَائِشَةُ هَذَا جِبْرِيلُ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلَامَ»، فَقَالَتْ: وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، تَرَى مَا لَا أَرَى، تُرِيدُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [3] [٣٥٥٧، ٥٨٤٨، ٥٨٩٥، ٥٨٩٨]

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا عبدالله بن محمدبن عبدالله جعفی رحمه الله دي. ددوی حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوی دی. [4]

**هشام:** دا هشام بن يوسف صنعانی قاضی يمن رحمه الله دي. د دوی تفصيلی تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأسها.... په ضمن كښې راغلې ده. [5]

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدی بصری رحمه الله دي. ددوی تذكره بدء الوحي اوكتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده. [6]

**الزهري:** دامحمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دي. ددوی مختصر تذكره بدء الوحی په دريم حديث كښې راغلې ده. [7]

---

[1] كشف الباري: كتاب الجهاد باب فضل النفقة فى سبيل الله: ٣١٥-٣١٢.

[2] فتح الباري: ٣١٠/٦عمدة القاري:١٣٥/١٥.

[3] قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث، أخرجه البخاري، فى فضائل الصحابة باب فضل عائشة رقم: ٣٧٦٨وفى الأدب باب من دعا صاحبه فنقص من اسمه حرفا رقم: ٦٢٠١ وفى الاستيذان باب تسليم الرجال على النساء، والنساء على الرجال رقم: ٦٢٤٩ وباب إذا قال: فلان يقرأ عليک السلام رقم: ٥٢٣٢ومسلم رقم: ٦٢٦٢-٦٢٥٩فى فضائل الصحابة باب فى فضل عائشة رضى الله عنها، وأبوداؤد فى الأدب باب فى الرجل يقرأ عليک السلام رقم:٥٢٣٢والترمذى فى المناقب باب مناقب عائشة رضى الله عنها رقم: ٣٨٧٦والنسائى فى عشرة النساء باب حب الرجل بعض نسائه أكثر من بعض رقم: ٣٩٥٣.

[4] كشف الباري: ٦٥٧/١

[5] كشف البارى كتاب الحيض: ٢٠٢.

[6] كشف الباري: ٤٦٥/١، ٣٢١/٤.

[7] كشف الباري: ٣٢٦/١.

**ابوسلمه بن عبدالرحمن:** دا مشهور تابعي حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدني رحمه الله دي.
د دوی مفصل حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان كښې راغلي دي.[1]
**عائشة** رضي الله عنها: د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحي په دويم حديث كښې راغلي دي.[2]
**ترجمة الباب سره مطابقت:** په دې حديث كښې چونكه د حضرت جبرائيل عليه السلام ذكر دې هذا جبريل.... چه هغه حضرت عائشه رضي الله عنها ته سلام عرض كړې وو. په دې وجه امام بخاري رحمه الله دا د ذكر ملائكه لاندې ذكر كړې دې.[3] د دې حديث شرح په مختلف مقاماتو كښې راغلې ده.[4]
د باب دولسم حديث د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې.

## الحديث الثاني عشر

٣٠٤٦-حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ، قَالَ: ح حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عُمَرَ بْنِ ذَرٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجِبْرِيلَ: «أَلاَ تَزُورُنَا أَكْثَرَ مِمَّا تَزُورُنَا؟»، قَالَ: فَنَزَلَتْ: {وَمَا نَتَنَزَّلُ [ص:١١٣] إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا} [5] الآيَةَ[6] [٤٤٥٤، ٧٠١٧]

## تراجم رجال

**ابونعيم:** دا ابونعيم فضل بن دكين تيمي رحمه الله دې. د دوی تفصيلي تذكره كتاب الإيمان باب فضل من استبرأ لدينه لاندې تيره شوې ده.[7]
**عمر بن ذر:** دا مشهور امام فقيه محدث عابد وزاهد عمر بن ذر بن عبدالله بن زراره همداني مرهبي كوفي رحمه الله دې.[8]
دې د خپل پلار ذر بن عبدالله نه علاوه سعيد بن جبير، ابووائل شقيق بن سلمه، يزيد بن اميه، مجاهد بن جهر، عمر بن عبدالعزيز، يحيى بن جعفر، شهيب ابورصافه باهلي، عطاء بن ابى رباح او معاذه عدويه رحمهم الله وغيره نه حديث روايت كوي.

---

[1] كشف البارى: ۳۲۳/۲.
[2] كشف البارى: ۲۹۱/۱.
[3] عمدة القارى: ۱۳۵/۱۵.
[4] كشف البارى كتاب الأدب: ۶۱۹-۶۱۸ كتاب الاستئذان: ۷۲-۷۷.
[5] مريم: ۶٤
[6] قوله: عن ابن عباس رضي الله عنه: الحديث، أخرجه البخاري في التفسير باب ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ رقم: ٤٧٣١ وفي التوحيد باب قوله الله تعالى ﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ﴾ رقم: ٧٤٥٥ والترمذي في التفسير باب ومن سورة مريم رقم: ٣١٥٨
[7] كشف البارى: ۶۶۹/۲.
[8] تهذيب الكمال: ۳۳٤/۲۱ سير أعلام النبلاء: ۳۸۵/۶ تهذيب التهذيب: ٤٤٤/۷.

ددوى نه د حديث روايت كونكوكښې ابان بن تغلب، امام اعظم ابوحنيفه (وهو أقرانه) ابن عيينه، يعلى بن عبيد، يونس بن بكير، وكيع، عبدالله بن داؤد خريبى عبدالله بن مبارك، اسحاق بن يوسف ازرق، ابونعيم فضل بن دكين، خلاد بن يحيى اوابوعاصم ضحاك بن مخلد رحمهم الله وغيره داسې جليل القدر علماء اومشائخ شامل دى.[1]

امام بخاري رحمه الله د على بن المدينى رحمه الله نه نقل كړى دى چه دعمربن ذر د مرويات ټول شمير تقريباً ۳۰ دى.[2]

د يحيى بن سعيد قطان رحمه الله نمسى احمدبن محمد رحمه الله فرمائى: **«قال جدي يحيى بن سعيد: عمربن ذر ثقة فى الحديث ليس ينبغى أن يترك حديثه لرأي أخطأفيه»**[3].

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى ثقة.[4] امام نسائى رحمه الله اوامام دارقطنى رحمه الله هم دهغوى توثيق كړې دې[5] امام عجلى رحمه الله فرمائى **«كان ثقة بليغا، وكان يري الإرجاء وكان ليس القول فيه»**[6] دامام ابوحاتم رحمه الله نه داره قسمه اقوال نقل دى. په يوكښې هغه ناقابل احتجاج او مرجئه ګرځولې دې خو يوقول دادې: **«كان رجلا صالحا، محله الصدق»**[7] امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى: **«كان رأسافى الإرجاء»**[8] امام يعقوب بن سفيان فسوى رحمه الله فرمائى: **«كوفي، ثقة، مرجئ»**[9] امام خراش رحمه الله فرمائى: **«كوفي، صدوق، من خيار الناس، وكان مرجئا»**[10] امام ابن سعد رحمه الله فرمائى: **«كان ثقة إن شاء الله، كثير الحديث»**[11] امام ابن حبان رحمه الله اوامام ابن شاهين رحمه الله دواړو دهغوى ذكر خپل كتاب الثقات كښې كړې دې.[12]

د عمر بن ذر رحمه الله باره كښې ائمه جرح والتعديل د پورته ذكر شوو اقوالو په رڼا كښې دا خبره معلومه شوه چه هغه ثقه وو خو په هغوى باندې د ارجاء الزام وو چه د مرجئه نه وو اود اهل بدعت نه وو بلكه په قول د ابوداؤد رحمه الله دهغوى په مشرانوكښې وو. ابن سعد په طبقات كښې ليكلى دى چه دعمر بن ذر رحمه الله د مرجئ كيدو وجهې نه امام سفيان ثورى رحمه الله او امام حسن بن صالح بن حئى دهغه په جنازه كښې نه وو شريك شوې.[13] اوس دا داسې الزام اوجرح ده چه د هرقسم راوى د مجروح او متروك

---

[1] دشيوخ اوتلامذه دتفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۳۳۴/۶رقم الترجمه: ۴۲۳۰.
[2] تهذيب الكمال: ۳۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء: ۳۸۶/۶تهذيب التهذيب: ۴۴۴/۷.
[3] تهذيب الكمال: ۳۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء: ۳۸۶/۶تهذيب التهذيب: ۴۴۴/۷والجرح والتعديل: ۶رقم الترجمة: ۵۶۵.
[4] تهذيب الكمال: ۳۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء: ۳۸۶/۶تهذيب التهذيب: ۴۴۴/۷ وتاريخ الثورى: ۴۲۸/۲.
[5] تهذيب الكمال: ۳۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء: ۳۸۶/۶تهذيب التهذيب: ۴۴۴/۷.
[6] حواله جات بالا.
[7] حواله بالا والجرح والتعديل: ۶رقم: ۵۶۵.
[8] حواله جات بالا.
[9] تهذيب الكمال: ۳۳۵/۲۱سيرأعلام النبلاء: ۳۸۶/۶تهذيب التهذيب: ۴۴۵/۷.
[10] حواله جات بالا.
[11] طبقات ابن سعد: ۳۶۲/۶.
[12] الثقات لابن حبان: ۱۶۸/۷والثقات لابن شاهين رقم الترجمة: ۷۰۸.
[13] الطبقات الكبرى لابن سعد: ۳۶۲/۳.

كولو د پاره كافي ده. ددې نه باوجود اكثر ائمه د عمر بن ذر رحمه الله توثيق كړې دې او د هغه مرويات ئې صحيح ګرځولې دى. داسې ولې؟

ددې جواب دا دې چه كه چرته راوى مبتدع داعى الى بدعة وى او د هغه روايت نه د دغه مبتدع تائيد كيږى نو دهغه د روايت نه احتجاج صحيح نه دې او كه چرې داسې راوى ثقه او ضابط وى او د دغه روايت نه دهغه د بدعت تائيد نه كيږى نو دهغه روايت به قابل قبول وى. دحضرت عمر بن ذر رحمه الله ثقاهت او ضبط بل دهغه تقوى او تفقه متفق عليه او مسلم ده. په دې وجه د هغه روايات اخستلو كښې هيڅ حرج نشته دې.[1] لهذا ددوى باره كښې معتدل ترين رائې هم دغه ده كومه چه د يحيى بن سعيد رحمه الله ده. چه «ليس ينبغي أن يترك حديثه لرأي أخطأ فيه» چه د يوې غلطې رائې په اختيارولو سره د هغه مرويات ترك كول مناسبت او صحيح نه دى.

دغه شان على بن المدينى رحمه الله فرمائى چه ما حضرت يحيى بن سعيد قطان رحمه الله ته اووئيل چه عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله وائى چه زه به د هر هغه محدث نه روايت نه اخلم چه د اهل بدعت لونى او مشر كس وى. نو حضرت سعيد مسكې شو او وئې فرمائيل چه ته به بيا قتاده رحمه الله سره څه كوې؟ د عمر بن ذر رحمه الله به څه كوې؟ او د ابن ابى داؤد رحمه الله باره كښې دې څه خيال دې؟ دغه شان حضرت يحيى رحمه الله د يو جماعت نومونه اوشميرل كوم چه زه نه ذكر كوم. بيا حضرت يحيى رحمه الله اوفرمائيل چه كه چرې عبدالرحمن رحمه الله ددې قسم محدثينو نه روايت نه كوى نو ډير څه به پريږدى او هغه به د ډيرو زياتو صحيح احاديثو نه محروم پاتې شى.[2] دهغه د وفات په تاريخ كښې ډير اقوال دى. چنانچه د قعنب نه ۱۵۰ ابونعيم نه ۱۵۲ او ۱۵۵ محمد بن عبدالله اسدى نه ۱۵۳ او ابوعبيد قاسم بن سلام رحمهم الله نه ۱۵۷ هجرى اقوال نقل دى خو راجح قول د ۱۵۶ هجرى دى. دا قول هم د ابونعيم رحمه الله نه نقل دې. دهغوى نه دا قول امام احمد رحمه الله امام بخارى رحمه الله امام ترمذى رحمه الله عمر بن على عثمان بن ابى شيبه رحمه الله او يعقوب بن سفيان فسوى رحمه الله وغيره نقل كړې دې. حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «فهذا أصح»[3] عمر بن ذر رحمه الله د ائمه خمسه راوى دې. د امام مسلم رحمه الله نه علاوه ټولو حضراتو د هغوى مرويات قبول كړى دى. خو ابن ماجه رحمه الله د سنن په ځائى ځپل تفسير كښې دهغه مرويات درج كړى دى.[4]

**يحيى بن جعفر**: دا ابوزكرياء يحيى بن جعفر ازدى بخارى رحمه الله دې.[5]

**وكيع**: دا مشهور امام وكيع بن جراح بن مليح كوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده.[6]

**عمر بن ذر**: ددوى تفصيلى تذكره اوس پورته تيره شوه.

---

[1] كشف البارى كتاب العلم: ۳۰۵/۳-۳۰۴ وهدى السارى: ۳۸۵.

[2] تهذيب الكمال: ۳۳۷/۲۱-۳۳۶.

[3] سير أعلام النبلاء: ۳۸۸/۶ تهذيب الكمال: ۳۳۹/۲۱ تاريخ البخارى الصغير: ۱۲۲/۲ والمعرفة والتاريخ للفسوى: ۱۴۲/۱ وطبقات ابن سعد: ۳۶۲/۶ ووفيات الأعيان: ۴۴۳/۳.

[4] سير أعلام النبلاء: ۳۸۵/۶ تهذيب الكمال: ۳۴۰/۲۱.

[5] د دوى د حالاتو د پاره اوګورئى كتاب صلاة الخوف باب الصلاة عند مناهضة.....

[6] كشف البارى: ۲۱۹/۴.

ابيه: دا ذر بن عبدالله همدانى رحمه الله دې. د دوى حالات كتاب التيمم باب المتيمم هل ينفخ فيهما؟ لاندې تيرشوى دى.[1]

سعيدبن جبير: دا مشهور تابعى بزرگ حضرت سعيد بن جبير كوفى رحمه الله دې. ددوى مختصر ذكر بدء الوحى كښې او مفصل تذكره كتاب العلم باب السمر فى العلم په ضمن كښې راغلى.[2]

ابن عباس: دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. ددوى اجمالى ذكر بدء الوحى او تفصيلى ذكر كتاب الايمان باب كفران العشير، وكفر..... كښې تيرشوې دې.[3]

داحديث هم امام بخارى رحمه الله په دوو سندونوسره نقل كړې دې او امام وكيع بن جراح رحمه الله د روايت الفاظ ئى ذكر كړى دى.

مونږ په خپله مرضئى نه راځو: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه يو ځل رسول الله ﷺ حضرت جبرائيل عليه السلام ته اووئيل چه ته مونږ له زر زر ولې نه راځې دې دپاره چه ملاقاتونه زيات وى؟ په دې باندې آيت مبارك ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾[4].

نازل شو چه مونږ دالله تعالى په حكم سره نازليږو او تاسو عليه السلام زمونږ په ناوخته راتلو سره دا خيال اونه كړې چه ستاسو پروردګار تاسو هير كړى يئى. الله تعالى د هيرې نسيان اوغفلت نه منزه او پاك دې دهغه علم اودهغه قدرت ټول كائناتوباندې محيط دې. مونږ دهغه په حكم سره نازليږو په خپله مرضئى نه راځو.[5]

كلمه ألالام مخففه سره عرض، تحضيض اوتمنى دپاره وى اومراد ترې نه اظهار مودت او الفت دې. ﴿نَتَنَزَّلُ﴾ تنزل نه مشتق دې النزول على مهلة يعنى په مزه مزه راكوزيدل خو بيا هم بعض وخت مطلقاً د نزول دپاره هم راځى.[6]

دباب د ديارلسم حديث راوى هم حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دى.

## الحديث الثالث عشر

٣٠٣٧- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، قَالَ: حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «أَقْرَأَنِي جِبْرِيلُ عَلَى حَرْفٍ، فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيدُهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ»[7] [٤٧٠٥]

---

[1] كشف البارى: كتاب التيمم:١٩٦.

[2] كشف البارى: ٤٣٥/١ الحديث الرابع: ٤١٨/٤.

[3] كشف البارى: ٤٣٥/١، ٢٠٥/٢.

[4] سورت مريم: ٦٤

[5] معارف القرآن للكاندهلوى بتصرف: ٨١/٥ عمدة القارى: ١٣٦/١٥ أرشادالسارى: ٢٧١/٥.

[6] عمدة القارى: ١٣٦/١٥ أرشادالسارى: ٣٧١/٥ والكوثر الجارى: ١٧٦/٦.

[7] قوله: عن ابن عباس رضي الله عنهما الحديث، أخرجه البخارى فى فضائل القرآن باب أنزل القرآن على سبعة أحرف، رقم: ٤٩٩١ ومسلم فى الصلاة باب بيان أن القرآن نزل على سبعة أحرف رقم: ١٩٠٣-١٩٠٢.

## تراجم رجال

**اسماعيل**: دا اسماعيل بن ابى اويس مدنى اصبحى رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب من كره أن يعود في الكفر.... كښې تير شوى دى.[1]

**سليمان**: دا سليمان بن بلال تيمى ابومحمد قرشى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيره شوې ده.[2]

**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددې څلورو واړو حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.[3]

**عبيدالله بن عبدالله**: دا عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود هذلى رحمه الله دي. د دوى اجمالى تذكره بدء الوحى او تفصيلى تذكره كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير؟ كښې تيره شوې ده.[4]

**ابن عباس**: دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. ددوى اجمالى ذكر بدء الوحى او تفصيلى ذكر كتاب الايمان باب كفران العشير، وكفر.... كښې تيرشوې دي.[5]

**تنبيه**: داحديث چه د سبعة احرف باره كښې دې تفصيلى شرح سره فضائل القرآن كښې تيرشوې دي.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت**: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما ددې دواړو احاديثو ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې چه په دواړو كښې جليل القدر فرښتې حضرت جبرائيل عليه السلام ذكر دې.[7]
د باب څوارلسم حديث هم د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې.

### الحديث الرابع عشر

٣٠٤٨- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَجْوَدَ النَّاسِ، وَكَانَ أَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ حِينَ يَلْقَاهُ جِبْرِيلُ، وَكَانَ جِبْرِيلُ يَلْقَاهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ، فَيُدَارِسُهُ القُرْآنَ، فَلَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

[1] كشف البارى:٢/١١٣.
[2] كشف البارى: ١/٦٥٨
[3] كشف البارى:١/٣٢٦-٣٢٣.
[4] كشف البارى: ١/٤٦٦الحديث الخامس: ٣/٢٧٩.
[5] كشف البارى: ١/٤٣٥، ٢/٢٠٥.
[6] كشف البارى فضائل القرآن: ٦٠-٥٠
[7] عمدة القارى: ١٥/١٣٦-١٣٥.

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ يَلْقَاهُ جِبْرِيلُ أَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ» وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ.[1] [ر ٦، ٣٤٢٦، ٤٧١٢]

## تراجم رجال

**محمدبن مقاتل**: دا محمدبن مقاتل المروزى الكيسانى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب العلم باب مايذكر في المناولة وكتاب أهل العلم....، لاندې تيره شوې ده.[2]

**عبدالله**: دا مشهور محدث، عبدالله بن مبارك مروزى رحمه الله دي. ددوى حالات بدء الوحى پنځم حديث كښې تيرشوى دى.[3]

**يونس**: دا يونس بن يزيد ايلى قرشى رحمه الله دې. ددوى اجمالى تذكره بدء الوحى اومفصل كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه....، لاندې تيره شوې ده.[4]

د سند د نور رواة دپاره سابقه سند اوګورئى. دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا حديث بدء الوحى كښې تيرشوې دې. هلته په دې باندې تفصيلى خبره شوې ده.[5]

**وعن عبدالله قال: حدثنا معمر بهذا الإسناد نحوه:**

**د عبارت وضاحت**: د عبدالله نه مراد ابن المبارك مروزى حنظلى رحمه الله دې. هذا الإسناد نه مراد پورتنئ سند دې چه دا روايت معمر هم سابقه سندسره موصول دې. لکه حضرت عبدالله ابن مبارك رحمه الله په دې كښې دخپلو دواړو شيوخو يونس رحمه الله او معمر رحمه الله روايات جدا جدا بيانول غواړى.

حافظ ابن حجر رحمه الله تغليق كښې فرمائى چه حديث د معمر په حديث د يونس باندې معطوف دې. دا دواړه حديث په يوځائى حسن بن سفيان رحمه الله په خپل روايت كښې «حبان بن موسى، عن عبدالله، عن معمرو يونس معا» په طريق زهرى نه موصولاً نقل كړې دې. ابونعيم رحمه الله هم په مستخرج كښې ددې تخريج كړې دې.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت**: دحديث ترجمة الباب سره مطابقت لفظ جبريل كښې دې.[7]

**وروى أبوهريرة وفاطمة رضى الله عنهما، عن النبى صلى الله عليه وسلم: أن جبريل كان يعارضه القرآن:**

**ددواړو تعليقات تخريج**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه مؤلف رحمه الله فضائل القرآن كښې موصولاً ذكر كړې دې.[8] اود حضرت فاطمه رضي الله عنها روايت كتاب المناقب كښې موصولاً ذكر كړې دې.[9]

---

[1]) قوله: عن ابن عباس رضي الله عنهما الحديث، مرتخريجه كشف البارى: الوحى: ۴۶۱/۱.

[2]) كشف البارى: ۲۰۶/۳.

[3]) كشف البارى: ۴۶۲/۱.

[4]) كشف البارى: ۴۶۳/۱، ۲۸۲/۳.

[5]) كشف البارى: ۴۷۴/۱-۴۶۶.

[6]) فتح البارى: ۳۱۱/۶عمدة القارى: ۱۳۶/۱۵تغليق التعليق: ۴۹۶/۳.

[7]) عمدة القارى: ۱۳۶/۱۵.

[8]) صحيح البخارى كتاب فضائل القرآن باب كان جبريل يعرض...... رقم: ۴۹۹۸.

[9]) صحيح البخارى كتاب المناقب باب علامات النبوة فى الاسلام رقم: ۳۶۲۴-۳۶۲۳.

**ددوارو تعليقاتو ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې دواړو تعليقاتو ترجمه سره مناسبت بالكل واضح دې. دحضرت جبرائيل عليه السلام ذكر په دواړو كښې موجود دې چه رئيس الملائك دې.
د باب پنځلسم حديث دحضرت ابومسعود بدرى رضى الله عنه دې

## الحديث الخامس عشر

٣٠٣٩- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ أَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا، فَقَالَ لَهُ عُرْوَةُ: أَمَا إِنَّ جِبْرِيلَ قَدْ نَزَلَ فَصَلَّى أَمَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ عُمَرُ اعْلَمْ مَا تَقُولُ يَا عُرْوَةُ قَالَ: سَمِعْتُ بَشِيرَ بْنَ أَبِي مَسْعُودٍ يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «نَزَلَ جِبْرِيلُ فَأَمَّنِي، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ» يَحْسُبُ بِأَصَابِعِهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ [1] [ر ٤٩٩]

## تراجم رجال

**قتيبه بن سعيد:** دا ابوالرجاء قتيبه بن سعيد بن جميل ثقفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب إفشاء السلام من الإيمان لاندې راغلى دى. [2]
**الليث:** دا مشهور امام ليث بن سعد فهمى رحمه الله دې.
**ابن شهاب:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده. [3]
**عمر بن عبدالعزيز:** دا مشهوراموى خليفه حضرت عمر بن عبدالعزيز بن مروان رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الاسلام على خمس.........، په ضمن كښې راغلې ده. [4]
**عروه:** دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحى دويم حديث كښې او اجمالى په كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوې ده. [5]
**بشير بن ابى مسعود:** دا دحضرت ابومسعود رضى الله عنه خوئى بشير بن ابى مسعود رحمه الله دې. [6]
**ابومسعود:** دامشهور بدرى صحابى حضرت ابومسعود عقبه بن عامر بدرى انصارى رضى الله عنه دې. ددوى مفصل حالات كتاب الايمان باب ما جاء أن الأعمال بالنية......، په ذيل كښې بيان كړې شوى دى. [1]

---

[1]) قوله: سمعت أبا مسعود البدرى رضى الله عنه: الحديث، مر تخريجه كتاب مواقيت الصلاة باب مواقيت الصلاة وفضلها.
[2]) كشف البارى: ١٨٩/٢.
[3]) كشف البارى: ٣٢٦/١-٣٢٣ دامام زهرى رحمه الله د پاره نور اوګورئى كشف البارى كتاب الغسل: ١٩٤.
[4]) كشف البارى: ٦٢٣/١
[5]) كشف البارى: ٢٩١/١، ٤٣٦/٢-٤٣٢.
[6]) ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب مواقيت الصلاة باب قوله تعالى: ﴿إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَـٰبًا مَّوْقُوتًا﴾.

**ترجمة الباب سره مناسبت**: دا حديث د مواقيت الصلاة بالکل په شروع کښې تيرشوې دې.[2] دلته د ذکر کولو مقصد صرف دادې چه په دې کښې دحضرت جبرائيل علیه السلام ذکر دې. «**أما إن جبريل قد نزل**»[3] د باب شپاړلسم حديث دحضرت ابوذر رضی الله عنه دې.

# الحديث السادس وعشر

[۳۰۵۰]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قَالَ لِي جِبْرِيلُ مَنْ مَاتَ مِنْ أُمَّتِكَ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ، أَوْلَمْ يَدْخُلِ النَّارَ»، قَالَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ: «وَإِنْ»([4]).-[ر ۲۲۵۸]

## تراجم رجال

**محمدبن بشار**: دا محمدبن بشار بن عثمان بندار عبدی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب ما کان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم..... لاندې تيره شوې ده.[5]

**ابن ابی عدی**: دا محمدبن ابراهيم بن ابی عدی اسلمی رحمه الله دې.[6]

**شعبه**: دا اميرالمؤمنين فی الحديث شعبه بن حجاج عتکی بصری رحمه الله دې. ددوی حالات تفصلاً کتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې ذکر کړې شوې دی.[7]

**حبيب بن ابی ثابت**: دا حبيب بن ابی ثابت اسدی رحمه الله دې.[8]

**زيد بن وهب**: دا زيد بن وهب جهنی همدانی رحمه الله دې.[9]

**ابی ذر**: دا مشهور صحابی رسول حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه دې. ددوی تفصلی تذکره کتاب الإيمان باب المعاصی من أمر الجاهلية په ضمن کښې راغلې ده.[10]

---

[1]) کشف الباري: ۷٤۸/۲.

[2]) صحيح البخاری کتاب مواقيت الصلاة باب مواقيت الصلاة رقم: ۵۲۱.

[3]) عمدة القاري: ۱۳۷/۱۵.

[4]) قوله عن أبی ذر رضی الله عنه: الحديث، مرتخريجه کتاب الجنائز باب فی الجنائز ومن کان آخر کلامه : لا أله ألا الله

[5]) کشف الباري: ۲۵۸/۳.

[6]) ددوی دحالاتودپاره اوګورئی کتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد.....

[7]) کشف الباري: ٦۷۸/۱.

[8]) ددوی دحالاتودپاره اوګورئی کتاب الصوم باب صوم داؤد.

[9]) ددوی دحالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب الإبراد بالظهر....

[10]) کشف الباري: ۲۳۸/۲.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** دا حديث كتاب الاستقراض كښې تيرشوې دې. [1] ددې حديث څه شرح كتاب الاستئذان [2] كښې راغلې ده. دلته د باب په مناسبت سره دوباره ذكركړې شوې دې چه په دې كښې دحضرت جبرائيل عليه السلام ذكر دې. ((قال لى جبريل)) [3]

دباب اوولسم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث السابع عشر

٣٠٥١- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَلَائِكَةُ يَتَعَاقَبُونَ مَلَائِكَةٌ بِاللَّيْلِ، وَمَلَائِكَةٌ بِالنَّهَارِ، وَيَجْتَمِعُونَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، وَصَلَاةِ الْعَصْرِ، ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ الَّذِينَ بَاتُوا فِيكُمْ، فَيَسْأَلُهُمْ وَهُوَ أَعْلَمُ، فَيَقُولُ: كَيْفَ تَرَكْتُمْ عِبَادِي، فَيَقُولُونَ: تَرَكْنَاهُمْ يُصَلُّونَ، وَأَتَيْنَاهُمْ يُصَلُّونَ [4]-[ر ٥٣٠]

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل كوى چه حضورپاك فرمائيلى دى چه فرښتې وار په وار راكوزيږى. څه فرښتې د شپې دى او څه فرښتې د ورځې دى. هغه ټولې سحر او مازيګر جمع كيږى. بيا هغه فرښتې آسمانونو ته الله تعالى له ورځى. كومو چه تاسو سره شپه تيره كړې وى نو الله تعالى دهغوى نه تپوس كوى حالانكه هغه زيات پيژندونكې دې فرمائى: تاسو زما بنديګان په كوم حال كښې پريخودى راغلى يئى؟ فرښتې وائى چه مونږ هغوى په مونځ كولوسره پريخودى دى مونږ چه كوم وخت تلى وو نوبيا هم هغوى په مانځه كښې وو.

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان الحكم بن نافع مصرى رحمه الله دې.

**شعيب:** دا شعيب بن ابى حمزه قرشى اموى رحمه الله دې. ددې دواړو مختصر حالات بدء الوحى الحديث السادس كښې راغلى دى. [5]

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا مشهومحدث عبدالرحمن بن هرمز قرشى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان كښې راغلې ده. [6]

---

[1] صحيح البخارى كتاب الاستقراض باب أداء الدين رقم: ٢٣٨٨.
[2] كشف البارى: ١١٢-١٠٩.
[3] عمدة القارى: ١٥/١٣٧.
[4] قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب مواقيت الصلاة باب فضل صلاة العصر.
[5] كشف البارى: ١/٤٨٠-٤٧٩.
[6] كشف البارى: ٢/١١-١٠.

**ابوهریره** رضی الله عنه: د صحابي رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه حالات کتاب الایمان باب أمور الایمان کښې تیرشوي دي.[1]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** داحدیث کتاب الصلاة کښې تیرشوی دي.[2] چونکه په حدیث کښې د ملائکه ذکر دې په دې وجه امام بخاري رحمه الله دا ددې باب لاندې ذکرکړې دې.[3]

## ۷- باب: إِذَا قَالَ أَحَدُكُمْ: آمِينَ، وَالْمَلَائِكَةُ فِي السَّمَاءِ، فَوَافَقَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.

**د ترجمه مقصد اود نسخ اختلاف:** دا باب دلته داسې واقع شوې دې چه ددې موجودګئي قديم او جديد شراح ټول په کشمکش کښې اچولي دي. چنانچه د لفظ باب دزياتوالي په توجيه کښې دلته مختلف اقوال دي:

① شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله صرف ددې باب دپاره يونوې اصل ذکرکړې دې چه دامام بخاري رحمه الله عادت دې چه بعض وخت لفظ باب د محدث قول "ح" په ځائې استعمالوی. يعني باب دلته دحاء تحويل په توګه استعمال کړې شوې دې.[4] ليکن په پوره الجامع الصحيح کښې ددې بل هيڅ يومثال نه ملاويږي. صرف دلته لفظ باب "ح" په ځائې استعمال کړې دې. لهذا صرف د يوباب د وجې نه دا د امام بخاري رحمه الله عادت ګرځول په ذهن کښې نه راځي.

② علامه سندهي رحمه الله اوحضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله د دواړو رائې ده چه د امام بخاري رحمه الله دا باب مثبت دعوی نه دې بلکه مثبَت دليل دې. يا داسې اووايه مثبت نه بلکه د ترجمه سابق دپاره مثبت. مطلب دا دې چه دا باب يعني دملائکه آمين اود سرو د آمين وئيلو په سلسله کښې چه کوم ټول روايات وارد شوي دي هغه د ملائکه د وجود مثبت دي مګر دلته د آمين اثبات مقصود نه دې بلکه پخپله د ملائکه اثبات مقصود دې.[5]

③ علامه کشميري رحمه الله فرمائي چه دملائکه د ذکر دوران کښې د نوي باب ذکر عجيبه خبره ده کيدې شي چه ددې وجه د يو ې فائده اضافيه طرف ته اشاره کول وي چه فرښتې په دې امر باندې هم مقرر دي چه د مونځ ګذارو په آمين باندې دې آمين وائي.[6]

④ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دلته په ډيرو نسخو کښې «باب إذا قال أحدکم......» الفاظ دي. په کوم سره چه دوه مسئلې پيدا شوې، يو ترجمه بغيرد څه حديث نه بل چه ددې ترجمې لاندې کوم احاديث نقل دي دهغې ترجمې سره څه تعلق نشته دې. په دې وجه دا معامله ډيره پيچيده شوه. د اشکال دپاسه اشکال. خود ابوذر په نسخه کښې لفظ باب ذکردې په کوم سره چه په اشکال کښې څه

---

[1] کشف الباري: ۶۵۹/۱.

[2] صحيح البخاري کتاب الصلاة باب فضل صلاة العصر رقم: ۵۵۵.

[3] عمدة القاري: ۱۳۷/۱۵.

[4] الکنزالمتواري: ۱۴۹/۱۳.

[5] الکنزالمتواري ۱۴۹/۱۳ وحاشية السندي على البخاري: ۴۵۸/۱-۴۵۷ قديمي.

[6] فيض الباري: ۳۱۵/۴.

تخفيف اوشو چه دزيات نه زيات دا اوشو چه «باب إذا قال أحدكم: آمين......» والاحاديث بغير د سند نه ذکر کړې شوې دې. خو که چرته نور وضاحت شوې وې او دا قسم څه الفاظ ذکر کړې شوې وې «وبهذا الإسناد» يا «وبه قال» وغيره نو اشكال به بالكليه ختميدلو.

چنانچه هم دغه طريقه اسماعيلى رحمه الله اختيار کړې ده چه هغوى اول تير شوې حديث «الملائكة يتعاقبون» نقل کړو بيا دا کلمات «وبهذا الإسناد» سره «باب إذا قال أحدكم: آمين......» والاحاديث ذکر کړو اود ابوالزناد نه ئې په دوو طريقو سره نقل کړو. حافظ رحمه الله فرمائى چه دې تفصيل سره دا خبره واضحه شوه چه د آمين والاحاديث اوددې نه پس تقريباً پنځلس حديثونه ټول په ټول د ترجمه ذکر الملائكة حصه ده.[1] لکه چه حافظ رحمه الله د آمين والا مستقل حديث شميرلې دې اود باب لفظ ئې ساقط ګرځولې دې.

د بخارى شريف نور شراح مثلاً علامه عينى رحمه الله حافظ کرمانى رحمه الله حافظ قسطلانى رحمه الله علامه کورانى رحمه الله او حضرت ګنګوهى رحمه الله ټول هم دا اختيار کړى دى چه دلته د لفظ باب حذف اولى دې.

حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى «زيادة الباب ههنا من تصرف النساخ، فإن الأحاديث الموردة بعد ذلك من الباب الأول من غير تفاوت»[2]

يعنى دلته د باب زياتوالى اواضافه د ناسخينو تصرف دې ځکه چه روستو ذکر کړې شوى احاديث هم بغير د څه فرق نه د باب اول حصه دى.

(په مجموعى اعتبار سره) د باب اتلسم حديث د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث الاول

۳۰۵۲- حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، أَنَّ نَافِعًا، حَدَّثَهُ أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَهُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: حَشَوْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِسَادَةً فِيهَا تَمَاثِيلُ كَأَنَّهَا نُمْرُقَةٌ، فَجَاءَ فَقَامَ بَيْنَ الْبَابَيْنِ وَجَعَلَ يَتَغَيَّرُ وَجْهُهُ، فَقُلْتُ: مَا لَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: «مَا بَالُ هَذِهِ الوِسَادَةِ؟»، قَالَتْ: وِسَادَةٌ جَعَلْتُهَا لَكَ لِتَضْطَجِعَ عَلَيْهَا، قَالَ: "أَمَا عَلِمْتِ أَنَّ الْمَلاَئِكَةَ لاَ تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ، وَأَنَّ مَنْ صَنَعَ الصُّورَةَ يُعَذَّبُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُولُ: أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ"[3] [ر ۱۹۹۹]

## تراجم رجال

**محمد:** دا محمد بن سلام بيکندى رحمه الله دې. ددوى تذکره کتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: أنا أعلمكم بالله......، کښې تيره شوې ده.[4]

---

[1] فتح البارى ۳۱۴/۶

[2] الكنز المتوارى: ۱۴۹/۱۳ ولامع الدرارى: ۳۴۷/۷.

[3] قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث، مر تخريجه صحيح البخارى کتاب البيوع باب التجارة فيما يكره لبسه.... رقم: ۲۱۰۵

[4] كشف البارى: ۹۳/۲.

**مخلد**: دا مخلد بن یزید قرشی ابوالحسن دی.[1]

**ابن جریج**: دا مشهور محدث عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج مکی قرشی رحمه الله دی. ددوی تذکره کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها.... لاندې تیره شوې ده.[2]

**اسماعیل بن امیه**: دا اسماعیل بن امیه بن عمرو بن سعید اموی قرشی رحمه الله دی.[3]

**نافع**: دا مشهور تابعی محدث حضرت نافع مولی ابن عمر رحمه الله دی. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب ذکر العلم والفتیا فی المسجد لاندې راغلی دی.[4]

**القاسم بن محمد**: دا مشهور تابعی بزرګ حضرت قاسم بن محمد بن ابی بکر صدیق رحمه الله دی. ددوی تفصیلی حالات کتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب والطیب عند الغسل په ضمن کښې تیرشوی دی.[5]

**عائشه**: د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی[6]

دحضرت عائشه رضی الله عنها ددې حدیث شرح کتاب اللباس کښې دمختلف ابواب لاندې راغلې ده هم هلته د تصویر وغیره باره کښې هم تفصیلی خبره شوې ده.[7] او په کتاب البیوع کښې هم دا حدیث تیر شوې دې.[8]

د باب نورلسم حدیث دحضرت ابوطلحه رضی الله عنه دی.

## الحديث الثاني

۳۰۵۳/۳۰۵۳-حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا طَلْحَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لاَ تَدْخُلُ المَلاَئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ، وَلاَ صُورَةُ تَمَاثِيلَ»[9]

---

[1]) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الأذان باب ماجاء فی النوم.....

[2]) کشف الباری کتاب الحیض: ۲۰۴.

[3]) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئ: کتاب الزکوة باب لاتؤخذ کرائم أموال الناس فی الصدقة.

[4]) کشف الباری: ۶۵۱/۴

[5]) کشف الباری: ۴۳۹.

[6]) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

[7]) کشف الباری:کتاب اللباس: ۳۰۹-۲۹۵.

[8]) صحیح البخاری کتاب البیوع باب التجارة فیما یکره لبسه..... رقم: ۲۱۰۵.

[9]) قوله: سمعت أباطلحة: الحدیث رواه البخاری فی بدء الخلق الحدیث الأتی رقم: ۳۲۲۶فی اللباس باب من کره القعود علی الصور رقم: ۵۹۵۸وباب التصاویر رقم: ۵۹۴۹ وفی المغازی باب شهود الملائکة بدراً رقم: ۴۰۰۲ومسلم رقم: ۵۵۱۹-۵۵۱۴فی اللباس باب تحریم صورة الحیوان، وأبوداؤد رقم: ۴۱۵۵-۴۱۵۳فی اللباس باب فی التصاویر والترمذی رقم: ۲۸۰۴فی الأدب باب ماجاء أن الملائکة لاتدخل بیتا فیه صورة ولا کلب والنسائی، فی الزینة باب التصاویر رقم: ۵۳۵۰-۵۳۴۷وابن ماجه فی اللباس باب الصور فی البیت رقم: ۳۶۹۳.

## تراجم رجال

**ابن مقاتل:** دا محمد بن مقاتل المروزى الكيسانى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب العلم باب مايذكرفى المناولة وكتاب أهل العلم...، لاندې تيره شوې ده.[1]

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك مروزى رحمه الله دي. ددوى حالات بدء الوحى پنځم حديث لاندې تيرشوى دى.[2]

**معمر:** دامعمربن راشد ازدى بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره بدء الوحى اوكتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده.[3]

**الزهرى:** دا محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددوى مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث لاندې راغلې ده.[4]

**عبيدالله بن عبدالله:** دا عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود هذلى رحمه الله دي. ددوى اجمالى تذكره بدء الوحى او تفصيلى تذكره كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير؟ كښې بيان شوې ده.[5]

**ابن عباس رضي الله عنهما:** دامشهور صحابى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. ددوى اجمالى تذكره بدء الوحى اوتفصيلى تذكره كتاب الإيمان باب كفران العشيروكفر....، كښې شوې ده.[6] داحديث هم په كتاب اللباس كښې تيرشوې دې.[7]

دباب شلم حديث هم دحضرت طلحه رضي الله عنه دي.

### الحديث الثالث

٣٠٥٣- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا عَمْرٌو، أَنَّ بُكَيْرَ بْنَ الأَشَجِّ حَدَّثَهُ، أَنَّ بُسْرَ بْنَ سَعِيدٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ الجُهَنِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَدَّثَهُ، وَمَعَ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عُبَيْدُ اللَّهِ الخَوْلاَنِيُّ الَّذِي كَانَ فِي حِجْرِ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدَّثَهُمَا زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ، أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ حَدَّثَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لاَ تَدْخُلُ المَلاَئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ» قَالَ بُسْرٌ: فَمَرِضَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ فَعُدْنَاهُ، فَإِذَا نَحْنُ فِي بَيْتِهِ بِسِتْرٍ فِيهِ تَصَاوِيرُ، فَقُلْتُ

---

[1] كشف البارى: ۲۰۶/۳.
[2] كشف البارى: ۴۶۲/۱.
[3] كشف البارى: ۴۶۵/۱، ۳۲۱/۴.
[4] كشف البارى: ۳۲۶/۱.
[5] كشف البارى: ۴۶۶/۱، ۳۷۹/۳.
[6] كشف البارى: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[7] كشف البارى كتاب اللباس: ۲۹۰-۲۸۷.

لِعُبَيْدِ اللَّهِ الْخَوْلَانِيِّ: أَلَمْ يُحَدِّثْنَا فِي التَّصَاوِيرِ؟ فَقَالَ: إِنَّهُ قَالَ: إِلَّا رَقْمٌ فِي ثَوْبٍ أَلَا سَمِعْتَهُ قُلْتُ لَا، قَالَ: بَلَى قَدْ ذَكَرَهُ[1] [٣١٤٤، ٣٧٨٠، ٥٦٠٥، ٥٦١٣]

## تراجم رجال

**احمد**: دا احمد بن صالح طبری مصری رحمه الله دې.[2]

**ابن وهب**: دا عبدالله بن وهب مسلم مصری رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه.....لاندې تیره شوې ده.[3]

**عمرو**: دا ابوامیه عمروبن الحارث مصری انصاری رحمه الله دې.[4]

**بکیربن الاشج**: دا بکیر بن عبدالله بن اشج رحمه الله دې.[5]

**بسر بن سعید**: دا بسر بن سعید مولی ابن الحضرمی مدنی رحمه الله دې.[6]

**زید بن خالد جهنی**: دا مشهور صحابی حضرت ابوعبدالرحمن زید بن خالد جهنی مدنی رضی الله عنه دې. د دوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب الغضب فی الموعظة والتعلیم کښې تیرشوی دی.[7]

**عبیدالله خولانی**: دا عبیدالله بن اسود خولانی رحمه الله دې.[8]

**ابوطلحه**: دا مشهور انصاری صحابی حضرت ابوطلحه زید بن سهل نجاری رضی الله عنه دې.[9]

دا د تیرشوی حدیث دویم طریق دې. ددې په سند کښې د احمد نه احمدبن صالح رحمه الله مراد دې. لکه څنګه چه ابونعیم رحمه الله په دې باندې جزم کړې دې. حافظ ابن منده رحمه الله فرمائی چه په جامع صحیح کښې په یوځائی کښې هم امام بخاری رحمه الله چرته احمدعن ابن وهب اووائی نوددې نه حتماً ابن صالح مصری رحمه الله مراد وی.[10]

د باب یوویشتم حدیث دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما دې.

---

[1]) قوله: أن أباطلحة حدثه: الحديث مر تخريجه آنفا في الحديث السابق.

[2]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد.

[3]) کشف الباری: ٢٧٧/٣.

[4]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین.

[5]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب من مضمض من السويق.....

[6]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب الخوخة والممر.....

[7]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب الخوخة والممر.....

[8]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب من بنی مسجدا.

[9]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب الماء الذی يغسل به شعر الإنسان.

[10]) فتح الباری: ٣١٤/٦ وعمدة القاری: ١٤٠/١٥ التوضيح: ٩٦/١٩.

## الحدیث الرابع

۳۰۵۵- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَرُ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: وَعَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلُ فَقَالَ: «إِنَّا لاَ نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلاَ كَلْبٌ» (۱)-[۵٦۱۵]

## تراجم رجال

**یحیی بن سلیمان**: دا ابوسعید یحیی بن سلیمان کوفی رحمه الله دې. ددوی تذکره **کتاب العلم باب کتابة العلم** کښې تیره شوې ده.(۲)

**ابن وهب**: دا عبدالله بن وهب مسلم مصری رحمه الله دې. ددوی تذکره **کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه**.....لاندې تیره شوې ده.(۳)

**عمرو**: دا عمروبن الحارث رحمه الله دې یا عمر بن محمد؟ په دې کښې اختلاف دې.

**یوه اهم تنبیه**: د دې حدیث په سند کښې یونوم عمرو راغلې دې. یعنی د عین په فتحه او واؤ سره، په اکثر نسخوکښې هم داسې دې. د بعض حضراتو خیال دادې چه دا عمرو بن الحارث دې. لیکن دا صحیح نه ده ځکه چه د ده سماع د حضرت سالم رحمه الله نه ثابته نه ده، ملاقات هم نه دې شوې. صحیح نوم عمر، په ضمه دعین او بغیرد واؤ نه. دې نه عمر بن محمد بن زید بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رحمه الله مراد دې. دغه شان دکشمیهنی رحمه الله په نسخه کښې دارنګه د کتاب اللباس (۴) په یوروایت کښې چه هم د یحیی بن سلیمان رحمه الله نه دې کښې د عمر بن محمد رحمه الله تصریح ذکر ده.(۵) دا ابوامیه عمرو بن الحارث مصری انصاری رحمه الله دې.(۶)

**سالم**: دا سالم بن عبدالله بن عمر بن خطاب قرشی عدوی رحمه الله دې. ددوی تذکره **کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان** لاندې تیره شوې ده.(۷)

**ابیه**: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. ددوی تفصیلی حالات کتاب الإیمان باب قول النبي صلی الله علیه وسلم: بني الإسلام علی خمس......، لاندې راغلی دی.(۸)

---

(۱) قوله: عن أبیه: الحدیث، أخرجه البخاری فی اللباس، باب لاتدخل الملائکة بیتا فیه صورة ولا کلب رقم: ۵۹٦۰وانفرد به البخاری، ولم یخرجه غیره.

(۲) کشف الباری: ۳۲۷/٤.

(۳) کشف الباری: ۳/۲۷۷.

(٤) صحیح البخاری کتاب اللباس باب لا تدخل الملائکة بیتا..... رقم: ۵۹٦۰.

(۵) فتح الباری: ۳۱۵/٦عمدة القاری: ۱٤۰/۱۵وقال ابن الملقن رحمه الله: ((وکشط الدمیاطی الواؤ من عمرو فی أصله، وقال: ما ذکرناه فی الحاشیة عن أصحاب الأطراف))، التوضیح: ۱۰۰/۱۹.

(٦) ددوی د حالاتو دپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین.

(۷) کشف الباری: ۱۲۸/۲.

(۸) کشف الباری: ٦۳۷/۱.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ددې څلورو وارو احاديثو مناسبت ترجمة الباب سره بالكل واضح دې چه په دې ټولوكښې د ملائكه د رحمت په هغه كورونوكښې د عدم دخول ذكردې چرته چه تصوير وغيره وى نود ملائكه ثبوت موجود شو.

دباب دويشتم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث الخامس

۳۰۵۶-حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ، قَالَ: إِذَا قَالَ الإِمَامُ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الحَمْدُ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ المَلاَئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ(۱)-[ر ۷۶۳]

## تراجم رجال

**اسماعيل:** دا اسماعيل بن ابى اويس مدنى اصبحى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من كره أن يعود فى الكفر.... كښې تير شوى دى.(۲)

**مالك:** دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان كړې شوى دى. (۳)

**سمى:** دا سُمَى -بضم السين المهملة وفتح الميم وتشديد الياء- (۴)

مولى ابى بكر بن عبدالرحمن بن حارث رحمه الله دې. (۵)

**ابوصالح:** دا ابو صالح عبدالله بن ذكوان سمان زيات رحمه الله دې.

**ابوهريره:** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى. (۶)

دا حديث شريف كتاب الأذان كښې تيرشوې دې.(۷)

د باب درويشتم حديث هم دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

(۱) قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، مر تخريجه كتاب الأذان باب فضل: اللهم ربنالک الحمد.

(۲) كشف البارى:۲/۱۱۳.

(۳) كشف البارى: ۱/۲۹۰، ۲/۸۰

(۴) عمدة القارى: ۱۵/۱٤۰.

(۵) ددوى د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب الأذان باب الاستهام فى الأذان.

(۶) كشف البارى: ۱/۶۵۹-۶۵۸

(۷) صحيح البخارى كتاب الأذان باب فضل اللهم ربنالک الحمد رقم: ۷۹۶.

## الحديث السادس

٣٠٥٧- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ أَحَدَكُمْ فِي صَلَاةٍ مَا دَامَتِ الصَّلَاةُ تَحْبِسُهُ، وَالمَلَائِكَةُ تَقُولُ [ص:١١٥]: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ مَا لَمْ يَقُمْ مِنْ صَلَاتِهِ أَوْ يُحْدِثْ" [1] [ر ٤٣٤]

## تراجم رجال

**ابراهيم بن المنذر**: دا مشهور محدث حضرت ابراهيم بن المنذر بن اسحاق حزامى رحمه الله دى.

**محمدبن فليح**: دامحمدبن فليح بن سليمان خزاعى رحمه الله دى. بعض نسخو كښې محمدبن فليح په ځائې ابن افلح راغلې دې كوم چه تصحيف دې.[2]

**ابى**: دا فليح بن سليمان خزاعى اسلمى رحمه الله دې.

**هلال بن على**: دا هلال بن على قرشى عامرى مدنى رحمه الله دې. ددې ځلورو وارو حضراتو حالات كتاب العلم باب من سئل علماء وهو مشتغل فى حديثه...... لاندې تيرشوى دى.[3]

**عبدالرحمن بن ابى عمره**: دا عبدالرحمن بن ابى عمره انصارى نجارى مدنى رحمه الله دې.[4]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.[5]

دا حديث شريف كتاب الصلاة كښې تيرشوې دې.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ددې دوارو احاديثو ترجمة الباب سره مطابقت لفظ الملائكة كښې دې.

د باب ځليريشتم حديث د حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه دې.

---

[1]) قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب الصلاة باب الحدث فى الصلاة.

[2]) فتح البارى: ۳۱۵/۶.

[3]) كشف البارى: ۶۳/۳-۵۳.

[4]) دَدوى دَ حالاتودَپاره اوګورئى كتاب المظالم باب اثم من خاصم فى باطل.

[5]) كشف البارى: ۶۵۹/۱.

[6]) صحيح البخارى كتاب الصلاة باب الحدث فى المسجد رقم: ٤٤٥.

## الحديث السادس

۳۰۵۸- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ {وَنَادَوْا يَا مَالِكُ} [الزخرف: ۷۷] قَالَ: سُفْيَانُ: فِي قِرَاءَةِ عَبْدِ اللَّهِ وَنَادَوْا يَا مَالِ ()[۳۰۹۳، ۴۵۴۲]

**ترجمه**: حضرت يعلى بن اميه رضی الله عنه فرمائي چه ما نبى كريم ﷺ په منبرباندې تلاوت كولوسره واورېدو چه لوستل ئې ﴿وَنَادَوْا يَٰمَٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾. حضرت سفيان رحمه الله فرمائي چه د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په قراءت كښې ﴿يَٰمَالِ﴾ دى.

مالك، خازن يعنى د جهنم د داروغه نوم دى.[2] دويم قراءت كښې ترخيم دې كاف حذف كړې شوې دې. اوس په لام باندې ضمه او كسره دواړه لوستل جائز دى.[3]

## تراجم رجال

**على بن عبدالله**: دا مشهور محدث على بن عبدالله المدينى رحمه الله دې. ددوى تذكره **كتاب العلم باب الفهم فى العلم** لاندې بيان شوې ده.[4]

**سفيان**: دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى او مفصل حالات **كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا**.... كښې تيرشوى دى.[5]

**عمرو**: دا عمرو بن دينار جمحى رحمه الله دې. ددوى تذكره **كتاب العلم باب كتابة العلم** كښې تيره شوې ده.[6]

**عطاء**: دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب عظة النساء** كښې راغلى.[7]

**صفوان بن يعلى**: دا صفوان بن يعلى بن اميه تميمى رحمه الله دې.[8]

**ابيه**: دا مشهور صحابى حضرت يعلى بن اميه رضی الله عنه دې.[9]

---

[1]) قوله: عن أبيه (يعلى) الحديث: رواه البخارى فى تفسير سورة الزخرف باب ﴿وَنَادَوْا يَٰمَٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾ رقم: ۴۱۱۹ وبدء الخلق باب صفة النار وأنها مخلوقة رقم: ۳۲۶۶ ومسلم رقم: ۲۰۱۱ فى الجمعة باب تخفيف الصلاة والخطبة وأبوداؤد رقم: ۳۹۹۲ أبواب الحروف والقرآن والترمذى رقم: ۵۰۸ فى الصلاة باب ماجاء فى القراءة على المنبر.

[2]) عمدة القارى: ۱۵/۱۴۱.

[3]) فتح البارى: ۶/۳۱۵ عمدة القارى: ۱۵/۱۴۱.

[4]) كشف البارى: ۳/۲۹۷.

[5]) كشف البارى: ۱/۲۳۸ الحديث الأول: ۳/۱۰۲.

[6]) كشف البارى: ۴/۳۰۹.

[7]) كشف البارى: ۴/۳۷.

[8]) ددوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الحج باب غسل الخلوق.

[9]) حواله بالا.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** دحديث ترجمة الباب سره مطابقت لفظ مالك كښې دې چه فرښته ده. دباب پنځه ويشتم حديث دحضرت عائشه رضي الله عنها دې.

## الحديث السابع

۳۰۵۹- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُرْوَةُ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدَّثَتْهُ أَنَّهَا قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ أَتَى عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ، قَالَ: "لَقَدْ لَقِيتُ مِنْ قَوْمِكِ مَا لَقِيتُ، وَكَانَ أَشَدَّ مَا لَقِيتُ مِنْهُمْ يَوْمَ العَقَبَةِ، إِذْ عَرَضْتُ نَفْسِي عَلَى ابْنِ عَبْدِ يَالِيلَ بْنِ عَبْدِ كُلاَلٍ، فَلَمْ يُجِبْنِي إِلَى مَا أَرَدْتُ، فَانْطَلَقْتُ وَأَنَا مَهْمُومٌ عَلَى وَجْهِي، فَلَمْ أَسْتَفِقْ إِلَّا وَأَنَا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ فَرَفَعْتُ رَأْسِي، فَإِذَا أَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ أَظَلَّتْنِي، فَنَظَرْتُ فَإِذَا فِيهَا جِبْرِيلُ، فَنَادَانِي فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ لَكَ، وَمَا رَدُّوا عَلَيْكَ، وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيهِمْ، فَنَادَانِي مَلَكُ الجِبَالِ فَسَلَّمَ عَلَيَّ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ، ذَلِكَ فِيمَا شِئْتَ، إِنْ شِئْتَ أَنْ أُطْبِقَ عَلَيْهِمُ الأَخْشَبَيْنِ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ مِنْ أَصْلاَبِهِمْ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ وَحْدَهُ، لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا"[1] [۶۹۵۴]

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا عبدالله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب العلم باب ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوى دى.[2]

**ابن وهب:** دا عبدالله بن وهب مسلم مصرى رحمه الله دې.

**يونس:** دا يونس بن يزيد ايلى قرشى رحمه الله دې. د دوى دواړو حضراتو تذكره كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه...... لاندې تيره شوې ده.[3]

**ابن شهاب:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. ددې څلورو واړو حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.[4]

**عروة:** داحضرت عروه بن زبير بن عوام مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى دريم حديث او تفصيلى حالات كتاب الايمان باب أحب الدين الى الله أدومه لاندې بيان كړې شوى دى.[5]

---

[1] قوله: عائشة رضى الله عنها: الحديث، رواه البخارى أيضاً فى التوحيد باب ﴿وَكَانَ اللَّهُ سَمِيعًا بَصِيرًا﴾ رقم: ۷۳۸۹ ومسلم رقم ۴۶۵۳ فى الجهاد باب مالقى النبى صلى الله عليه وسلم من أذى المشركين والمنافقين.

[2] كشف البارى: ۲۸۹/۱ و ۱۱۳/۴.

[3] كشف البارى: ۲۷۷/۳- ۳۸۲.

[4] كشف البارى: ۳۲۶/۱-۳۲۳.

[5] كشف البارى: ۲۹۱/۱، ۴۳۶/۲.

**عائشه** رضي الله عنها: دحضرت عائشه رضي الله عنها حالات بدء الوحى ددريم حديث لاندې راغلى دى.[1]

**قوله:: قالت النبى صلى الله عليه وسلم: هل أتى عليك يوم كان أشد من يوم أحد؟**

**قال: لقد لقيتُ من قومك ما لقيت، وكان أشد ما لقيت منهم يوم العقبة:** ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه هغې د حضورپاك نه تپوس اوكړو چه ايا د جنګ احدنه هم زياته دسختئى ورځ په تاسو باندې راغلې ده؟ حضورپاك اوفرمائيل ستاسود قوم نه چه كوم تكليف ماته اورسيدو پس راؤرسيدو مګر دهغې نه زيات تكليف ماته په يوم عقبه كښې اورسيدو.

**دعقبه نه څه مراد دې؟** دعقبه نه عقبه منى مراد دې. داكثرشراح حضراتو هم دغه رائې ده.[2] خو علامه سندهى فرمائى چه دا ډيره ګرانه معامله ده ځكه چه عقبه په منى كښې ده او حضورپاك چه كومه واقعه په حديث باب كښې بيان كړې ده هغه د طائف ده. په دې وجه كيدې شى چه دا چرته بله عقبه وى چه په طائف كښې دننه وى[3] خو علامه كورانى فرمائى چه په ظاهره قرن الثعالب مراد دې.[4]

**قوله:: إذ عرضت نفسى على ابن عبد ياليل بن عبد كلال، فلم يجبنى إلى ما أردتُ:**

كله چه ما خپل ځان ته عبد يا ليل بن عبد كلال په خوئى باندې پيش كړو مګر هغه ماته زما د خواهش مطابق مثبت جواب رانه كړو.

**دا د كوم وخت واقعه ده؟**: دا د شوال لسم نبوت واقعه ده. د رسول الله ﷺ تره ابوطالب او بى بى محترمه حضرت خديجه رضي الله عنها انتقال شوې وو.[5] اول ئې بى بى رخصت شوه او بيا مهربان تره هم دمفارقت داغ وركړو. چنانچه د ابوطالب نه پس هيڅوك حامى اوامدادكونكى پاتې نه شو اودحضرت خديجه رضي الله عنها د رخصت كيدو سره هيڅوك د تسلئى وركونكې اوغم كونكې پاتې نه شو. دمكې په دومره لويه زمكه باندې اوس هيڅ د پناه ځائى پاتې نه شو. هرطرف ته دښمنان او دښمنان او يوموټى مسلمانان. چنانچه حضورپاك د پناه په غرض طائف ته روان شو. اود هغه ځائى سردارانوته د اسلام ددعوت وركولواراده ئې هم وه چه كوم پيغام ته په خپلوانوكښې حوصله افزائى او قبلول حاصل نه شو كيدې شى چه د بهروالائى قبول كړى او هغوى د اسلام معاون اوامداديان جوړشى. دغه شان به د اسلام په خوريدو كښې آسانى پيداشى.

---

[1] كشف البارى: ۲۹۱/۱.

[2] شرح الكرمانى: ۱۷۷/۱۳عمدة القارى:۱۴۲/۱۵شرح القسطلانى: ۲۷۵/۵.

[3] قال الإمام السندى رحمه الله: يوم العقبة، هومشكل جدا، لأن يوم العقبة فى منى، وعرضه صلى الله عليه وسلم كان بالطائف والأقرب أن يقال: إذ عرضه بدل من يوم العقبة، بتقدير قرب يوم العقبة، أو أنه بواسطة القرب اعتبرالوقت واحدا، ويحتمل على بعد أن يكون المراد بالعقبه، عقبة بالطائف. حاشيةُ السندى على صحيح البخارى: ۱۵۹ قديمى والكنزالمتوارى: ۱۵۴/۱۳.

[4] الكوثرالجارى: ۱۸۲/۶.

[5] وفى الطبقات لما توفى أبوطالب تناولت قريش من رسول الله صلى الله عليه وسلم، اجترؤ عليه، فخرج الى الطائف ومعه زيد بن حارثة. وذلك فى ليال بقين من شوال سنة عشر من حين بنى رسول الله صلى الله عليه وسلم.... فأقام بالطائف عشرة أيام، لا يدع أحدا من اشرفهم الاجاءه وكلمه فلم يجيبوه وخافوا على أحداثهم، فقالوا: يا محمد، اخرج من بلدنا، والحق بمجانك من الأرض واغر، به سفهاء هم فجعلوا يرمونه بالحجارة. الطبقات الكبرى لابن سعد: ۲۱۲/۱-۲۱۱.

په دې سفر كښې د رسول الله ﷺ متبنى حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه هم حضورپاك سره وو. عبد يا ليل، مسعود اوحبيب دا دريواړه رونړو باندې چه دهغه ځائى د سردارانو نه وو اسلام وړاندې كړو. په ځائى ددې چه هغوى د حق كلمه اوريدلې وه ډيرزيات په سختئى سره ئى حضورپاك ته جواب وركړو. يو اووئيل چه ولې الله تعالى د كعبې پرده شلولو دپاره هم ته نبى جوړ كړې رالېږلې؟ يو وئيل ولې خدائى ته د خپل رسالت دپاره ستانه بغير بل څوك ملاؤ نه شو؟ او دريم اووئيل چه په الله قسم زه به تاسره خبرې هم اونه كړم. كه چرې په واقع كښې الله ته خپل رسول جوړولوسره رالېږلې نوستاد خبرې رد كول سخت خطرناك دى اوكه چرې ته دالله تعالى رسول نه ئې نوبيا قابل د توجو او قابل دخطاب هم نه ئې دغه شان هغوى ډير ناروا سلوك اوكړو اوداسې رويه ئې اختيار كړه چه سوچ هم نه شى كيدلې. هغوى بدمعاشانو او لوفران قسم بنيادمان هغوى پسې اولګول په كاڼړو ئې اوويشتلو اوظالمانو دومره كاڼړى اوورول چه حضورپاك زخمى شو او بدن مبارك ئى وينى وينې شو.

حضرت زيد رضي الله عنه به رسول الله ﷺ بچ كولو او كوشش به ئې كولو چه كوم كاڼړې هم راځې هغه په ځانى د حضورپاك په ما باندې راپريوځى هم په دې كښې د حضرت زيد ټول سر زخمى شو.(١)

**ابن عبدياليل بن عبدكلال:** يا ليل كښې د ياء نه پس الف دې. اول لام مكسوره دې دې نه پس ياء ساكنه ده آخره كښې لام دې اود كلال په كاف باندې ضمه ده لام مخفف دې او آخره كښې لام دې.(٢)

دلته د امام بخارى نه يوه سهو خودا شوې ده چه د طائف پورته ذكرشوى سردار نوم ابن عبدياليل ليكلې دې ليكن دا واقعه پخپله د عبدياليل ده. دهغه د ځوئى نه ده. د عربو نسب نګارانو ددې تصريح كړې ده. كلبى په اجميره كښې دهغوى نسب داسې ليكلې دې: عبدياليل بن عمرو بن عمير بن عوف بن عقده بن عيرة بن عوف بن ثقيف.(٣)

تركومې چه دعبدياليل د ځوئى تعلق دې نودهغه نوم كنانه يا مسعود دې. چه په هغه وفد كښې شامل وو چه په لسم هجرى كښې د قبيله ثقيف د طرف نه راغلې وو. په دغه وفد كښې ټول لس كسان وو. د كنانه باره كښې د اكثر حضراتو رائى داده چه پوره وفد سره دې هم مسلمان شوې وو. خو مدائنى ليكلى دى چه پوره وفد كښې كنانه اسلام نه وو قبول كړې اوهغه د هغه ځائى د بلاد روم طرف ته اووتلو اوهم هلته دكفر په حالت كښې مړشو.

دويمه سهو د امام بخارى رحمه الله نه دا شوې ده چه د عبدياليل د پلار نوم عبد كلال خودلې شوې دې حالانكه دهغه نوم عمرو وو لكه چه اوس پورته تيرشو دې ټولو ته به بنوعمرو وئيلې كيدلو. عبد كلال خودهغه د رور نوم دې. والله اعلم. (٤)

**قوله: : فانطلقت وأنا مهموم على وجهى:** نودغم په حالت كښې ما خپله لار واخستله. دعلى وجهي تعلق انطلقت سره دې. مطلب دا چه هم په هغه حال كښې زه خفه اودلګير حضورپاك د واپسئ دپاره روان شو. علامه طيبى رحمه الله ددې معنى دا بيان كړې ده: ((**أي انطلقت حيران هائما لا أدري أين أتوجه من شدة ذلك؟**)) چه زه د غم اوتكليف د سختئى د وجې نه حيران اوسرګردان ووم چه اوس به چرته

---

١) فتح البارى: ٣١٥/٦عمدة القارى: ١٤٢/١٥شرح القسطلانى: ٢٧٥/٥سيرة المصطفى ﷺ: ٢٧٥-٢٧٤ملخصا وبتصرف يسير.

٢) فتح البارى: ٣١٥/٦عمدة القارى: ١٤٢/١٥شرح القسطلانى: ٢٧٥/٥.

٣) كماذكر ابن الملقن والعينى والحافظ، وهو فى غير الجمهرة من كتب الأنساب، كالأنساب للسمعانى: ٤٨٢/٤.والله اعلم.

٤) عمدة القارى:١٤٢/١٥فتح البارى: ٣١٥/٦والتوضيح: ١٠١/١٩.

ختم (١)

**قوله:: فلم أستفق الا وأنا بقرن الثعالب** كله چه زه قرن الثعالب ته اورسيدم نو څه گذاره مې اوشوه.

**قوله:: قرن الثعالب** دا مکې مکرمې سره نيزدې د يوځائې نوم دې. علامه نووى رحمه الله ليکلى دى چه دا د اهل نجد ميقات دې دې ته قرن المنازل هم وائي. د قاضى عياض رحمه الله د قول مطابق د مکې مکرمې نه ددې فاصله د يوې ورځې او يوې شپې ده (٢)

مطلب دا چه کله حضورپاك مکې سره نيزدې قرن الثعالب يا قرن المنازل ته اورسيدو نوطبيعت ئې لږ شان په ځائې شو، غم ئې لږ شان سپك شو اود طائف نه د مکې په لاره باندې د ربيعه د ځامنو شيبه او عتبه يوباغ وو هلته د يوې ونې لاندې حضورپاك د سا اخستلو دپاره کيناستو اودا مشهوره دعائې اوغوښتله:

«اللهم أشكو إليك ضعف قوتي، وقلة حيلتي، وهواني على الناس، يا أرحم الراحمين، أنت رب المستضعفين، إلى من تكلني؟ إلى عدو بعيد يتجهمني أم إلى صديق قريب ملكته أمري؟ إن لم تكن غضبانا على فلا أبالي، غير أن عافيتك أوسع لي، أعوذ بنور وجهك الذي أشرقت له الظلمات، وصلح عليه أمر الدنيا والآخرة، من ان تنزل بي غضبك، أو يحل بي سخطك، لك العتبى حتى ترضى، ولا حول، ولا قوة إلا بك» (٣)

"اې الله زه تاته د خپلې کمزورئې د تدبيرد کمې اود خلقو د بې توقيرئې شکايت کوم. اې ارحم الراحمين ته د کمزورو په خاص توګه مربى او مددګار ئې. ته به ما چاته حواله کوې؟ د يوغضبناك دښمن طرف ته، يا د يودوست طرف ته څوك چه ته زما د امورو مالك جوړ کړې. که چرې ته مانه ناراض نه وې نو بيا ماته د هيڅ پرواه نشته دې. مګر ستا عافيت او سلامتئ زما دپاره د سلو آسانو سبب دې. زه پناه غواړم ستا د بزرګ ذات په وسيله سره، په کوم سره چه ټولې تيارې روښانه شې اودهغه نور د وجې نه د دنيا او آخرت کارخانه روانه ده. زه د هغې نه پناه غواړم چه ستا غضب او خفګان په ما باندې راکوز شى اواصل مقصود هم تاته اوول او راضى کول ئې دى. په يوبنده کښې د څه شرنه د اوختو اود خيرد کولوڅه قدرت نشته مګر څومره چه ستا د دربار نه ورکړې شى."

فرفعت رأسى، فإذا أنا بسحابة قد أظلتنى، فنظرت فيها جبريل، فناداني، فقال: إن الله قد سمع قول قومك لك وما ردوا عليك، وقد بعث الله إليك ملك الجبال لتأمره بما شئت فيهم: ناڅاپى چه سرمې اوچت کړو نواومې کتل چه يوه اوريځ ده چه په ما باندې سورې کړې دې او په هغې کښې حضرت جبرائيل عليه السلام موجود دې..... جبرائيل ماته د هغه ځائې نه آواز راکړو چه ستاسو قوم تاسو ته کوم جواب درکړې دې هغه الله تعالى واؤريدو. هغه وخت الله تعالى تاسوته د غرونو فرښته راؤليږلې دې دپاره چه تاسو هغې ته څه حکم ورکول غواړئ چه ورکړئ.

---

(١) عمدة القارى: ١٤٢/١٥ شرح القسطلانى: ٢٧٥/٥ - ٢٧٦ والكنز المتوارى: ١٥٣/١٣ شرح الطيبى: ٦١/١١ كتاب الفضائل والشمائل باب المبعث وبدء الوحى رقم: ٥٨٤٨.

(٢) عمدة القارى: ١٤٢/١٥ شرح القسطلانى: ٢٧٦/٥ وشرح النووى على صحيح مسلم ومشارق الأنوار: ١٩٩/٢-١٩٨.

(٣) أخرجه ابن إسحاق كما فى الروض الأنف: ٢٣١/٢ خبر عداس، رضى الله عنه، والطبرانى فى الكبير ١٣٩٨/١٤ رقم: ١٤٧٦٤ أحاديث عبدالله بن جعفر رضى الله عنهما، وسبل الهدى والرشاد: ٤٣٩/٢ الباب الحادى والثلاثون فى سفر النبى صلى الله عليه وسلم، كتاب الرقة والبكاء لابن قدامة: ١١٤/١.

**او دعاقبوله شوه:** اود دعاد قبلیدو دپاره خود نبوت اورسالت وصف كافى وو ځكه چه هر نبى مستجاب الدعوات وى ليكن دغه وخت كښې د وصف نبوت نه علاوه اضطرار اومظلوميت د غربت او مسافرت هم اضافه اوشوه. نودداسې صفتى ذات ددعا تپوس به څه كوې چه نبى هم وى رسول هم وى ناقراره هم وى مظلوم هم وى اوغريب الديار او مسافر هم وى، د داسې دعا د ژبې نه وتل وو چه د قبليدو دروازې فورى توګه باندې كولاؤ شوې اودعا قبوله شوه. حضرت جبرائيل عليه السلام د غرونو فرښتې سره راورسيدو اوهم د آسمان نه ئې آواز وركړو چه دهرقسم د حكم د پوره كولودپاره د غرونو فرښته حاضره ده حكم كونى.

**قوله:: فناداني ملك الجبال، فسلم علي، ثم قال: يا محمد، فقال: ذلك فيما شئت. إن شئت أطبق عليهم الأخشبان:** په دې كښې د غرونو فرښتې ماته آواز اوكړو ماته ئې سلام اوكړو او وئې وئيل اې محمد! لكه څنګه چه جبرائيل اووئيل څنګه چه تاسو غواړئ كه غواړې نو زه دا دواړه د كاڼړى كلك غرونه په خپل مينځ كښې رايوخائى كړم؟

**قوله:: ذلك** :: مبتداء دې اوددې خبر محذوف دې. ددې تقدير خو يا كماعلمت دې يا كماقال جبريل مطلب دادې چه څنګه تاسو پوهيږئ چه داكيدې شى يا څنګه چه جبرائيل اووئيل هم هغه شان زه كولې شم تاسو صرف حكم اوكړئ.[1]

**قوله:: ماشئت** كښې ما استفهاميه دې او إن شئت شرط دې. د كوم جزا چه محذوف ده يعنى لفعلت.[2] اود اطباق معنى په خپل مينځ كښې د رايوخائى كولوده. مطلب دادې كه چرې ستاسو حكم وى نو دا دواړه غرونه رايوخائى كړم. دغه شان به ددې په مينځ كښې ټول خلق اوره شى او هلاك به شى.

**قوله:: الاخشبان**: دا همزه مفتوحه او خاء معجمه ساكنه، شين معجمه او با موحده سره د اخشب تثنيه ده. دمكې مكرمې د دوو غرونودپاره دا كلمه وئيلى شى. يو جبل ابوقبيس دې چه دمكې په جنوب كښې واقع دې دويم قيقعان دې چه د مكې په شمال كښې دې. د اول ذكرشوى بالكل مقابل كښې دې اوددې دواړو ښاريو په مينځ كښې پخوانې مكه ښكار آباد دې. خودعلامه صغانى رحمه الله وينا ده چه د قيقعان په ځائى جبل احمر مراد دې اوعلامه كرمانى رحمه الله ليكلى دى چه جبل ثور مراد دې. لكه چه په اول كښې خو اتفاق دې چه جبل ابوقبيس مراد دې او په دويم كښې د شارحينو رائې مختلف دى. د علامه كرمانى رحمه الله قول خو د صغانى رحمه الله په قول وهم دې او قيقعان او جبل احمر دواړه نيزدې نيزدې دى نو دواړه مراد كيدې شى. خو مشهوره هم دغه ده چه د اخشبان نه جبل ابوقبيس او جبل قيقعان مراد دى.[3]

دې دواړو غرونوته اخشبان د دې سختوالى صلابت او كاڼړو پوخوالى د وجې نه وئيلى شى. په يو

---

[1] فتح البارى : ۳۱۶/۶وارشادالسارى: ۲۷۶/۵ علامه عينى رحمه الله نور احتمالات هم ذكركړى دى مګر ټول يو شان دى، عمدة القارى:۱۴۲/۱۵.

[2] حواله جات بالا.

[3] عمدة القارى: ۱۴۲/۱۵شرح القسطلانى: ۲۷۶/۵فتح البارى: ۳۱۶/۶الكواكب الدرارى للكرمانى: ۱۷۸/۱۳.

حديث شريف كښې راځي: «لايزول مكة حتى يزول أخشباها» (۱)
د شراح د اخشبين پورته ذكركړې شوې تشريح نه دا متبادر كيږي چه ملك الجبال اخشبين يوځائى كولوسره اهل مكه تباه كولوپيش كش كړې وو ليكن د روايت سياق د اهل طائف باره كښې دې نو ددې دپاره عين ممكن دى چه طائف يو دوه غرونه مراد وى او هغې ته ني اخشبين وئيلې وى. والله اعلم بالصواب.

**قوله: :فقال النبي صلى الله عليه وسلم: بل أرجوأن يخرج الله من أصلابهم من يعبدالله وحده، لا يشرك به شيئا**: حضورپاك اوفرمائيل نه، بلكه زه خودالله تعالى نه دا ميد كوم چه الله تعالى به دهغوى د نسل نه داسې اولاد پيداكوى چه صرف دهغه وحده لاشريك له عبادت به كوى او هغه سره به څوك شريك نه ګڼړى.
د اهل طائف د تكاليفو رسولو اود ګستاخو نه باوجود هغه پيكر رحمت ﷺ ملك الجبال ته په اثبات كښې څه جواب ورنه كړو. دهغه خلقو هلاكت اوبربادى ئى اونه غوښتل. چونكه حضورپاك آخرى نبى وو او رحمت ئى جوړولو سره راليږلې وو په دې وجه دحضورپاك نه هم د رحمت ظهور كيدل وو. په دې وجه حضورپاك خيرې اونه كړې بلكه دا ئى اوفرمائيل چه دهغوى راتلونكې نسل به مسلمان شى او بيا هم دغه شان اوشو. دهغوى د نسل نه نه صرف مسلمانان پيدا شو بلكه ډير زيات مضبوط مسلمانان پيدا شو. چنانچه امام ابن سعد رحمه الله په طبقات كښې نقل كړى دى چه د عربو د نورو قبيلو په شان د اسلام قبلولوپه غرض سره د قبيله ثقيف وفد هم په دربار نبى كښې حاضر شوې وو چه د پنځلسو نه تر شلو كسانو پورې وو په هغوى كښې اكثرخلقو اسلام قبول كړو. مشهور صحابى حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه دهغوى د ايمانى كيفيت باره كښې فرمائى:
«فدخلوا في الإسلام، فلا أعلم قوما من العرب بني أب ولا قبيلة كانوا أصح إسلاما ولا أبعد أن يوجد فيهم غش لله ولكتابه منهم» (۲)
پس دا خلق په اسلام كښې داخل شو دعربو يوې لوئى يا ورې قبيلې ماته علم نشته د چا اسلام چه دهغوى نه زيات رښتونې وى. الله تعالى اود هغه پاك كتاب دوكه وركولوسره څوك دهغوى نه زيات لرې وى. مشهور فاتح په هندوستان كښې اولين اسلامى حكمران محمدبن قاسم رحمه الله تعلق هم قبيله ثقيف سره وو. دچاچه داسلام دپاره ډير ښكاره خدمات د يو صاحب بصيرت نه پټ نه دى.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت هم واضح دې چه په دې كښې دحضرت جبرائيل امين عليه السلام او په غرونو باندې مامور فرښتې ذكر دې.
دباب شپږويشتم حديث دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دې.

---

(۱) لم أقف عليه مرفوعا، وإنما رواه موقوفا في أخبارمكة: ۷۸/۱من قول ابن عباس، أنه وجد في حجر كتب فيه: أنا الله، ذوبكة الحرام، وصنعتها يوم صنعت الحرم...... وفيه: لا تزول حتى يزول أخشباها..... ثم رواه عن مجاهد، وكذا عبدالرزاق في مصنفه: ۱۵۰/۵كتاب الحج، باب الحجر وما فيه مكتوب رقم: ۹۲۸۴-۹۲۸۳رواه عن مجاهد أيضا، وانظرسيرة ابن هشام: ۲۱۲/۱.
(۲) الطبقات الكبرى لابن سعد: ۳۱۴/۱-۳۱۳وفد ثقيف.

## الحديث الثامن

٣٠٦٠- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيُّ، قَالَ: سَأَلْتُ زِرَّ بْنَ حُبَيْشٍ عَنْ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى {فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى. فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى} [النجم: ١٠] قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ مَسْعُودٍ: أَنَّهُ «رَأَى جِبْرِيلَ، لَهُ سِتُّمِائَةِ جَنَاحٍ»[1] [٤٥٧٥، ٤٥٧٦]

**ترجمه:** ابواسحاق شيباني رحمه الله وائي چه ما د زر بن حبيش رحمه الله نه دالله تعالى د ارشاد ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ ۝ فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ۝﴾ باره كښې تپوس اوكړو نوهغوى اوفرمائيل چه مونږ ته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چه حضورپاك حضرت جبرائيل عليه السلام په داسې حالت كښې اوليدلو چه دهغه شپږ سوه وزرې وې. ددې حديث شرح كتاب التفسير كښې راغلې ده.[2]

## تراجم رجال

**قتيبه بن سعيد:** دا ابوالرجاء قتيبه بن سعيد بن جميل ثقفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب افشاء السلام من الإيمان لاندې تيرشوى دى.[3]

**ابوعوانه:** دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله يشكرى رحمه الله دې. ددوى تذكره بدء الوحى څلورم حديث لاندې راغلې.[4]

**ابواسحاق الشيباني:** دا سليمان بن ابى سليمان فيروز شيبانى كوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الحيض باب مباشرة الحائض په ذيل كښې راغلى ده.[5]

**زر بن حُبَيْش:** دا جليل القدر تابعى اومشهور مقرى حضرت زر بن حبيش بن حباشه بن اوس بن بلال (ياهلال) بن سعد كوفى اسدى رحمه الله دې. ابومريم يا ابومطرف ددوى كنيت دې.[6] دا مخضرم تابعى دې د جاهليت زمانه ئې هم ليدلې.[7]

دې د حضرات صحابه كرامو نه د اميرالمؤمنين عمر بن الخطاب، ابى بن كعب، عثمان بن عفان، على بن ابى طالب، ابن مسعود، عمار بن ياسر، عباس بن عبدالمطلب، عبدالرحمن بن عوف، حذيفه بن يمان، صفوان بن عسال، ابوذر غفارى او حضرت عائشه صديقه رضي الله عنهم وغيره نه د حديث روايت كوى. او تابعينونه حضرت ابووائل شقيق بن سلمه اسدى نه روايت كوى. چه ددوى د زمانې

---

[1] قوله: حدثنا ابن مسعود رضي الله عنه: الحديث، رواه البخاري أيضا، في تفسير سورة النجم باب: ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ﴾ رقم: ٤٨٥٦ وباب ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾ رقم: ٤٨٥٧ ومسلم رقم: ٤٣٤-٤٣٢ في الإيمان باب ذكر سدرة المنتهى والترمذي رقم: ٣٢٧٩ في التفسير باب ومن سورة النجم.

[2] كشف الباري كتاب التفسير: ٦٣٤-٦٣٣ سورة النجم.

[3] كشف الباري: ١٨٩/٢.

[4] كشف الباري: ٤٣٤/١.

[5] كشف الباري كتاب الحيض: ٢٥٠.

[6] تهذيب الكمال: ٣٣٦/٩-٣٣٥ وسير أعلام النبلاء: ١٦٦/٤.

[7] تهذيب الكمال: ٣٣٦/٩ وسير أعلام النبلاء: ١٦٦/٤.

اوددوی دوست هم وو. د علم قراءت تکمیل ئی د حضرت عبدالله بن مسعود او حضرت علی رضی الله عنهما نه کړی.
ددوی نه روایت کونکو کښې امام ابراهیم نخعی، اسماعیل بن ابی خالد ، یحیی بن وثاب، عاصم بن بهدله، اعمش، ابواسحاق شیبانی، ابوبرده اشعری، عدی بن ثابت، منهال بن عمرو وغیره داسې اساطین علم حدیث شامل دی.([1])
ددوی نه دقراءت علم حاصلونکو کښې دهغه زمانې مشهور قراء حضرات یعنی یحیی بن وثاب، عاصم بن بهدله، ابواسحاق شیبانی او اعمش رحمهم الله وغیره شامل دی. ([2])
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ثقة.([3]) ابن سعد رحمه الله د کوفې د تابعینو په طبقه اولی کښې دهغوی شمیر کړې دې او فرمائیلی دی «كان ثقة، كثير الحديث» ([4])د عربیت ډیر لوئی عالم وو تردې چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه به هم د عربیت په معامله کښې هغوی ته رجوع کوله.([5])
حضرت زر دخپل مدینې منورې د سفرباره کښې فرمائی چه زه په یووفد کښې د کوفې نه دمدینې منورې دپاره اووتلم. په خدائی چه ددې نه علاوه مې هیڅ خواهش نه وو چه د رسول الله ﷺ صحابه کرام، مهاجرین اوانصار سره ملاقات اوکړم اودهغوی د په زیارت کولوسره مستفید شم. چنانچه زه کله مدینې منورې ته اورسیدلم اوحضرت ابی بن کعب رضی الله عنه اوحضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه سره ملاؤ شوم. هم دغه دواړه بزرګان زما هم نشین او هم مجلس وو. یوه ورځ حضرت ابی رضی الله عنه اوفرمائیل ای زره ته د قرآن یوآیت پریخودل نه غواړې؟ دهر یوآیت باره کښې دې زما نه تپوس کړې دې. حضرت زر رحمه الله په جواب کښې اووئیل حضرت بیا دومره لرې نه زه ولې راغلې یم؟ بیا ما عرض اوکړو چه ابوالمنذر الله تعالی دې په تاسو باندې رحم اوکړی زما په معامله کښې نرمی کوه زه تاسو نه ډیره فائده اخستل غواړم.([6])
امام اعمش رحمه الله او امام ابوبکر بن ابی عاصم رحمه الله فرمائی چه مونږ خپل استاذان او ابووائل شقیق بن سلمه رحمه الله کتلې دې چه دا دواړه حضرات د یوبل د رائې د احترام بهترین مثال وو. ابووائل رحمه الله عثمانی وو حضرت عثمان رضی الله عنه ئی د خلافت حقدار ګڼړلو اودهغوی حمایت به ئی کولو. خو حضرت زر رحمه الله بنحبیش علوی وو حضرت علی رضی الله عنه ئی حقدار ګڼړلو. ددې نه باوجود به ئی هم په یومسجد کښې مونځ کولو. مګر مجال دې چه په یوبل باندې ئی خپله رائې لګولو کوشش کړې وی. د وفات پورې ددواړو هم دغه حال پاتې دې. حضرت ابووائل رحمه الله د استاذ کیدو نه باوجود د حضرت زر رحمه الله احترام کولو چه زر رحمه الله د هغوی نه په عمر کښې مشر دې اود هغوی په موجودګئ کښې به ئی تحدیث هم نه کولو. په خپل مینځ کښې د دواړو تعلق او محبت ډیرزیات وو.([7])
دحضرت زربن حبیش رحمه الله ډیراوږد عمر وو پخپله به ئی فرمائیل «أنا ابن عشرين ومئة سنة» دهغوی

---

[1]) تهذيب الكمال: ٣٣٦/٩وسير أعلام النبلاء: ١٦٦/٤.
[2]) سير أعلام النبلاء: ١٦٦/٤.
[3]) الجرح والتعديل: ٣ رقم الترجمة: ٢٧١٧.
[4]) الطبقات الكبرى: ١٠٥/٦.
[5]) حواله بالا.
[6]) حواله بالا، تهذيب الكمال: ٣٣٧/٩سر أعلام النبلاء: ١٦٨/٤-١٦٧.
[7]) تهذيب الكمال: ٣٣٨/٩-٣٣٧ سير أعلام النبلاء ١٦٩/٤-١٦٨طبقات ابن سعد:١٠٥/٦والاستيعاب: ٣٣٧/١.

وفات کله شوې؟ په دې باره کښې مختلف اقوال دی. خو دومره تاکلې شوې ده چه دحجاج بن یوسف په زمانه کښې د دیر الجماجم واقعه سره خواوشا شپږ شلې بهارونه لیدلونه پس هغه ددې دنیا نه رخصت شو. د وفات کال بعض ۸۱ بعض ۸۲ او بعض ۸۳ خودلې دې. دمختلف قرائنو د وجې نه ابن عبدالبر رحمه الله آخری قول راجح گرځولې دې چه په ۸۳هجری کښې د هغوی انتقال شوې.(١) دې د ائمه سته راوی دې. ټولو حضراتو دهغوی روايتونه نقل کړی دی.(٢)

**عبدالله** : دمشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حالات مفصلاً **كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم** په ذيل کښې بيان کړې شوی دی.(٣)

دباب اووه ويشتم حديث هم د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دې.

## الحديث التاسع

٣٠٧١- حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، {لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى} [النجم: ١٨]، قَالَ: «رَأَى رَفْرَفًا أَخْضَرَ سَدَّ أُفُقَ»(٤) [٤٥٧٧]

## تراجم رجال

**حفص بن عمر**: دا حفص بن عمر الحوصی رحمه الله دې.(٥)

**شعبه**: دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی بصری رحمه الله دې. ددوی حالات **کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده** لاندې ذکر کړې شوی دی.(٦)

**الاعمش**: دا سلیمان بن مهران الکاهلی المعروف بالاعمش رحمه الله دې.

**ابراهیم**: دا مشهور فقیه ابو عمران ابراهیم بن یزید نخعی کوفی رحمه الله دې.

**علقمه**: دا مشهور فقه علقمه بن قیس نخعی کوفی رحمه الله دې.

**عبدالله**: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعو رضی الله عنه دې. ددې څلورو واړو بزرگانو تفصیلی تذکره **کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم** کښې راغلې.(٧)

**عن عبدالله رضی الله عنه قال: ﴿لَقَدْ رَأَى مِنْ آيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى﴾ قال: رأى رفرفا أخضر سد أفق السماء:**

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د الله تعالی کلام ﴿لَقَدْ رَأَى مِنْ آيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى﴾ تفسیر کښې فرمائیلی

---

(١) تهذيب الكمال: ٩/٣٣٩-٣٣٨سير أعلام النبلاء: ٤/١٦٩-١٦٨طبقات ابن سعد: ٦/١٠٥ الاستيعاب: ١/٣٣٧.

(٢) تهذيب الكمال: ٩/٣٣٩.

(٣) كشف البارى: ٢/٢٥٧.

(٤) قوله: عن عبدالله: الحديث، أخرجه البخارى فى كتاب التفسير باب ﴿لَقَدْ رَأَى مِنْ آيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى﴾ رقم: ٤٨٥٨ والترمذى فى كتاب التفسير باب ومن سورة النجم رقم: ٣٢٧٧.

(٥) د دوی د حالاتو د پاره اوګورئی كتاب الوضوء باب ماجاء فى قول الله تعالى ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ﴾.

(٦) كشف البارى: ١/٦٧٨.

(٧) كشف البارى: ٢/٢٦٠-٢٥١.

دى چه حضورپاك شين لباس اوليدلو كوم چه د آسمان افق ډك كړې وو.

**د رفرف معنى:** ددې لفظ مختلف معانى بيان كړې شوى دى: ① رفرف شنې كپړې ته وائى يا مطلق لباس ته، دا لباس حضرت جبرائيل اغوستې وو لكه چه د لباس ليدل د حضرت جبرائيل عليه السلام ليدل وو. كپړو چه د آسمان طرفونه او افق ډك كړې وو لكه چه دا هم د حضرت جبرائيل عليه السلام فعل وو.[1]

② علامه كرمانى رحمه الله يو دا احتمال هم بيان كړې دې چه د رفرف نه د حضرت جبرائيل عليه السلام وزرې (متې) مراد دى. مطلب دا چه هغه خپلې وزرې داسې خورې كړې وې لكه څنګه چه كپړې خورولې شى. خو دا احتمال حافظ صاحب رحمه الله رد كړې دې چه د علامه خطابى رحمه الله په تقليد كښې دا خبره كرمانى رحمه الله نقل خو كړه مګر دا ډيره لرې خبره ده.[2]

③ علامه قسطلانى رحمه الله ددې معنى بستره كړې ده. نو د رفرف اخضر معنى شوه شنه بستره. اوس د حديث باب مطلب دا شو چه حضورپاك يوه شنه بستره اوليدله كوم چه د آسمان افق راګير كړې وو په هغې باندې حضرت جبرائيل عليه السلام تشريف فرما وو.[3]

ددې آخرى معنى تائيد ددې حديث نه هم كيږى كوم چه امام حاكم رحمه الله او امام نسائى رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل كړې دې: «أبصرنبى الله صلى الله عليه وسلم جبريل عليه السلام على رفرف قد ملأ ما بين السماء والأرض» [4] په دې حديث كښې د رفرف معنى بستره ده.

**د نسخو اختلاف:** په اكثرنسخو كښې «رفرف أخضر» دې خو د حموى او مستملى په نسخو كښې أخضر په ځائې خضر دې، يعنى د خاء معجمه فتحه او ضاد معجمه كسره سره. بعض نورو حضراتو خضر روايت كړې دې يعنى د ضاد د سكون سره. خو ددې د صحيح منلو د پاره رفرف به مؤنث ګرځولې كيږى څكه چه ابن ملقن ليكلى دى چه دا د رفرفة جمع ده دغه شان به دا ضبط هم صحيح شى.[5]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حديث او تيرشوى حديث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې چه په دواړو كښې د حضرت جبرائيل عليه السلام تذكره ده. په يو كښې صراحتاً او بل كښې دلالةً لكه چه اوس پورته تيرشو.

د باب اته ويشتم حديث د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث الثامن

٣٠٦٢- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، أَنْبَأَنَا القَاسِمُ، عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَتْ: «مَنْ زَعَمَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَأَى رَبَّهُ فَقَدْ أَعْظَمَ، وَلَكِنْ

---

[1]) لامع الدرارى: ٣٤٩/٧الكنز المتوارى: ١٥٥/١٣.

[2]) شرح الكرمانى: ١٧٩/١٣التوضيح: ١٠٣/١٩أعلام الحديث للخطابى: ١٤٩١/٢عمدة القارى: ١٤٣/١٥فتح البارى: ٣١٦/٢.

[3]) شرح القسطلانى: ٢٧٦/٥الكنز المتوارى: ١٥٥/١٣.

[4]) الحديث: أخرجه الحاكم فى المستدرك: ٤٦٩/٢رقم: ٣٧٣٦تفسير سورة النجم وصححه الذهبى فى تلخيصه (المطبوع مع المستدرك) والنسائى فى السنن الكبرى، كتاب التفسير سورة النجم رقم: ١١٥٣١.

[5]) فتح البارى: ٣١٦/٦التوضيح: ١٠٣/١٩.

قَدْرَأَى جِبْرِيلَ فِي صُورَتِهِ وَخَلْقُهُ سَادٌّ مَا بَيْنَ الأُفُقِ.[1]

**ترجمه:** حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها فرمائی چه څوك داګنړی چه محمد ﷺ خپل رب ليدلې دې نوهغه لونی جرات اوکړو بلکه هغوی خو حضرت جبرائيل په خپل اصل شکل اوصورت کښې ليدلې وو په داسې حال کښې چه افق هغه راګير کړې وو.

## تراجم رجال

**محمدبن عبدالله بن اسماعيل:** دامحمدبن عبدالله بن اسماعيل بن ابی ثلج بغدادی رازی رحمه الله دې. ابوبکر يا ابوعبدالله ددوی کنيت دې. د اصلاړې اوسيدونکې دې د امام احمدبن حنبل رحمه الله د صحبت ملګرې دې.[2]

دې د عبدالصمد بن عبدالوارث، حجاج بن محمد، حسن بن موسی اشيب، علی بن حفص مدائنی، يزيدبن هارون، محمدبن عبدالله انصاری، سعيد بن عامر ضبعی، يونس بن محمد المودب، روح بن عباده، ابوالنضر هاشم بن قاسم، يحيی بن اسحاق رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت کوی.

ددوی نه روايت کونکو کښې امام بخاری او امام ترمذی نه علاوه دهغوی نمسی محمدبن احمدبن محمد بن عبدالله، بل ابن خزيمه، ابوقريش محمدبن جمعه الحافظ، ابوبکر بن ابی داؤد، احمدبن جعفر بن نصر الجمال او عبدالرحمن بن ابی حاتم رحمهم الله وغيره شامل دی.[3]

امام عبدالرحمن بن ابی حاتم رحمه الله فرمائی چه ما دخپل پلار سره په ۲۵۴هجری کښې دهغوی نه احاديث اوليکل اوهغه صدوق دی.[4]

ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکرکتاب الثقات کښې کړې دې.[5] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی صدوق.[6]
ابن قانع رحمه الله فرمائی ۲۵۷هجری کښې وفات شوې دې. رحمه الله تعالی رحمة واسعة.[7]

**محمدبن عبدالله انصاری:** دا قاضی محمد بن عبدالله بن مثنی بن عبدالله انصاری رحمه الله دې.[8]

**ابن عون:** دا عبدالله بن عون بن ارطبان مزنی بصری رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: رب مبلغ أوعی...، لاندې تيره شوې ده.[1]

---

[1] قوله: عن عائشة رضی الله عنها: الحديث رواه البخاری فی هذا الباب أيضاً. الحديث الآتی رقم:۳۲۳۵وفی تفسير سورة المائدة باب ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ﴾ رقم: ۴۶۱۲وفی أول باب تفسير سورة النجم رقم: ۴۸۵۵ وفی التوحيد باب قول الله تعالی ﴿عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَى غَيْبِهِ أَحَدًا﴾ رقم: ۷۳۸۰ وباب قوله الله تعالی ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ﴾ رقم: ۷۵۳۱ومسلم رقم: ۴۴۲-۴۳۹فی الإيمان باب معنی قول الله عزوجل ﴿وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى﴾ والترمذی رقم: ۳۰۷۰فی التفسير باب ومن سورة الأنعام وباب من تفسير سورة النجم رقم: ۳۲۷۸.

[2] تهذيب الكمال: ۴۴۹/۲۵رقم الترجمة: ۵۳۲۷وتهذيب ابن حجر: ۲۴۷/۹.

[3] د شيوخ اوتلامذه دتفصيل دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۴۵۰/۲۵-۴۴۹.

[4] الجرح والتعديل: ۷ رقم الترجمة: ۱۵۹۶تهذيب الكمال: ۴۵۰/۲۵وتهذيب ابن حجر: ۲۴۸/۹.

[5] ۱۳۵/۹.

[6] تقريب التهذيب: ۱۹۲/۲رقم: ۶۰۱۸.

[7] تاريخ بغداد: ۴۲۵/۵تهذيب الكمال: ۴۵۱/۲۵تهذيب ابن حجر: ۲۴۸/۹.

[8] ددوی د حالاتودپاره اوګورئی کتاب الاستيعاب باب سوال الناس الإمام الاستسقاء.

**القاسم:** دا قاسم بن محمد بن ابى بكر صديق رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذكره كتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب....، لاندې تيره شوې ده.(۲)
**عائشه:** د ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات كتاب بدء الوحى دويم حديث لاندې تير شوى دى.(۳)
**تنبيه:** ددې حديث تفصيلى شرح به ان شاء الله باب المعراج كښې راځى.(۴)
دباب يوكم ديرشم حديث هم دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دى.

## الحديث التاسع

۳۰۶۳- حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ ابْنِ الأَشْوَعِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: فَأَيْنَ قَوْلُهُ {ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى} [النجم: ۹] قَالَتْ: «ذَاكَ جِبْرِيلُ كَانَ يَأْتِيهِ فِي صُورَةِ [ص: ۱۱۶] الرَّجُلِ، وَإِنَّهُ أَتَاهُ هَذِهِ المَرَّةَ فِي صُورَتِهِ الَّتِي هِيَ صُورَتُهُ فَسَدَّ الأُفُقَ»(۵). [۴۳۳۶، ۴۵۷۴، ۶۹۴۵، ۷۰۹۳]

## تراجم رجال

**محمدبن يوسف:** دا محمدبن يوسف بيكندى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير لاندې تيره شوې ده.(۶) ابوعلى جيانى رحمه الله هم په دې باندې جزم كړې دې.(۷)
**ابواسامه:** دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زيد كوفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب فضل من علم وعلم كښې تيرشو.(۸)
**زكريا بن ابى زائده:** دا زكريا بن ابى زائده خالد همدانى سكونى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الايمان باب فضل من استبرأ لدينه په ذيل كښې راغلې ده.(۹)
**ابن الاشوع:** دا سعيدبن عمرو بن الاشوع همدانى كوفى رحمه الله دې.(۱۰)
**الشعبى:** دا مشهور محدث عامربن شرجيل رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الايمان باب المسلم من سلم

---

(۱) كشف البارى: ۲۲۴/۳.
(۲) كشف البارى كتاب الغسل ۴۳۹.
(۳) كشف البارى: ۲۹۱/۱.
(۴) صحيح البخارى كتاب مناقب الأنصار باب المعراج.
(۵) قوله: قلت لعائشة رضى الله عنها: الحديث، مر تخريجه آنفا فى الحديث السابق.
(۶) كشف البارى: ۳۸۷/۳.
(۷) فتح البارى: ۳۱۶/۶ عمدة القارى: ۳۱۶/۱۵ تقييد المهمل للجيانى: ۵۳۸/۲.
(۸) كشف البارى: ۴۱۴/۳.
(۹) كشف البارى: ۶۷۳/۲.
(۱۰) ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الزكاة باب قوله الله تعالى عزوجل: ﴿لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾.

المسلمون من لسانه ويده لاندې تیر ه شوې ده.[1]

**مسروق:** دا مشهور محدث مسروق بن اجدع کوفی همدانی رحمة الله عليه دې. ددوی تفصيلي ذکر كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم کښې راغلې دې.[2]

دا د تيرشوی حدیث دويم طريق دې. ددې شرح به هم ان شاء الله باب المعراج کښې راځی.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ددې حديث دواړه طرق دترجمة الباب سره مناسبت لفظ جبریل کښې دې.

دباب ديرشم حديث دحضرت سمره رضي الله عنه دې.

## الحديث العاشر

٣٠٦٣ - حَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي قَالَا الَّذِي يُوقِدُ النَّارَ مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ، وَأَنَا جِبْرِيلُ وَهَذَا مِيكَائِيلُ»[3]-[ر ٨٠٩]

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسمعيل تيمى تبوذكى رحمة الله عليه دې. د دوی حالات اجمالاً بدء الوحی او تفصيلاً كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد..... په ضمن کښې راغلی دی.[4]

**جرير:** دا جرير بن حازم ازدی بصری رحمة الله عليه دې.[5]

**ابورجاء:** دا ابورجاء عمران بن ملحان عطاردی بصری رحمة الله عليه دې. ددوی تفصيلي حالات كتاب التيمم باب الصعيد الطيب وضوء المسلم.....، لاندې راغلی دی.[6]

**سمرة:** دا مشهور صحابي حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه دې. ددوی تذکره كتاب الحيض باب من سمى النفاس حيضاً په ضمن کښې راغلې ده.[7]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** دا حديث بعينه هم په دې سند سره كتاب الجنائز کښې تفصيلاً راغلې دې.[1] دلته ددې مختصر حصه د باب په مناسبت سره نقل کړې شوې ده چه په دې کښې د دريو جليل القدر فرښتو مالك جبريل او ميكائيل عليهم السلام ذکر دې.[2]

---

[1]) كشف الباري: ٢٧٩/١.

[2]) كشف الباري: ٢٨١/٢.

[3]) قوله: عن سمرة رضي الله عنه: الحديث مر تخريجه في صفة الصلاة باب يستقبل الإمام الناس إذا سلم.

[4]) كشف الباري: ٤٣٣/١ الحديث الرابع: ٤٧٧/٣.

[5]) دَدوی دَحالاتو دَپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب الخوخة والممر....

[6]) كشف الباري كتاب التيمم: ٤٠٥.

[7]) كشف الباري: كتاب الحيض: ٦٣٣.

دباب يو ديرشم حديث دحضرت ابوهريره رضی الله عنه دي.

## الحديث الحادي عشر

۳۰۶۵-حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ عَلَيْهَا لَعَنَتْهَا المَلاَئِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ» تَابَعَهُ شُعْبَةُ، وَأَبُو حَمْزَةَ، وَابْنُ دَاوُدَ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ (۳)[۴۸۹۸، ۴۸۹۷، ۴۸۹۸]

## تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد اسدی بصری رحمه الله دي. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه لاندې راغلې. (۴)

**ابوعوانه:** داابوعوانه وضاح بن عبدالله یشکری رحمه الله دي. ددوی تذکره بدء الوحی څلورم حدیث لاندې راغلې ده. (۵)

**الاعمش:** دامشهورمحدث ابومحمدسلیمان بن مهران اسدی الاعمش رحمه الله دي. ددوی حالات «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیرشوی دی. (۶)

**ابوحازم:** دا ابوحازم سلمان اشجعی رحمه الله دي. ددوی تذکره کتاب العلم باب هل یجعل للنساء یوم...؟ کښې تیره شوې ده. (۷)

**ابوهریره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دي. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیرشوی دی. (۸)

**ترجمة الباب سره مناسبت:** داحدیث کتاب النکاح کښې هم راغلې دې. (۹) دلته د ذکرکولومقصد صرف هم دغه دې چه په دې کښې د ملائکه ذکر دې.

**قوله: تابعه شعبة وأبو حمزة وابن داؤد وأبومعاوية عن الأعمش:** ائمه حدیث شعبه (۱) ابوحمزه

---

(۱) صحیح البخاری کتاب الجنائز باب بلاترجمة رقم: ۱۳۸۶.

(۲) فتح الباری: ۳۱۶/۶.

(۳) قوله: عن أبی هریرة رضی الله عنه، الحدیث: أخرجه البخاری أیضاً، فی النکاح باب إذ اهانت المرأة مهاجرة فراش زوجها رقم: ۵۱۹۴-۵۱۹۳ومسلم رقم: ۳۵۴۰-۳۵۳۸فی النکاح باب تحریم امتناعها من فراش زوجها، أبوداؤد رقم: ۲۱۴۱فی النکاح باب حق الزوج علی المرأة.

(۴) کشف الباری: ۲/۲.

(۵) کشف الباری: ۴۰۳۴/۱.

(۶) اوګورئ: کشف الباری: ۲۵۱/۲.

(۷) کشف الباری: ۱۰۱/۴.

(۸) کشف الباری: ۴۵۹/۱.

(۹) کشف الباری کتاب النکاح باب إذاهانت المرأة.... ص: ۳۳۹.

(محمدبن میمون سکری)[1] ابن داؤد (عبدالله الخریبی)[3] او ابومعاویة (محمدبن حازم)[4] رحمهم الله تولو د اعمش رحمه الله نه روایت کښې د ابوعوانه رحمه الله متابعت کړې دې.

**دمتابعات مذکوره موصولاً تخریج:** دلته امام بخاری رحمه الله د ابوعوانه د روایت څلور متابعات ذکرکړې دی. په کوم کښې چه دهریو تفصیل ترتیبوار ذکرکولې شی:

① دحضرت شعبه رحمه الله متابعت امام بخاری رحمه الله کتاب النکاح کښې موصولاً ذکرکړې دې.[5]

② د ابوحمزه رحمه الله متابعت باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی «فلم أجدها».[6]

③ د ابن داؤد رحمه الله متابعت مسدد رحمه الله په خپل مسند کبیر کښې موصولاً ذکرکړې دې.[7]

④ د ابومعاویه رحمه الله متابعت امام مسلم رحمه الله موصولاً ذکرکړې دې.[8]

دباب دوه دیرشم حدیث دحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنهما دې.

## الحديث الثاني عشر

۳۰۶۶- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "ثُمَّ فَتَرَ عَنِّي الوَحْيُ فَتْرَةً، فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي، سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ، فَرَفَعْتُ بَصَرِي قِبَلَ السَّمَاءِ، فَإِذَا المَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ، قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ، فَجُئِثْتُ مِنْهُ، حَتَّى هَوَيْتُ إِلَى الأَرْضِ، فَجِئْتُ أَهْلِي فَقُلْتُ: زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى {يَا أَيُّهَا المُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ} [المدثر: ۲] إِلَى قَوْلِهِ {وَالرِّجْزَ} [المدثر: ۵] فَاهْجُرْ"، قَالَ أَبُو سَلَمَةَ: وَالرِّجْزُ: الأَوْثَانُ[9] [ر ٤]

## تراجم رجال

**عبدالله بن یوسف:** دا عبدالله بن یوسف تنیسی دمشقی رحمه الله دې. ددوی اجمالی حالات بدء الوحی او تفصیلی حالات **کتاب العلم باب لیبلغ الشاهد الغائب** لاندې تیرشوی دی.[10]

---

[1] کشف الباری: ۶۷۸/۱

[2] ددوی دحالاتودپاره اوګورئی کتاب الغسل باب نقض الیدین من الغسل عن الجنابة.

[3] کشف الباری: ۶۳۳/٤

[4] کشف الباری: ٤/۵:۶۰

[5] صحیح البخاری کتاب النکاح باب إذ اهانت المرأة... رقم: ۵۱۹۳.

[6] فتح الباری: ۳۱۶/۶.

[7] حوالة بالا تغلیق التعلیق: ٤۹۷/۳ وهدی الساری: ٤۸.

[8] صحیح مسلم کتاب النکاح باب تحریم امتناعها من فراش زوجها رقم: ۳۵٤۱.

[9] قوله: أخبرني حابر بن عبدالله رضی الله عنهما: الحدیث، أخرجه البخاری أیضاً فی التفسیر فی مواضع متعددة سورة المدثر رقم: ٤۹۲۶-٤۹۲۲ وسورة اقرأباسم ربک..... رقم: ٤۹۵٤ وکتاب الأدب باب رفع البصر إلی السماء..... رقم: ۶۲۱٤ ومسلم فی صحیحه کتاب الإیمان باب بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم رقم: ۱۶۱-۱۶۰، ٤۱۰-٤۰۶.

[10] کشف الباری: ۲۸۹/۱ و ۱۱۳/٤.

**الليث**: دا مشهور امام ليث بن سعد فهمي رحمه الله دي.
**عقيل**: دامشهور امام حديث عقيل بن خالد رحمه الله دي.[1]
**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهري رحمه الله دي. ددې حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحی دريم حديث كښې تيره شوې ده.[2]
**ابوسلمه**: دا مشهور تابعي حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دي. ددوی تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان لاندې راغلی.[3]
**جابر**: دا مشهور صحابي رسول حضرت جابر بن عبدالله انصاری رضي الله عنه دي.[4]
**ترجمة الباب سره مناسبت**: دا حديث بدء الوحی كښې تيرشوې دې. ددې تفصيلی شرح هم شوې ده.[5] دلته د باب په مناسبت سره ذكركړې شوې دې چه په دې كښې الملك يعنی د فرښتې ذكر دې.
دباب درې ديرشم حديث دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دي.

## الحديث الثالث عشر

۳۰٦۷- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، ح وقَالَ لِي خَلِيفَةُ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي العَالِيَةِ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي مُوسَى رَجُلًا آدَمَ طُوَالًا جَعْدًا، كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، وَرَأَيْتُ عِيسَى رَجُلًا مَرْبُوعًا، مَرْبُوعَ الخَلْقِ إِلَى الحُمْرَةِ وَالبَيَاضِ، سَبِطَ الرَّأْسِ، وَرَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ، وَالدَّجَّالَ فِي آيَاتٍ أَرَاهُنَّ اللَّهُ إِيَّاهُ: {فَلَا تَكُنْ فِي مِرْيَةٍ مِنْ لِقَائِهِ} [السجدة: ۲۳]، قَالَ أَنَسٌ، وَأَبُو بَكْرَةَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَحْرُسُ المَلَائِكَةُ المَدِينَةَ مِنَ الدَّجَّالِ»[6] [۳۲۱۵، ۳۲۳۲، ٤۳٥٤، ۷۱۰۱]

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه نبی كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د معراج په شپه ما موسی عليه السلام ليدلې وو غنم رنګې، لوړ قد او ګورګوچې ويښته ئې وو داسې ښكاريدو لكه د قبيله شنوءة خوك سړې. اوما يحيی عليه السلام هم ليدلې وو، درميانه قد، غونډې ښكلې بدن، سور سپين رنګ اود سر ويښته ئې نيغ (يعنی ګورګوچې نه وو)، او ما د دوزخ داروغه هم ليدلې وو او دجال هم منجمله ددغه

---

[1] ددوی تفصيلی تذكره كتاب العلم باب فضل العلم كښې راغلی ده. كشف البارى: ۳/٤٥٥.
[2] كشف البارى: ۱/۳۲٦-۳۲۳.
[3] كشف البارى: ۲/۳۲۳.
[4] كتاب الوضوء، باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين.....
[5] كشف البارى: بدء الوحی والإيمان: ۱/٤۲۹-٤۲۱.
[6] قوله: حدثنا ابن عم نبيكم: الحديث، أخرجه البخاری فی أحاديث الأنبياء، باب قول الله تعالى ﴿وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ﴾ ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ رقم: ۳۳۹٦ ومسلم رقم: ۹٦۹-۹٦۸ كتاب الإيمان باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم إلى السموات (الحديث متفق عليه جامع الأصول: ٤/۳۹).

نښو کومې چه الله تعالی هغوی ته خودلې وې. نو «اې نبي!» دوی سره د ملاقات باره کښې تاسو په څه شك شبه کښې مه پريوخه.

## تراجم رجال

**محمدبن بشار**: دا محمدبن بشار بن عثمان بندار عبدی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب ما کان النبي صلی الله علیه وسلم یتخولهم....، لاندې تیره شوې ده.[1]

**غندر**: دا محمد بن جعفر بصری المعروف به غندر رحمه الله دې. ددوی تفصلی حالات کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم په ذیل کښې بیان کړې شوی دی.[2]

**شعبه**: دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو حالات کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې ذکر کړې شوې دی.[3]

**قتاده**: دا قتاده بن دعامه سدوسی بصری رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه په ذیل کښې راغلې ده.[4]

**خلیفه**: داخلیفه بن خیاط بصری رحمه الله دې.[5]

**یزید بن زریع**: دا یزید بن زریع بصری تمیمی رحمه الله دې.[6]

**سعید**: دا سعید بن ابی عروبه مهران یشکری بصری رحمه الله دې. ددوی د حالاتوډپاره اوګورئ کتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد......

**ابوالعالیه**: دا ابوالعالیه رفیع بن مهران ریاحی بصری رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب قول المحدث: حدثنا أوأخبرنا......، لاندې تیره شوې ده.

**ابن عم نبیکم**: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. ددوی اجمالی تذکره بدء الوحی او تفصیلی ذکر کتاب الإیمان باب کفران العشیر، وکفر....، لاندې تیرشوې دې.[7]

**تنبیه (یواهم فائده)**: د ابوالعالیه کنیت دوه راویان دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کوی. د یونوم رفیع بن مهران دې د ده نسبت ریاحی دې اود دویم نوم د اکثر علماء په نیز زیاد بن فیروز دې براء د هغه لقب دې. ده به غشی تراشل او دا دواړه بصری دی. دلته اول ذکرشوې مراد دې ددویم ذکر امام بخاری رحمه الله کتاب تقصیر الصلاة[8] کښې بیان کړې دې.[9]

---

[1] کشف الباري: ۲۵۸/۳.

[2] کشف الباري: ۲۵۰/۲.

[3] کشف الباري: ۶۷۸/۱

[4] کشف الباري: ۳/۲.

[5] ددوی د حالاتوډپاره اوګورئ کتاب الجنائز باب المیت یسمع خفق النعال.

[6] ددوی د حالاتوډپاره اوګورئ کتاب الوضوء باب غسل المني وفرکه......

[7] کشف الباري: ۱۱۴/۳.

[8] صحیح البخاري کتاب تقصیر الصلاة باب کم أقام النبي صلی الله علیه وسلم في حجته؟ رقم: ۱۰۸۵.

[9] فتح الباري: ۴۲۹/۶ کتاب أحادیث الأنبیاء، وعمدة القاري: ۱۴۶/۱۵-۱۴۵.

**یوه بله تنبیه:** حضرت امام بخاری رحمه الله دا حدیث په دوو سندونوسره روایت کړې دې او شعبه رحمه الله اوسعید بن ابی عروبه ددواړو روایتونه جمع کړی دی. ددواړو مدار قتاده رحمه الله دې. خو د حدیث ابن ابی عروبه رحمه الله الفاظ ئې ورسره ذکر کړی دی ځکه چه هغه د شعبه رحمه الله د روایت په مقابله کښې اتم اواکمل دې. علامه اسماعیلی رحمه الله لیکی: ((**جمع البخاري بين روايتي شعبة وسعيد، وساقه على لفظ سعيد، وفي روايته زيادة ظاهرة على رواية شعبة**))[1]

ددې حدیث شرح به ان شاء الله کتاب احادیث الانبیاء کښې راځی.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله کښې دې: ((**ورأيت مالكا خازن النار**)) په دې کښې د جهنم د داروغه مالك ذکر دې کوم چه د فرښتونه دې.

**قوله:: قال أنس وأبوبكرة عن النبي صلى الله عليه وسلم: تحرس الملائكة المدينة من الدجال:**

**دَ تعلیقاتو مقصد:** ددې دواړو تعلیقاتو د ذکرکولومقصد واضح دې چه په دې کښې د هغه فرښتو ذکردې چه دمدینې منورې د دجال لعین د فتنې نه به حفاظت کوی.

**دَدواړو تعلیقاتو تخریج:** د حضرت انس رضی الله عنه دا تعلیق امام بخاری رحمه الله دخپل صحیح په مختلف مقاماتو کښې موصولاً هم نقل کړې دې.چنانچه کتاب فضائل المدینة کښې په یوځائی، کتاب الفتن کښې دوه ځایه اوکتاب التوحید کښې په یومقام باندې مسنداً ذکرکړې دې.[2]

خو د حضرت ابوبکره نفیع بن الحارث رضی الله عنه تعلیق ئې کتاب فضائل المدینة اوکتاب الفتن کښې موصولاً ذکرکړې دې.[3]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې تعلیقاتو ترجمة الباب سره مناسبت بالکل ښکاره دې کوم چه په لفظ الملائکة کښې دې.

## ۸- باب: ما جاء في صفة الجنة وأنها مخلوقة

**ماقبل سره مناسبت:** دالله تعالی عزوجل دمختلف اومتنوع مخلوقاتو ذکرکیږی. تیرشوې باب د فرښتو دتخلیق اود هغوی د وجود او اثبات سره متعلق وو. په دې باب کښې د الله تعالی د پیداکړې شوی یوبل څیز چه د رب کریم د جمال صفت یوه نمونه ده ذکردې یعنی جنت. کوم چه د نیکانو خلقو د همیشه د اوسیدو ځائی دې.

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله یوه ترجمه صفت جنت سره متعلق قائم کړې ده او دویمه ترجمه

---

[1]) فتح الباری: ۳۱۷/۶.

[2]) صحیح البخاری کتاب فضائل المدینة، باب لایدخل الدجال المدینة رقم: ۱۸۸۱وکتاب الفتن باب ذکر الدجال رقم: ۷۱۲۴وباب لایدخل الدجال المدینة رقم: ۷۱۳۴وکتاب التوحید باب فی المشیئة والارادة رقم: ۷۴۷۳.

[3])صحیح البخاری کتاب فضائل المدینة،باب لایدخل الدجال المدینة رقم: ۱۸۷۹وکتاب الفتن باب ذکر الدجال رقم: ۷۱۲۵-۷۱۲۶

وراندې تلو سره صفت جهنم سره متعلق قائمه كړې ده. اولنى كه دالله تعالى د صفات جمال مظهر دې نو دويمه دهغه د صفت جلال مظهر. د دې باب دوه جزونه دى ① صفة الجنة ② أنها مخلوقة.
داول جز مطلب خودا دې چه مصنف رحمه الله به دلته مختلف احاديث او روايات نقل كوى. په كوم كښې چه به د جنت ابدى د لازوال نعمتونو ذكر خير وى. مؤمنين او مؤمناتو ته چه به كوم انعامات سرمديه هلته ملاويږى دهغې خبره به كيږى.
خو په دويم جزكښې په معتزله باندې رد كولوسره د اهل سنت والجماعة مسلك مدلل اومبرهن فرمائيلې دې. معتزله دا وائى چه جنت او دوزخ تردې وخته پورې لا پيدا شوى نه دى د قيامت په ورځ به هغه راپيدا كولې شى خواهل سنت مسلك دادې چه دا دواړه څيزونه پيدا كړې شوى دى. د امام بخارى رحمه الله مقصود هم دغه دې. حضرت مصنف رحمه الله چه د باب لاندې كوم احاديث ذكركړى دى په هغې كښې د بعض تعلق د ترجمه د اول جز سره دې چه د جنت د نعمتونو وغيره ذكر دې اود بعض تعلق دويم جز سره دې چه جنت پيدا كړې شوې دې.
**د جنت او جهنم په وجود باندې صريح دليل:** د جنت په مخلوق كيدو او موجود كيدو باندې صريح دليل د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دې كوم چه امام احمد رحمه الله او اصحاب سنن ذكركړې دې: «أن رسول الله يصلى الله عليه وسلم قال: لما خلق الله الجنة قال لجبريل اذهب، فانظر إليها، فذهب، فنظر إليها،.......»[1]
يعنى كله چه الله تعالى جنت پيدا كړو نو جبرائيل عليه السلام ته نى اوفرمائيل لاړشه اودا اوګوره. چنانچه هغه لاړو اود هغې مشاهده نى اوكړه. بيا راغلو وئى وئيل اې ربه، ستا دعزت قسم كوم يو بنده دې چه ددې باره كښې واورى اوپه دې كښې دې داخل نه شى؟....
چنانچه دا حديث په دې باره كښې صريح دې چه جنت او دوزخ دواړه پيدا كړې شوى دى.[2]
**دابن العربى رحمه الله رائې:** په اهل سنت كښې شيخ اكبر محى الدين ابن العربى رحمه الله صاحب فتوحات مكيه فرمائى چه جنت او دوزخ خو پيدا كړې شوى دى ليكن ددې تكميل نه دى شوې خكه چه ددې تكميل د بنديګانو په افعال سره كيږى. لهذا چه څنګه د بنديګانو د اعمالو تكميل كيږى هم دغه شان به ددې تعمير مكمل كيږى. ددې تائيد د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د يو روايت نه كيږى. د حضورپاك ارشاد دې چه د معراج په شپه زما حضرت ابراهيم عليه السلام سره ملاقات اوشو نو حضرت ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: «يا محمد، اقرأ أمتك منى السلام، وأخبرهم أن الجنة طيبة التربة، عذبة الماء، وأنها قيعان وأن غراسها: سبحان الله، والحمد لله، ولا إله إلا الله، والله أكبر، رواه الترمذي، وحسنه»[3] يعنى اې محمد صلى الله عليه وسلم خپل امت ته زما سلام وايه اوهغوى ته دا اوښايه چه جنت خود پاكې خاورې او خوږو اوبو والا ځائى دې اود چه هغه يوخالى ميدان دې دهغې بوټى دا كلمات دى: سبحان الله، والحمد لله.......
يعنى د دې كلماتو په وئيلو سره اوددې په ورد كولوسره په جنت كښې ونې لګى. ابن العربى ته دهغه

---

[1] الحديث أخرجه أبوداؤد كتاب السنة باب فى خلق الجنة والنار رقم: ٤٧٤٤ والترمذى كتاب صفة الجنة باب ماجاء فى صفة الجنة..... رقم: ٢٥٦٠ والنسائى كتاب الإيمان والنذور باب الحلف بعزة الله رقم: ٣٧٩٤ وأحمد فى مسنده مسند أبى هريرة ٣٣٢/٢ رقم: ٧٣٧٩ و ٣٥٤/٢ رقم: ٨٦٣٣ و ٣٧٣/٢ رقم: ٨٨٤٨
[2] فتح البارى: ٣٢٠/٦ عمدة القارى: ١٤٦/١٥ والكنز المتوارى: ١٥٩/١٣.
[3] جامع الترمذى كتاب الدعوات باب: ٦٠ بلاترجمة رقم: ٣٤٥٨ والمعجم الكبير للطبرانى: ١٧٣/١٠ رقم: ١٠٣٦٣ وفيض القدير للمناوى رقم: ٤٣٧٩.

په دې موقف باندې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی:

① بعض علماء وائی چه کیدې شی دوه جنتونه وی یو مکمل شوې وی او بل د بندیګانو په اعمالو سره مکمل کیږی.

② د علامه طیبی رحمه الله رائې داده چه د اعمال عباد سره د مکمل کولو معنی داده چه انسان څنګه اعمال کوی هم دهغې په اعتبار سره به هغوی ته تیارشوې جنت ملاویږی. جنت خود اول نه تیار شوې دې نوچه څنګه هغوی اعمال کوی دهغې مطابق به هغوی ته جنت ورکولې شی.[1]

③ خو ملاعلی قاری رحمه الله وائی چه جنت خو تیار دې لیکن ددې څه ونې جدا جدا لګیدلې دی کله چه بنده عمل کوی نوهغه اوچتولوسره په هغه علاقه کښې کومه چه ده ته ملا ویدونکې ده لګولې شی. بیا هغه هم هلته پالنه کوی. دغه شان څه ونې خو به هم هغه وی چه جنتی ته به بغیر د سبب نه ملاویږی اوڅه به هغوی ته د دغه کلماتو په وجه ورکولې شي. والله اعلم بالصواب.[2]

**قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ: ﴿مُطَهَّرَةٌ﴾ مِنَ الْحَيْضِ وَالْبَوْلِ وَالْبُزَاقِ ﴿كُلَّمَا رُزِقُوا﴾ أُتُوا بِشَيْءٍ ثُمَّ أُتُوا بِآخَرَ ﴿قَالُوا هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ﴾ أُتِينَا مِنْ قَبْلُ ﴿وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا﴾/البقرة: ۲۵/يُشْبِهُ بَعْضُهُ بَعْضًا وَيَخْتَلِفُ فِي الطُّعُومِ قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ: ﴿مُطَهَّرَةٌ﴾ مِنَ الْحَيْضِ وَالْبَوْلِ وَالْبُزَاقِ.**

حضرت ابوالعالیه رفیع بن مهران رحمه الله فرمائی چه دمطهرة معنی داده چه هغه جنتی ښځې به دمتیازو او توکانړو نه پاکې صفا وی. دا آیت مبارک ﴿وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ﴾ [3]. د لفظ مطهرة تفسیر دی.

﴿كُلَّمَا رُزِقُوا﴾ أُتُوا بِشَيْءٍ ثُمَّ أُتُوا بِآخَرَ: په دې کښې د آیت مبارک ﴿كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِزْقًا قَالُوا هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ﴾ [4]. تفسیر ذکرکړې شوې دې. ددې آیت دوه مطالب دی: ① رومبې مطلب دادې چه د جنت میوې به په کتوکښې د دنیا دمیوو په شان وی په دې وجه به هغې ته په کتو سره جنتی وائی چه دا خو هم هغه میوې دی کومې چه مونږ ته په دنیا کښې ملاؤ شوې وې. خو په جنت کښې به د دغه میوو خوند اوخصوصیات د دنیا دمیوو نه ډیرزیات وی. ② دویم مطلب دادې چه هم په جنت کښې به جنتیانوته وخت په وخت داسې میوې ورکولې شی چه په کتلوکښې به بالکل یوشان وی خو په خوند اومزه کښې به هره یوه میوه نوې وی. چنانچه په آیت کې ﴿مِنْ قَبْلُ﴾ نه مراد دنیاوی قبلیت هم کیدې شي او اخروی قبلیت هم.[5]

﴿وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا﴾...... ددې جملې مطلب اوس پورته ددویم مطلب لاندې تیر شو.

**دمذکوره تعلیق مقصد اوتخریج:** ددې تعلیق مقصد د جنت دمختلف صفاتو ذکر کول دی. اودا تعلیق ابن ابی حاتم رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله په روایت سره موصولاً ذکر کړې دې.[6]

---

[1] شرح الطیبی: ۸۶/۵کتاب الدعوات باب ثواب التسبیح..... رقم: ۲۳۲۳ وتحفة الأحوذی: ۳۹۹/۹ رقم: ۳۴۶۲ ولمعات التنقیح: ۱۳۹/۵کتاب الدعوات رقم: ۲۳۱۵.

[2] شرح الملاعلی القاری علی المشکاة: ۲۲۵/۵کتاب الدعوات باب ثواب التسبیح......

[3] البقرة: ۲۵

[4] حواله بالا

[5] عمدة القاری: ۱۴۷/۱۵فتح الباری: ۳۲۰/۶والتوضیح: ۱۱۷/۱۹.

[6] عمدة القاری: ۱۴۷/۱۵فتح الباری: ۳۲۰/۶وتغلیق التعلیق: ۴۹۹/۳.

**دتعليق مناسبت ترجمه سره:** ددې پوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت په اول جز كښې دې په هغې كښې د جنت د مختلف صفاتو ذكر دې.

**(قُطُوفُهَا) يَقْطِفُونَ كَيْفَ شَاءُوا (دَانِيَةٌ)/الحاقة: ۲۳/: قَرِيبَةٌ. (الْأَرَائِكِ)/الكهف: ۳۱/و/يس: ۵۶/: السُّرُرُ.**

**(قُطُوفُهَا) يَقْطِفُونَ كَيْفَ شَاءُوا**...... په دې عبارت كښې د آيت مبارك **(قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ)** [1] تفسير ذكركړې شوې دې. او فرمائيلي دى چه **قطوفها** د **يقطفون** معنى ده. يعنى جمله حاليه ده اود آيت معنى داده چه اهل جنت څنګه غواړى ميوې به راشوكوى اوخورى به. ميوې به ډيرې نيزدې لګيدلې وى نه به د ورتوپ كولو ضرورت اونه د ازغو ويره. [2]

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله **إسرائيل عن أبى إسحاق عن البراء** په طريق سره موصولاً نقل كړې دې. [3]

**(الْأَرَائِكِ): السُّرُرُ:** آيت مبارك **(مُتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ)** [4] طرف ته اشاره ده چه دلته د ارائك معنى سرير يعنى تخت ده. ارائك جمع ده ددې مفرد اريكة دې. ددې ډيرې معنې راځى لكه مسند ، تخت، قبه، په كوم كښې چه ناوې أوچتولې شى. دلته امام بخارى رحمه الله هم دتخت والامعنى اختياركړې ده. هسې په دې معانوكښې هيڅ اختلاف نشته دې ټولې مراد اخستې شى. [5]

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله **حصين عن مجاهد عن ابن عباس رضى الله عنهما** په طريق سره په خپل تفسير كښې موصولاً نقل كړې دې. [6] دغه شان طبرى رحمه الله هم دا موصولاً روايت كړې دې. [7]

## قوله: وَقَالَ الْحَسَنُ: النَّضْرَةُ فِي الْوُجُوهِ وَالسُّرُورُ فِي الْقَلْبِ.

اوحضرت حسن بصرى رحمه الله چه نضرة (تازه والې) په مخ باندې وى او سرور په زړه كښې. په دې كښې حضرت الامام رحمه الله د آيت **(وَلَقَّاهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا)** [8] تفسير د حضرت حسن بصرى رحمه الله په حواله سره بيان كړې دې چه د اهل جنت مخونه به تازه وى اود خوشحالئى او فرحت نه به دهغوى زړونه معمور اومسرور وى. دابه د جنتيانو شان اوصفت وى. [9]

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله د **مبارك بن فضاله عن الحسن** په طريق سره

---

[1] الحاقة: ۲۳.
[2] عمدة القارى: ۱۴۷/۱۵ فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[3] عمدة القارى: ۱۴۷/۱۵ فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[4] الدهر: ۱۳.
[5] قال ابن فارس: الأريكة: الحجلة على السرير، لاتكون إلا كذا، وقال عن ثعلب: الأريكة لا تكون إلا سريرا منجداً فى قبة، عليه سوار ومخدة. وقال ابن عزير: أرائک: أسرة فى الحجال......
[6] عمدة القارى: ۱۴۷/۱۵ فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[7] تفسير الطبرى: ۳۶۸/۱۲.
[8] سورة الدهر: ۱۱.
[9] قال العينى رحمه الله: ولقاهم أى أعطاهم بدل عبوس الفجار وحزنهم نضرة فى الوجوه وهوأثر النعمة، وحسن اللون والبهاء، وسرورا فى القلوب. عمدة القارى: ۱۴۸/۱۵.

موصولاً ذكر كړې دې. (١)

وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿سَلْسَبِيلًا﴾/الإنسان أوالدهر: ١٨/: حَدِيدَةُ الْجِرْيَةِ. ﴿غَوْلٌ﴾ وَجَعُ الْبَطْنِ ﴿يُنْزَفُونَ﴾/الصافات: ٤٧/: لاَتَذْهَبُ عُقُولُهُمْ.

اوحضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه د سلسبيل معنى ده تيزبهيدونكې. د قرآن كريم يوآيت مبارك دې. ﴿عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلًا﴾ (٢) چه په جنت كښې يوه چينه داسې ده چه د خپل تيزوالى د وجې نه به هغې ته سلسبيل ونيلى شى. د سلسبيل ډير معانې دى په كوم كښې چه يوه حضرت مجاهد رحمه الله اختيار كړې ده. ددې لفظ نورې هم معانى دى لكه.

① په آسانتى سره په حلق كښې تيريدونكې شربت، دا د امام زجاج رحمه الله مختار دې.

② بعض حضرات (عكرمه) دا د جنت د يوې چينې بعينه نوم كرځولې دې ليكن ابن الملقن رحمه الله دې ته غلط ونيلى دى چه كه چرې داسې وه نودا لفظ به منصرف نه وې. (٣)

قاضى عياض رحمه الله نقل كړى دى چه د قابسى په نسخه كښې د حديد په ځائې جريدة دې. يعنى جيم اودال مهمله سره اوددې تفسير نرم او نازك سره كړې ده. خو قاضى رحمه الله دا غلط كرځولو سره ونيلى دى چه ددې جريدة دا معنى غيرمعروف ده. (٤)

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله او سعيد بن منصور رحمه الله دواړو په خپل خپل سندسره موصولاً ذكر كړې دې. (٥)

**قوله: ﴿غَوْلٌ﴾ وَجَعُ الْبَطْنِ.** د الله تعالى ارشاد ﴿لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُونَ﴾ (٦) كښې د غول تفسير كړې دې چه ددې معنى د خيټې درد دې. مطلب په جنت كښې به څه د خيټې درد كښې اخته نه وى. دا تفسير د حضرت مجاهد رحمه الله نه روايت دې. خو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او قتاده رحمه الله فرمائى چه ددې معنى د سر درد دې. (٧)

**قوله: ﴿يُنْزَفُونَ﴾: لاَتَذْهَبُ عُقُولُهُمْ.** مذكوره پورته د آيت مبارك جمله ﴿وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُونَ﴾ تفسير بيانولې شى چه د جنت شراب څكلوسره به څوك نه بې واكه كيږى د چا په عقل كښې به خرابوالى نه راځى. د دنيا شرابو سره عقل خرابيږى د مور خور تميز نه پاتې كيږى مكر د جنت شراب به هيڅ كله داسې نه وى. دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وغيره تفسير دې. د كوم مدار چه په دې باندې دې چه

---

(١) حواله بالا، وفتح البارى: ٣٢١/٦.

(٢) سورة الدهر: ١٨.

(٣) التوضيح: ١١٨/١٩ عمدة القارى: ١٤٨/١٥ وقال الحافظ فى الفتح: ٣٢١/٦: وروى ابن أبى حاتم عن عكرمة قال: السلسبيل اسم العين المذكورة. وهو ظاهر الآية، ولكن استبعد لوقوع الصرف فيه.

(٤) فتح البارى: ٣٢١/٦ عمدة القارى: ١٤٨/١٥.

(٥) فتح البارى: ٣٢١/٦ عمدة القارى: ١٤٨/١٥.

(٦) سورة الصافات: ٤٧.

(٧) التوضيح: ١١٨/١٩ فتح البارى: ٣٢١/٦ عمدة القارى: ١٤٨/١٥.

قراءت د زاء معجمه فتحه سره ﴿يُنْزَفُونَ﴾ (مجهول) وى لكه چه په يو قراءت كښې دى. خو يو بل قراءت چه دَ حمزه او كسائى دې په هغې كښې ﴿يُنْزِفُونَ﴾ معروف راغلې دې. [1]

چنانچه د «أنزف الرجل» دوه معانى دى: ① د شرابو ختميدل، مطلب دادې چه د اهل جنت شراب به كله هم نه ختميږى هروخت به موجود وى. ② نشه به نه وى. مطلب دا چه د جنت شراب څكلوسره به نشه كيږى نه. او نه به په عقل كښې څه فتور نه راځى. [2]

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله په خپل تفسير كښې په سند متصل سره د حضرت مجاهد رحمه الله نه نقل كړې دې. [3]

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿دِهَاقًا﴾/النبأ: ۳۴/: مُمْتَلِئًا. ﴿وَكَوَاعِبَ﴾/النبأ: ۳۳/: نَوَاهِدَ. الرَّحِيقُ: الْخَمْرُ. التَّسْنِيمُ: يَعْلُو شَرَابَ أَهْلِ الْجَنَّةِ. ﴿خِتَامُهُ﴾ طِينُهُ ﴿مِسْكٌ﴾/المطففين: ۲۶/. ﴿نَضَّاخَتَانِ﴾/الرحمن: ۶۶/: فَيَّاضَتَانِ.**

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿دِهَاقًا﴾: مُمْتَلِئًا:** آيت مبارك ﴿وَكَأْسًا دِهَاقًا﴾ تفسير حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړى دى چه د دهاقا معنى ممتلئا دې. يعنى راوتونكې، ترخوكوپورې ډك جام. [4]

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله دعكرمه رحمه الله په طريق سره دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه موصولاً نقل كړې دې. [5]

طبرى رحمه الله دا په يوبل طريق سره هم موصولاً نقل كړې دې چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خپل خادم ته اووئيل مونږ باندې دهاق اوڅكوه نوهغه د څوكو پورې يوډك ګلاس راوړو راغلو نوحضرت نوش كړو. دا دهاق دې. [6]

**قوله: ﴿وَكَوَاعِبَ﴾: نَوَاهِدَ:** آيت مبارك ﴿وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا﴾ [7] لفظ كواعب تفسير ذكركوى كوم چه د كاعب جمع ده. ددې معنى ناهد ده. يعنى د اوچتو سينو والا «نهد الثدى» معنى ده. د سينو راډكيدل. دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې. [8]

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله دعلى بن ابى طلحه عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره موصولاً نقل كړې دې. [9]

---

[1] حواله جات بالا، والكشف عن وجوه القراءات: ۲۲۴/۲.
[2] التوضيح: ۱۱۹/۱۹ عمدة القارى: ۱۴۸/۱۵ والكوثر الجارى: ۱۸۶/۶.
[3] فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[4] التوضيح: ۱۱۹/۱۹ عمدة القارى: ۱۴۸/۱۵ فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[5] فتح البارى: ۳۲۱/۶.
[6] التوضيح: ۱۱۹/۱۹ عمدة القارى: ۱۴۸/۱۵ تفسير الطبرى: ۱۱/۱۲.
[7] سورة النبأ: ۳۳.
[8] فتح البارى: ۳۲۱/۶ عمدة القارى: ۱۴۸/۱۵.
[9] حواله جات بالا.

**قوله:: الرَّحِيقُ: الْخَمْرُ**: آيت مبارك ﴿رَحِيقٍ مَّخْتُومٍ﴾ [1] د لفظ رحيق تفسير فرمائي چه رحيق خمر يعني شرابو ته وائي. يعني جنتيانوته به هلته بند سر والاشراب ملاويږي. د رحيق معنى خالص هم ده. يعني خالص شراب. پورته ذكر شوي تفسير هم د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دي. [2]

**د مذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق امام طبرى رحمه الله دعلى بن ابى طلحه عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره موصولاً نقل كړې دي. [3]

**قوله:: التَّسْنِيمُ: يَعْلُو شَرَابَ أَهْلِ الْجَنَّةِ**: آيت مبارك ﴿وَمِزَاجُهُ مِن تَسْنِيمٍ﴾ [4] تفسير كولې شي چه پورته دكومو شرابو ذكر تيرشو په هغې كښې به د تسنيم آميزش او ملاوټ وى. دا «يعلو شراب أهل الجنة» كښې بيان كړې دي.

**تسنيم څه څيز دې؟**: اوس دا تسنيم څه څيزدې؟ نوددې وضاحت په وړاندې آيت كښې اوكړې شو چه د يوې چينې يا نهر نوم دې چه د اوچت ځائى نه لاندې طرف ته رابهيدونكى شرابو يوه چينه به وى. د كوم خوند او خوشبوئى لطافت او د تصور احاطه نه بالاترخبره ده. دا به خالص د مقربين حضراتو دپاره وى. خود اصحاب اليمين په رحيق شرابو كښې به ددې هم ملاوټ وى. [5]

**د مذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق عبدبن حميد رحمه الله په صحيح سند سره د سعيدبن جبير عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره موصولاً نقل كړې دي. دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه هم دغه نقل دى. [6]

﴿خِتَامُهُ﴾ ﴿طِينَتُهُ﴾ ﴿مِسْكٌ﴾ دكوم مهر چه به مشك وى. پورته د كوم رحيق شرابو ذكر چه تيرشو دهغې باره كښې فرمائي چه دا به سربمهر كولې شي د مهرلگولودپاره به مشك استعمالولې شي. په دې سره به د څه قسم هوا او دورې څه اثر هم نه وى. امام بخارى رحمه الله ختامه معنى طينة اختياركړې ده چه د شرابو بوتلې بندولودپاره چه كومه مساله استعماليږى هغه به مشك وى [7]

**د مذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دي. [8]

**قوله:: ﴿نَضَّاخَتَانِ﴾: فَيَّاضَتَانِ** آيت مبارك ﴿فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ﴾ [1] تفسير فرمائي. عين د نضاخة په معنى كښې دې هغه تيزه چينه دكوم نه چه اوبه ډيرې او په جوش سره راخوټكيږى. هم دا امام بخارى رحمه الله فياضتان سره تعبير كړې دې. [2]

---

[1] سورة المطففين: ۲۵.

[2] عمدة القاري: ۱۴۹/۱۵.

[3] حواله جات بالا فتح الباري: ۳۲۱/۶.

[4] سورة المطففين: ۲۶.

[5] التوضيح: ۱۱۹/۱۹ عمدة القاري: ۱۴۹/۱۵ ومعارف القرآن للكاندهلوى بتصرف: ۴۰۷/۸.

[6] التوضيح: ۱۱۹/۱۹ عمدة القاري: ۱۴۹/۱۵ فتح الباري: ۳۲۱/۶.

[7] حوالا بالا والكوثر الجاري: ۱۸۷/۶.

[8] عمدة القاري: ۱۴۹/۱۵ فتح الباري: ۳۲۱/۶.

**د مذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله د على بن ابى طلحه عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره موصولاً روايت كړې دې.[3]

**يَقَالُ: ﴿مَّوْضُونَةٍ﴾/الواقعة: ۱۵/: مَنْسُوجَةٌ، مِنْهُ وَضِينُ النَّاقَةِ. وَالْكُوبُ: مَا لَا أُذُنَ لَهُ وَلَا عُرْوَةَ، وَالْأَبَارِيقُ: ذَوَاتُ الْآذَانِ وَالْعُرَى ﴿عُرُبًا﴾/الواقعة: ۳۷/: مُثَقَّلَةٌ، وَاحِدُهَا عَرُوبٌ، مِثْلُ صَبُورٍ وَصُبُرٍ، يُسَمِّيهَا أَهْلُ مَكَّةَ الْعَرِبَةَ، وَأَهْلُ الْمَدِينَةِ الْغَنِجَةَ، وَأَهْلُ الْعِرَاقِ الشَّكِلَةَ.**

**قوله: يَقَالُ: ﴿مَّوْضُونَةٍ﴾: مَنْسُوجَةٌ، مِنْهُ وَضِينُ النَّاقَةِ**: په دې كښې د الله تعالى ارشاد ﴿عَلٰى سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ﴾ طرف ته اشاره فرمائيلې شوې ده چه موضونة معنى منسوجه ده. يعنى دهغوى پالنګونه به د سرو زرو يا ياقوتو او مرغلرو سره ښانسته كړې شوى وى. ((وضن السرير بالجوهر))، د باب ضرب نه وضناً په معنى كښې دې. په تخت وغيره كښې مرغلرې پيلل دا سې وضين الناقة هم دې يعنى د اوښې جلب، ددې جمع وُضُن ده.[4]

**د مذكوره تعليق تخريج**: دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله د عكرمه رحمه الله نه روايت كړې دې.[5] بل دا تفسير ابو عبيده رحمه الله المجاز كښې ذكر كړې دې.[6]

**قوله: وَالْكُوبُ: مَا لَا أُذُنَ لَهُ وَلَا عُرْوَةَ، وَالْأَبَارِيقُ: ذَوَاتُ الْآذَانِ وَالْعُرَى**: كوب هغه پياله په كوم كښې چه نه ټوټنى اونه كنډه وى او اباريق د كومې لوټې چه ټوټنى هم وى او كنډې هم. دا د امام فراء رحمه الله قول دې او ددې عبارت په ذريعه امام بخارى رحمه الله آيت مبارك ﴿بِأَكْوَابٍ وَّأَبَارِيقَ ۙ وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ﴾[7] طرف ته اشاره كړې ده. **اكواب** جمع ده د **كوب**، د كوم چه ټوټنى اوكنډه نه وى. يو قول دادې چه ګول پياله د كومې چه كنډه نه وى ددې جمع الجمع **اكاويب** ده.[8]

**﴿عُرُبًا﴾: مُثَقَّلَةٌ، وَاحِدُهَا عَرُوبٌ، مِثْلُ صَبُورٍ وَصُبُرٍ.......**: آيت مبارك ﴿عُرُبًا أَتْرَابًا﴾[9] لفظ عربا تحقيق بيانولې شى چه عربا د عروب جمع ده لكه چه صبر د صبور جمع ده. دا قول د فراء رحمه الله نحوى قول دې كوم چه امام بخارى رحمه الله اختيار كړې دې.[10] مګر علامه كورانى حنفى رحمه الله فرمائى چه ددې معنى داده

---

[1]) سورة الرحمن: ۶۶

[2]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵ والقاموس الوحيد، مادة: نضخ.

[3]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵ فتح البارى: ۳۲۲/۶.

[4]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵ التوضيح: ۱۲۰/۱۹ والقاموس الوحيد، مادة: وضن.

[5]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵.

[6]) فتح البارى: ۳۲۲/۶ ومجاز القرآن: ۲۴۸/۲.

[7]) سورة الواقعه: ۱۸.

[8]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵ فتح البارى: ۳۲۲/۶.

[9]) سورة الواقعة: ۳۷.

[10]) عمدة القارى: ۱۴۹/۱۵ فتح البارى: ۳۲۲/۶.

چه ددې راء متحرکه ده ساکن نه ده. بل دا لازم هم ده ځکه چه حمزه رحمه الله او ابوبکر رحمه الله په قراءت کښې په سکون د راء دې. ددوی رائې ډيره مناسبه معلوميږی. والله اعلم. (١)

**بُسَمِّيهَا أَهْلُ مَكَّةَ**......... اوس د عروب څه معنی ده؟ نوامام بخاری رحمه الله د مختلف علاقو په اعتبارسره ددې معنی بيان کړه چه اهل مکه داسې ښځې ته عروبه ، اهل مدينه غنجه او اهل عراق شکله سره په نوم کوی. عربه يا عروب د خاوند خوښه بی بی چه د خپل خاوند انداز په ښه طريقه باندې پوهيږی او پوره پوره دهغې خيال ساتی. غنجه: د ناز اونخرې والا ښځه. او شکله: د نخرو والا ښځه. حاصل چونکه دټولو تقريباً يو دې په دې وجه علامه کورانی رحمه الله فرمانی «ومحصل الکل أنها ذات دلال ولطف خلق» (٢)

**وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿رَوْحٌ﴾/الواقعة: ٨٩/: جَنَّةٌ وَرَخَاءٌ، وَالرَّيْحَانُ الرِّزْقُ. وَالْمَنْضُودُ الْمَوْزُ. وَالْمَخْضُودُ الْمُوقَرُ حَمْلاً، وَيُقَالُ أَيْضًا: لاَ شَوْكَ لَهُ. وَالْعُرُبُ: الْمُحَبَّبَاتُ إِلَى أَزْوَاجِهِنَّ. وَيُقَالُ: ﴿مَسْكُوبٍ﴾/الواقعة: ٣١/: جَارٍ. ﴿وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ﴾/الواقعة: ٣٤/: بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ. ﴿لَغْوًا﴾ بَاطِلاً ﴿تَأْثِيمًا﴾/الواقعة: ٢٥/: كَذِبًا. ﴿أَفْنَانٍ﴾/الرحمن: ٤٨/: أَغْصَانٌ. ﴿وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ﴾/الرحمن: ٥٤/: مَا يُجْتَنَى قَرِيبٌ. ﴿مُدْهَامَّتَانِ﴾/الرحمن: ٦٤/: سَوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ.**

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿رَوْحٌ﴾: جَنَّةٌ وَرَخَاءٌ، وَالرَّيْحَانُ الرِّزْقُ:** په دې عبارت کښې آيت مبارک ﴿فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ﴾ تفسير کولې شی چه امام بخاری د روح معنی جنت، آسانی اونرمی اود ريحان معنی رزق سره کړې ده. بعض حضراتو د روح معنی بادنسيم او مزيدارې هوا سره هم کړې ده (٣)

**دمذکوره تعليق تخريج:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا تفسيری اثر فريابی رحمه الله بيهقی رحمه الله عبدبن حميد رحمه الله او ابونعيم رحمه الله وغيره ټولو په خپل خپل متصل سندسره موصولاً نقل کړې دې. (٤)

**وَالْمَنْضُودُ الْمَوْزُ. وَالْمَخْضُودُ الْمُوقَرُ حَمْلاً، وَيُقَالُ أَيْضًا: لاَ شَوْكَ لَهُ:**

**د شراح کرام مختلف رائې:** په دې عبارت کښې آيات مبارکه ﴿فِي سِدْرٍ مَخْضُودٍ وَطَلْحٍ مَنْضُودٍ﴾ (٥) طرف ته اشاره کولوسره امام بخاری رحمه الله ددې تفسير کوی. چنانچه هغوی د منضود معنی موز يعنی کيلا بيان کړې ده. دا قاضی عياض تخليط او تسامح ګرځولې ده چه امام بخاری رحمه الله دلته د آيات معانی خلط کړې دی ځکه چه د منضود معنی هيڅ کله کيلا نه ده بلکه ددې معنی خو مرتب او قط په قط ده. البته طلح ته موز ونيلو کښې څه حرج نشته دې مګر منضود بهرحال موز نه دې. علامه عينی رحمه الله هم د قاضی صاحب تائيد کولوسره په حافظ صاحب باندې رد کړې دې اووئيلی دی چه د قاضی صاحب خبره صحيح ده. (٦)

---

(١) الکوثر الجاری: ٦/١٨٧.

(٢) حواله بالا. نور اوګورئی عمدة القاری: ١٥/١٤٩ فتح الباری: ٢/٣٢٢ التوضيح: ١٩/١٢٠ کشف الباری کتاب التفسير سورة الواقعة: ٦٥٨

(٣) عمدة القاری: ١٥/١٥٠.

(٤) عمدة القاری: ١٥/١٥٠ فتح الباری: ٦/٣٢٢.

(٥) سورة الواقعة: ٢٩-٢٨.

(٦) عمدة القاری: ١٥/١٥٠ فتح الباری: ٦/٣٢٢.

دحضرت ګنګوهي رحمه الله چه په دې مقام باندې کوم تقریر دې هغه ددې تولو اعتراضونو حل دې په کوم سره چه خبره بې دوړو کیږی هغوی فرمائی: ((يعنى بذلك (الموز) تفسير الطلح، لا المنضود، فمراده بذلك أن المنضود صفة للموز، المعبر عنه بالطلح))[1] يعنى امام بخارى رحمه الله لفظ موز ذکر کولوسره د طلح تفسیر کړې دې نه چه د منضود، نو دهغوی مراد ددې نه دادې چه منضود د موز صفت دې نه چه عین موز، کوم چه په طلح سره تعبیر کړې شوې دې. چنانچه موز د طلح تفسیر دې منضود ددې صفت دې. د کوم معنی چه قط په قط اومرتب ده. دا هلته کیږی چرته چه د یوڅیز کثرت وی چه بیا هغه په ترتیب کولوسره کیخودې شی. مطلب دا چه هلته به د کیلو بې انتها زیاتوالې او فراوانی وی. والله اعلم.[2]

په اول آیت کښې ﴿ سِدْرٍ مَّخْضُودٍ ﴾ یعنی د بیرې ونې په کوم چه به ازغی نه وی اود ازغو په ځائې به هم تولې بیرې وی. د بیرې په ونه کښې ازغی ډیر زیات وی خو په جنت کښې د اغو څه کاردې؟ په دې وجه به هلته د دې په ځائې هم بیرې وی. ونې به د میوو نه ډکې وی. هم دا په الموقر حملا سره تعبیر کړې دی. یعنی د بوج نه ډکې اود ونې بوج هم دهغې میوه وی. والله اعلم.[3]

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق امام فریابی رحمه الله اوعلامه بیهقی رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله نه موصولاً نقل کړې دې.[4]

**قوله:: وَالْعُرُبُ: الْمُحَبَّبَاتُ إِلَى أَزْوَاجِهِنَّ:** ددې جملې شرح اوس شاته ﴿ عُرُبًا أَتْرَابًا ﴾ په توضیح کښې شوې ده.

**دمذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق عبدبن حمید رحمه الله فریابی رحمه الله اوطبری رحمه الله وغیره تولو د حضرت مجاهد رحمه الله وغیره په طریق سره نقل کړې دې. د حضرت ام المؤمنین ام سلمه رضی الله عنها نه هم په دې معنی کښې یومرفوع حدیث هم نقل دې. کوم چه طبری روایت کړې دې.[5]

**قوله:: وَيُقَالُ: ﴿مَّسْكُوبٍ﴾: جَارٍ:** آیت مبارك ﴿ وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ﴾[6] تفسیر بیان کړې دې چه د مسکوب معنی جاری اوساری ده. سکب الماء سکبا وسکوبا د اوبو وغیره بهیدل، د پورته نه ښکته پریوتلوده. لفظ مسکوب ذکر کولوحکمت او وجه داده چه هغه اوبه به په تیزئنې سره بهیږی نو ډیرې صفا اوستره به هم وی. علامه عینی رحمه الله فرمائی: ((وأراد به أنه قوي الجري، كأنه يسكب سكبا))[7]

---

[1]) الكنز المتواري: ١٣/١٦٠.

[2]) عمدة القاري: ١٥/١٥٠.

[3]) عمدة القاري: ١٥/١٥٠فتح الباري: ٦/٣٢٢التوضيح: ١٩/١٢١.

[4]) فتح الباري: ٦/٣٢٢وكتاب البعث والنشور للبيهقي: ١٨٨ باب ماجاء فى أشجار الجنة......

[5]) طبري: ٢٧/١٠٨فتح الباري: ٦/٣٢٣.

[6]) سورة الواقعة: ٣١.

[7]) عمدة القاري: ١٥/١٥٠.

[وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ] (۱)[بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ] او بسترې به وى ډيرې اوچتې يود بل د پاسه. د جنت د بسترو باره كښې فرمائيلى دى چه هغه څنګه د حسى اوچتوالى حامل وى هم هغه شان به معنوى عظمت او اوچتوالى هم هغه بسترو ته حاصل وى.
ابوعبيد رحمه الله المجاز كښې ليكي چه د المرفوعة معنى العالية ده. چنانچه دا د بناء مرتفع معنى ده بناء عال. (۲) دحضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه په ترمذى او ابن حبان كښې يو روايت دې د كوم مطابق چه ددې اوچتوالې به د پنځو سوو كالو په مسافت كښې وى. (۳)
**ددوارو تعليقاتو تخريج:** دا تعليق اوددې نه وړاندې تعليق دواړه حضرت مجاهد رحمه الله نه امام فريابى رحمه الله موصولاً نقل كړى دى. (۴)

**قوله: ﴿لَغْوًا﴾ بَاطِلاً ﴿تَأْثِيمًا﴾: كَذِبًا:** آيت مبارك ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا﴾ (۵)ددې دوو كلماتو توضيح فرمائى چه د لغو معنى باطل او د تاثيم معنى دروغو ده. (۶)
مطلب دادې چه په جنت كښې به فضوليات اولغويات وى نه دروغ اودهو كه ځكه چه دا ټول څيزونه د باطل ګندګئى آثار اوثمرات دى او جنت دار الطيبين دې. ((لايدخلها إلا الطيبون)).
**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق فريابى رحمه الله دحضرت مجاهد رحمه الله نه موصولاً روايت كړې دې. (۷)

**قوله: ﴿أَفْنَانٍ﴾: أَغْصَانٌ:** د آيت مبارك ﴿ذَوَاتَا أَفْنَانٍ﴾ (۸)تفسير كولې شى. ددې آيت دوه تفسيرونه دى. يو د حضرت عكرمه رحمه الله اومجاهد رحمه الله كوم چه امام بخارى رحمه الله اختيار كړې دې اودويم د امام ضحاك رحمه الله. دحضرت عكرمه رحمه الله مطابق أفنان د فنن جمع ده اوددې معنى أغصان (ښاخونه) دى. مطلب دا چه په جنتيانو كښې به د اوچتې درجې متقيانو ته چه كوم دوه جنتونه وركولې شى هغه به د ډيرو ښاخونو والاوى. اوحضرت ضحاك رحمه الله د دې معنى ألوان كوى. د هغوى په نيز دا د فن جمع ده نومطلب به داشى چه دواړه جنتونه به د مختلف قسم او انواع په ميوو باندې مشتمل وى. (۹)

---

(۱) سورة الواقعة: ۳٤
(۲) عمدة القارى: ۱٥/۱٥۰فتح البارى: ٦/۳۲۲ومجاز القرآن: ۲/۲٥۰سورة الواقعة: ۳٤.
(۳) سنن الترمذى أبواب صفة الجنة باب ماجاء فى صفة ثياب أهل الجنة رقم: ۲٥٤۰وأبواب تفسير القرآن باب ومن سورة الواقعة رقم: ۳۲۹٤وصحيح ابن حبان: ۱٦/٤۱۹-٤۱۸كتاب إخباره صلى الله عليه وسلم عن مناقب الصحابة باب وصف الجنة..... ذكر الإخبار عن الفرش التى أعدهاالله..... رقم: ۷٤۰٥.
(۴) فتح البارى: ٦/۳۲۳.
(۵) سورة الواقعة: ۲٥.
(۶) عمدة القارى: ۱٥/۱٥۰فتح البارى: ٦/۳۲۳.
(۷) عمدة القارى: ۱٥/۱٥۰فتح البارى: ٦/۳۲۳.
(۸) سورة الرحمن: ٤۸.
(۹) عمدة القارى:۱٥/۱٥۱فتح البارى: ٦/۳۲۳التوضيح: ۱۹/۱۲۲.

**قوله**: ﴿وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ﴾ [1]: مَا يُجْتَنَى قَرِيبٌ منها: اوددې دواړو باغونو ميوې به ډيرې نيزدې وي يعنی ددې نه چه کومې ميوې راشوکولې شی هغه به ډيرې نيزدې وی. حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی: «ثمارها دانية، لايرد هم عنها بُعْدٌ ولا شوك» [2] دا تفسير هم دحضرت مجاهد رحمه الله نه روايت دې. دا امام طبری رحمه الله موصولاً ذکر کړی دې. [3]

**قوله**: ﴿مُدْهَامَّتَانِ﴾ [4]: سَوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ: هغه دواړه جنتونه به د شينوالی دَ شدت او زياتوالی د وجې نه تك تور وی. شينوالې چه کله ډير زيات شی نوهغه توربخن کيږی لکه چه مشاهده هم ده. هم دا ﴿مُدْهَامَّتَانِ﴾ سره تعبير کړې شوې دی چه دشينوالی د شدت د وجې نه ددې شينوالې تور شان معلوميږی. [5]

**دَمذکوره تعليق تخريج**: دا تعليق امام فريابي رحمه الله دحضرت مجاهد نه موصولاً روايت کړې دې. خو الفاظ لږشان مختلف دی. والله اعلم. [6]

**ترجمة الباب سره دَ اياتونو مناسبت**: ترجمة الباب لاندې چه امام بخاری رحمه الله ډير آياتونه سره د تفسير ذکر کړی دی دهغې د شرح نه به دا خبره واضحه شوې وی چه د دې ټولو آياتونو مناسبت د ترجمې جزء اول سره دی. په دې ټولو کښې د جنت اودهغه ځائی د هميشه والی د نعمتونو مختلف صفات ذکرشوی دی. والله اعلم بالصواب. دې نه پس په دې خبره باندې پوهه شئی چه ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله ۱۶ أحاديث ذکر کړی دی. په کوم کښې چه اولنې حديث د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دې.

## الحديث الاول

۳۰۶۸- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ، فَإِنَّهُ يُعْرَضُ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالعَشِيِّ، فَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الجَنَّةِ، فَمِنْ أَهْلِ الجَنَّةِ، وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ» [7]-[ر ۱۳۱۳]

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه کله په تاسو کښې څوك انتقال کيږی نو (په قبر کښې) سحر ماښام هغه ته د هغه مقام خودلې شی. چنانچه که چرې هغه

---

[1] الرحمن: ٥٤.
[2] عمدة القارى:١٥/١٥١ التوضيح: ١٩/١٢٢.
[3] عمدة القارى:١٥/١٥١فتح البارى: ٦/٣٢٣.
[4] الرحمن: ٥٦.
[5] عمدة القارى:١٥/١٥١ فتح البارى: ٦/٣٢٣التوضيح: ١٩/١٢٢.
[6] فتح البارى: ٦/٣٢٣.
[7] قوله: عن ابن عمر رضى الله عنهما: الحديث، مرتخريجه كتاب الجنائز باب الميت يعرض....

جنتي وى نود جنت والو شان هغه ته معلوم شو او كه چرې دوزخي وى نود دوزخيانو حال هغه ته اوخودلې شو.[1]

## تراجم رجال

**احمدبن يونس:** دا احمد بن عبدالله بن يونس يربوعى رحمه الله دې. ددوى حالات **كتاب الايمان باب من قال: إن الايمان هوالعمل** لاندې تيرشوى دى.[2]

**الليث بن سعد:** دا مشهور امام ليث بن سعد فهمى رحمه الله دې. ددوى مختصر ذكر بدء الوحى دريم حديث لاندې راغلې دې.[3]

**نافع:** دا مشهور تابعى محدث حضرت نافع مولى ابن عمر رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد** په ذيل كښې راغلى دى.[4]

**عبدالله بن عمرk:** دا مشهور صحابى رسول حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې. ددوى حالات **كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام.....** لاندې ذكركړې شوى دى.[5]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت په جزء ثانى كښې دې. په دې سره د جنت او دوزخ وجود ثابتيږى. ښكاره خبره ده كه چرې دا دواړه موجود نه وى نودخودلو څه معنى؟

دباب دويم حديث دحضرت عمران بن حصين رضي الله عنه دې.

### الحديث الثاني

۳۰۶۹- حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «اطَّلَعْتُ فِي الجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الفُقَرَاءَ، وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ»[6] [۶۱۸۰، ۶۰۸۴، ۴۹۰۲]

## تراجم رجال

**ابوالوليد:** دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات **كتاب الايمان باب علامة الايمان حب الأنصار** كښې تيرشوى دى.[1]

---

[1] قال الحنفى فى شرح "فإن كان من أهل الجنة/....": أى فقد بلغك شأن أهل الجنة، كما تقدم من قوله: "فمن كانت هجرته إلى الله ورسوله...." الكوثر الجارى: ۱۸۸/۶.

[2] كشف البارى: ۱۵۹/۲.

[3] كشف البارى: ۳۲٤/۱.

[4] كشف البارى: ٤/۶۵۱.

[5] كشف البارى: ۶۳۷/۱

[6] قوله: عن عمران بن حصين: الحديث، رواه البخارى فى النكاح باب كفران العشير. رقم: ۵۱۹۸وفى الرقاق، باب فضل الفقر رقم: ۶٤٤۹وباب صفة الجنة والنار رقم:۶۵٤۶والترمذى فى صفة جهنم باب ماجاء أن أكثر أهل النار النساء رقم: ۲۶۰۶-۲۶۰۵

**سلم بن زرير**: دا ابویونس سلم بن زریر عطاردی بصری رحمه الله دې. (۲) دې د برید بن ابی مریم سلولی، خالد الاحدب، عبدالرحمن بن طرفه، ابورجاء عطاردی او ابوغالب رحمهم الله نه د حدیث روایت کوی. اوددوی نه حبان بن هلال، سعید بن سلیمان، ابوقتیبه سلم بن قتیبه، ابوداؤد طیالسی، سهل بن تمام بن بزیع، ابوعلی حنفی، ابوالولید هشام بن عبدالملک طیالسی او یعقوب بن حضرمی رحمهم الله وغیره د حدیث روایت کوی. (۳) امام ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی: «**ثقة، ما به بأس**» (۴) امام ابوزرعه رازی رحمه الله فرمائی «**صدوق**» (۵) امام عجلی رحمه الله فرمائی: «**فی عداد الشیوخ، ثقة**» (۶) خویل طرف ته ائمه حدیث نه یحیی بن معین، یحیی بن سعید، ابوداؤد، نسائی او ابن حبان رحمهم الله وغیره سلم بن زریر ضعیف گرځوی. (۷) تردې چه ابن حبان رحمه الله خو دومره پورې ونیلی دی چه: «**یخطئ خطأ فاحشا، لا یجوز الاحتجاج به إلا فیما یوافق الثقات**» (۸) چه فحش غلطیانې کوی په دې وجه هغه سره احتجاج صحیح نه دې، خو بیا هم که د ثقات موافقت وی نو هم څه حرج نشته.

**اوس دلته دوه خبرې دی**: ① سلم رحمه الله متفق علیه ضعیف راوی نه دې. چرته چه ددوی تضعیف کړې شوې دې هلته ددوی توثیق هم روایت کړې شوې دې. په دې وجه ده ته ناقابل احتجاج او استدلال نه شی ونیلې.

② دحضرت یحیی بن معین رحمه الله چه ترکومې د ده د ضعیف گرځولو تعلق دې نوددې باره کښې امام حاکم رحمه الله فرمائیلی دی چه امام بخاری رحمه الله د دوی روایات اصالةً او امام مسلم رحمه الله د شواهد په توگه نقل کړی دی. اود امام یحیی رحمه الله ده ته ضعیف ونیل په دې معنی دی چه سلم بن زریر د علم حدیث سره مشغولیت هم ډیر کم لرلو اود ده د روایاتو تعداد هم کم دې. اودَ علم سره د هغه شوق هم څه خاص نه وو په دې وجه ئی ورته ضعیف اوونیل گنی د ده د مرویات ډیر بنه دی او ټول په ټول صحیح دی. ما د ده ټول احادیث د حافظ ابوعلی رحمه الله په وړاندې لوستلی دی چه ټول اتلس (۱۸) وو. (۹)

دغه شان ابن عدی رحمه الله فرمائی چه مرویات ئی ډیر کم دی بل ددې تعداد دومره نه دې چه هغه بنیاد جوړولو سره سلم بن زریر رحمه الله ته ضعیف اوونیلې شی. (۱۰) امام ابن حبان رحمه الله سره ددې چه په هغه باندې جرح کړې ده خوهم ددوی نه د هغوی توثیق هم نقل دې. چنانچه کتاب الثقات کښې د هغه

---

(۱) کشف الباری: ۳۸/۲.

(۲) تهذیب الکمال: ۲۲۲/۱۱ رقم الترجمة: ۲۴۲۸ وتهذیب التهذیب: ۱۳۰/۴ وفی تاریخ البخاری الکبیر: ۱۵۸/۴ وقال ابن مهدی: سلم بن رزین. والصحیح زریر.

(۳) دَ شیوخ اوتلامذه دَپاره اوگورئی تهذیب الکمال: ۲۲۲/۱۱.

(۴) تهذیب الکمال: ۲۲۳/۱۱ تهذیب التهذیب: ۱۳۰/۴ والجرح والتعدیل: ٤ رقم الترجمة: ۱۱٤۲.

(۵) حواله جات بالا.

(۶) تهذیب الکمال: ۲۲۳/۱۱ تهذیب التهذیب: ۱۳۰/٤.

(۷) حواله جات بالا. والضعفاء للنسائی: ۳۶ وسؤالات الآجری: ۳ رقم الترجمة: ۳۰۲.

(۸) کتاب المجروحین: ٤۳۶/۱ رقم الترجمة: ٤۳۳ وتعلیقات تهذیب الکمال: ۲۲۳/۱۱ وإکمال مغلطای: ٤۲۷/۵.

(۹) إکمال مغلطای: ٤۲۹/۵ وهدی الساری: ۵۷۷ الفصل التاسع، فی سیاق من طعن فیه...... حرف السین. تعلیقات تهذیب الکمال: ۲۲۳/۱۱.

(۱۰) تهذیب الکمال: ۲۲۳/۱۱ والکامل لابن عدی: ۳۲۷/۳ رقم: ۷۸۰.

ترجمه نقل كولوسره هغه سكوت اختيار كړې دې كوم چه د ثقاهت دليل دې.[1] بيا سلم بن زرير رحمه الله د بخارى شريف، مسلم اونسائى راوى دې. چه پخپله هم د يوقسم توثيق دې.[2]
فرض كړه كه دې متكلم فيه او ضعيف هم اومنلې شى نو په صحيح بخارى كښې د دوى تول درې روايتونه دى. په كوم كښې چه دوه د شاهد اومتابعت په توګه دى. يو په صلاة كښې تيرشوې دې او يو حديث باب دې او يو حديث نى اصالةً ذكر كړې دې. د كوم تعلق چه ابن صياد سره دې چه حضورپاك هغوى ته فرمائيلى وو «خبأت لك خبيئًا»،[3] دا هم څه ضعيف روايت نه دې مشهور حديث دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ددې حديث ډير شواهد دى. والله الموفق[4] په دې وجه په امام بخارى رحمه الله باندې خو څه اعتراض نه شى كيدې.
اوس خلاصه دا شوه چه سلم بن زرير رحمه الله څه ضعيف راوى نه دې بلكه قابل د احتجاج او استدلال دې. البته د رواياتو د كمى د وجې نه هغه ته مطعون ونيلې شوې دې چه هيڅ كله د طعن وجه نه ده. په ۱۶۰ هجرى كښې ددوى انتقال شوې. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.[5]
**ابورجاء:** دا ابورجاء عمران بن ملحان عطاردى بصرى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب التيمم باب الصعيد الطيب وضوء المسلم.....** لاندې راغلى دى.[6]
**عمران بن حصين:** دامشهور صحابى ابونجيد عمران بن حصين خزاعى رضى الله عنه دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب التيمم باب الصعيد الطيب وضوء المسلم.....** لاندې تيرشوى دى.[7]
**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حديث دترجمې د دويم جزء سره مطابقت په دې جمله كښې دې «**اطلعت فى الجنة**» ځكه چه په دې كښې صريح دلالت دې چه حضورپاك عليه السلام كله جنت اوليدلو نوهغه موجود وو. ظاهره خبره ده چه هم موجود شى ليدلې كيږى او په هغې كښې نظر كولې شى.[8]
د باب دريم حديث دحضرت ابوهريره رضى الله عنه دې.

## الحديث الثالث

۳۰۷۰- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذْ قَالَ: "بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي فِي الْجَنَّةِ، فَإِذَا امْرَأَةٌ تَتَوَضَّأُ إِلَى جَانِبِ

[1] كتاب الثقات: ۴۲۱/۶ رقم: ۸۳۸۴
[2] تهذيب الكمال: ۲۲۳/۱۱.
[3] صحيح البخارى كتاب الأدب باب قول الرجل للرجل: اخسأ، رقم: ۶۱۷۲
[4] هدى السارى: ۵۷۷.
[5] إكمال مغلطاى: ۴۲۸/۵ وخلاصة الخزرجى: ۱۴۶ وتهذيب التهذيب: ۱۳۱/۴.
[6] كشف البارى كتاب التيمم: ۴۰۵.
[7] كشف البارى كتاب التيمم: ۴۱۰-۴۰۵.
[8] فتح البارى: ۳۲۳/۶.

قَصْرٍ فَقُلْتُ: لِمَنْ هَذَا الْقَصْرُ؟ فَقَالُوا: لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَهُ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا، فَبَكَى عُمَرُ وَقَالَ: أَعَلَيْكَ أَغَارُ يَا رَسُولَ اللَّهِ" [1][٣٤٧٧، ٤٩٢٩، ٦٢٢٠، ٦٦٢٢]

## تراجم رجال

**سعيد بن ابى مريم:** دا سعيد بن الحكم بن محمدبن ابى مريم جمحى بصرى رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من سمع شيئا فراجع..... ، لاندې راغلى دى.[2]

**الليث:** دا مشهور امام ليث بن سعد فهمى رحمه الله دي.

**عقيل:** دامشهور امام حديث عقيل بن خالد رحمه الله دي.[3]

**ابن شهاب:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددې حضزاتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.[4]

**سعيدبن مسيب:** دا سعيد بن مسيب بن حزن قرشى مخزومى رحمه الله دي. ددوى حالات **كتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هوالعمل** لاندې تيرشوى دى.[5]

**ابوهريره:** د صحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات **كتاب الإيمان باب أمور الإيمان** كښې تير شوى دى.[6]

داحديث كوم چه دحضرت عمر رضي الله عنه په فضيلت باندې مشتمل دې ددې تفصيلى شرح كتاب الفضائل او كتاب النكاح كښې شوې ده.[7] عليهم السلام

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله كښې دې «رأيتنى فى الجنة» چه ما خپل ځان په جنت كښې اوليدلو دا اګرچه د خوب واقعه ده مګر د انبياء كرام عليهم السلام خوب حجت وى چنانچه معلومه شوه چه جنت موجود دې. دغه شان دحديث د ترجمة الباب ددويم جز سره مناسبت واضح دې بل دترجمې د الول جزسره هم ددې حديث مناسبت ښكاره دې چه په دې كښې دعمر رضي الله عنه د محل او په هغې كښې د موجود جاريه ذكر دې كوم چه د جنت صفت دې. دباب څلورم حديث دحضرت عبدالله بن قيس (ابوموسى) اشعرى رضي الله عنه دې.

---

[1] قوله: أن أباهريرة رضى الله عنه: الحديث، رواه البخارى فى فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم باب مناقب عمربن الخطاب رضى الله عنه رقم: ٣٦٨٠وفى النكاح باب الغيرة رقم: ٥٢٢٧وفى التعبير باب القصر فى المنام رقم: ٧٠٢٣وباب الوضوء فى المنام رقم: ٧٠٢٥ومسلم رقم: ٦٢٠١-٦٢٠٠فى فضائل الصحابة باب فضائل عمر بن الخطاب رضى الله عنه.

[2] كشف البارى: ١٠٦/٤.

[3] دَدوى تفصيلى تذكره كتاب العلم باب فضل العلم كښې راغلى دى كشف البارى: ٤٥٥/٣.

[4] كشف البارى: ٣٢٦/١-٣٢٣.

[5] كشف البارى: ١٥٩/٢.

[6] كشف البارى: ٤٥٩/١.

[7] كشف البارى كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم: ٣٦٩-٣٦١وكتاب النكاح باب الغيرة: ٣٧٨.

## الحديث الرابع

٣٠٧١- حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا عِمْرَانَ الْجَوْنِيَّ، يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ الأَشْعَرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْخَيْمَةُ دُرَّةٌ، مُجَوَّفَةٌ طُولُهَا فِي السَّمَاءِ ثَلاَثُونَ مِيلاً، فِي كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا لِلْمُؤْمِنِ أَهْلٌ لاَ يَرَاهُمُ الآخَرُونَ [ص:١١٨] قَالَ: أَبُو عَبْدِ الصَّمَدِ، وَالْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ سِتُّونَ مِيلاً»[1]
[٤٥٩٧، ٤٥٩٨، ٧٠٠٦]

## تراجم رجال

**حجاج بن منهال:** دا حجاج بن منهال انماطى سلمى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب ماجاء أن الأعمال بالنية...... په ذيل كښې بيان كړې شوى دى.[2]

**همام:** دا همام بن يحيى بن جبان بن دينار عوذى بصرى رحمه الله دې.[3]

**ابوعمران الجونى:** دا ابوعمران عبدالملك بن حبيب الجونى رحمه الله دې.[4]

**ابوبكر بن عبدالله بن قيس اشعرى:** دا ابوبكر بن عبدالله بن قيس اشعرى عجلى رحمه الله دې. ددوى نوم عمرو يا عامر دې.[5]

**ابيه:** دامشهور صحابى حضرت ابو موسى عبدالله بن قيس اشعرى رضي الله عنه دې. ددوى تفصيلى تذكره كتاب الايمان باب أي الإسلام أفضل؟ لاندې بيان كړې شوى دى.[6]

**قوله: عن أبيه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: الجنة درة مجوفة:** د حضرت عبدالله بن قيس اشعرى رضي الله عنه نه روايت دې چه (د جنتيانو) خيمه به د ډېرو مرغلرو وى. دنياوى خيمې اكثر د كپړې يا څرمن وى مګر جنتيانوته چه كومې خيمې وركولې شى هغه به د ډېرو مرغلرو وى. د مجوفه معنى د دننه نه خالى. په اكثرنسخوكښې دغه شان دى. يعنى درة مجوفة خود سرخسى اومستملى په روايت كښې درمجوف دې يعنې مذكر.[7]

---

[1] قوله: عن أبيه (أبي موسى الأشعرى رضى الله عنه): الحديث، أخرجه البخارى فى تفسير سورة الرحمن باب ﴿حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ﴾ رقم: ٤٨٧٩وباب ﴿وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ﴾ رقم: ٤٨٧٨وفى التوحيد باب ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ رقم: ٧٤٤٤ومسلم كتاب الجنة باب صفة الخيام وما للمؤمنين فيها..... رقم: ٧١١٦-٧١١٤والترمذى فى صفة الجنة باب ماجاء فى صفة غرف الجنة رقم: ٢٥٢٨وابن ماجه فى المقدمة باب فى ما أنكرت الجهمية رقم:١٨٦.

[2] كشف البارى: ٧٤٤/٢.

[3] ددوى د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب الصلاة باب من نسى صلاة فليصل......

[4] ددوى د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب أبواب الاستسقاء باب الجهر بالقراءة فى الاستسقاء.

[5] ددوى د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب مواقيت الصلاة باب فضل صلواة الفجر.

[6] كشف البارى:٦٩٠/١.

[7] فتح البارى: ٣٢٣/٦والقاموس الوحيد مادة: جوف، وعمدة القارى: ١٥٣/٥.

**قوله:: طولها في السماء ثلاثون ميلا، في كل زاوية منها للمؤمن أهل لا يراهم الآخرون**: ددې خيمې اوږدوالي به د آسمان طرف ته ديرش ميله وي. ددې په هر كوټ كښې به د مومن دپاره داسې حورې وي كومې چه به نور څوك نه ويني. علامه قرطبي رحمه الله فرمائي ددې نه معلوميږي چه په جنت كښې به د حورو او انساني ښځو شمير د سړو په مقابله كښې ډيرزيات وي.[1]

په دې حديث كښې د سورت الرحمن آيت ﴿حُورٌ مَّقْصُورَٰتٌ فِى ٱلْخِيَامِ﴾[2] تفسير كړې شوې دې چه هغه خيمې به داسې وي. چنانچه امام بخاري رحمه الله دا حديث د سورت رحمن د پورته ذكر شوى آيت د تفسير لاندې په كتاب التفسير كښې هم درج كړې دې.[3]

**قوله:: قال أبو عبد الصمد والحارث بن عبيد، عن أبي عمران: ستون ميلا**: مطلب دا چه ابوعبدالصمد[4] اوحارث بن عبيد رحمه الله ستون ميلا نقل كړې دې. په ظاهره دا معلوميږي چه امام بخاري رحمه الله ددې روايت دويم طريق طرف ته اشاره كولوسره د رواياتو اختلاف بيانول غواړي اود ستون ميلان والا روايت د ثلاثون ميلا والا په روايت باندې ترجيح وركوى.[5]

**حارث بن عبيد**: دا ابوقدامه حارث بن عبيد ايادى بصرى رحمه الله دې. دې د مسجد البرتى مؤذن وو.[6] دې د ابوعمران الجونى، سعيد الجريرى، مطرالوراق، عبدالعزيز صهيب، ثابت بنانى اومحمد بن عبدالملك بن ابى محذوره رحمهم الله وغيره نه روايت دحديث كوى. اود دوى نه روايت كونكو كښې ازهر بن قاسم، زيد بن الحباب، عبدالرحمن بن مهدى، ابوداؤد طيالسى، ابونعيم، سعيدبن منصور، يحيى بن يحيى نيشاپورى، ابوسلمه تبوذكى، مسدد بن مسرهد او طالوت بن عباد رحمهم الله وغيره شامل دى.[7]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرماي «مضطرب الحديث»[8] او په يوبله موقع باندې ارشاد فرمائيلي «لا أعرفه»[9] امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي «ضعيف الحديث»[10] امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي: «يكتب حديثه ولا يحتج به»[11] امام نسائى فرمائى «ليس بذاك القوي»[12] حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى «ليس بالقوي

---

[1]) المفهم :۱۸۱/۷التوضيح: ۱۳۶/۱۹عمدة القارى: ۱۵۳/۱۵.
[2]) الآية: ۷۲.
[3]) التوضيح :۱۳۶/۱۹صحيح البخارى كتاب التفسير الرحمن رقم:۴۸۷۹.
[4]) ابوعبدالصمد ذ حالاتو دپاره اوګورئى كتاب العمل فى الصلاة باب من سمى قوما أو سلم......
[5]) فيض البارى: ۳۲۰/۴.
[6]) تهذيب الكمال: ۲۵۸/۵رقم الترجمة:۱۰۲۹وتهذيب ابن حجر: ۱۵۰/۲.
[7]) ذ شيوخ او تلامذه دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۲۵۹/۵-۲۵۸.
[8]) تهذيب الكمال: ۲۵۹/۵تهذيب ابن حجر: ۱۵۰/۲.
[9]) تهذيب الكمال: ۲۵۹/۵.
[10]) حواله بالا. والجرح والتعديل: ۹۱/۳رقم الترجمة: ۳۷۱وكتاب المجروحين: ۲۶۷/۱.
[11]) الجرح والتعديل: ۹۱/۳رقم: ۳۷۱وتهذيب الكمال: ۲۶۰/۵.
[12]) تهذيب الكمال: ۲۶۰/۵.

عندهم»(۱) حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی «لیس بالقوی»(۲) حافظ عبد الرحمن بن مهدی فرمائی: «کان من شیوخنا، وما رأیت إلا خیرا»(۳) پورته ذکر کړې شوې اکثر اقوالو نه معلومیږي چه حارث بن عبید رحمه الله ضعیف، ناقابل احتجاج او غیر معتبر راوی دې. یوځو حضراتو دهغوی توثیق کړې دې. امام نسائی رحمه الله ددوی د تضعیف سره سره توثیق هم نقل دې. چنانچه مغلطای رحمه الله او ابن حجر رحمه الله د امام نسائی رحمه الله الجرح والتعدیل په حواله سره لیکلي دي چه حارث صالح وو. دغه شان ابن شاهین رحمه الله هغه په خپل کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.(۴) ددوی باره کښې د ټولو نه مناسب رائې غالبا د امام ابن حبان رحمه الله معلومیږي. فرمائی: «کان شیخا صالحا، ممن کثر وهمه، حتی خرج عن جملة من یحتج بهم إذا انفردوا»(۵)
چه ښه سړې وومګر کثیرالوهم وو. په دې وجه انفراداً دهغوی مرویات معتبر نه دي اود متابعت او شاهد په توګه دهغوی مرویات معتبر دي. چنانچه ددې تفصیل نه معلومه شوه چه حارث بن عبید رحمه الله بنیاد جوړولوسره دلته په حضرت مصنف رحمه الله باندې اعتراض کول صحیح نه دي چه داسې ضعیف او ناقابل احتجاج راوی نه روایت څه معنی ده؟ ځکه چه، امام بخاری رحمه الله دې په خپل صحیح کښې صرف په دوو ځایونو کښې تعلیقاً او متابعةً اخستې دې. یوتعلیق دا او بل تعلیق فضائل القرآن کښې دې.(۶) په دې وجه امام بخاری رحمه الله خو د اعتراض په زد کښې بالکل نه راځی چه هغوی د حارث نه اصالة او مسنداً څه روایت نه دې اخستې. البته امام مسلم رحمه الله د دوی نه اصالةً روایت کړې دې. دهغې هم متابعین امام مسلم رحمه الله ذکر کړې دې او په متابعات اوشواهد کښې حارث بن عبید رحمه الله معتبردې. بل ددوی د اصالةً مرویات که چرې متابعت ذکر کړو نوبیا هم معتبر دې. والله اعلم(۷)
امام بخاری رحمه الله الادب المفرد کښې هم ددوی نه روایت نقل کړې دې.(۸) حارث بن عبید رحمه الله د مسلم، ابوداؤد او ترمذی راوی دې. دا هم د اعتبار او احتجاج یوه وجه ده.(۹)

**یوه اهم تنبیه**: مګر دا دې واضحه وی چه امام بخاری دکوم دوو طرق حواله ورکړې ده په هغې کښې د طولها په ځائی عرضها دې. ثلاثون میلا والا روایت غالبا صرف هم دغه ذکر کړې دې ګنی د بخاری شریف نه علاوه مسلم شریف(۱۰) اوسنن ترمذی(۱۱) کښې هم ستون میلا دې. البته د عرض او طول

---

(۱) تعلیقات تهذیب المال: ۲۶۰/۵.
(۲) حواله بالا والکاشف: ۱۵۰/۱ رقم: ۸۷۱
(۳) تهذیب الکمال: ۲۵۹/۵.
(۴) تعلیقات تهذیب الکمال: ۲۶۰/۵.
(۵) کتاب المجروحین: ۲۲٤/۳.
(۶) صحیح البخاری کتاب فضائل القرآن، باب اقرؤو القرآن ما ائتلفت علیه قلوبکم رقم: ۵۰۶۱
(۷) تحریر تقریب التهذیب: ۲۳۷/۱-۲۳۶ وهدی الساری: ٤٤٢ فصل.
(۸) تهذیب الکمال: ۲۶۰/۵.
(۹) تهذیب الکمال: ۲۶۰/۵.
(۱۰) صحیح مسلم کتاب الجنة وصفة نعیمها باب فی صفة خیام الجنة ..... رقم: ۷۱۱۶-۷۱۱٤.
(۱۱) سنن الترمذی أبواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة غرف الجنة رقم: ۲۵۲۸.

اختلاف په هغې کښې هم دې. بعض عرضاً شپېته میله روایت کړې دې او بعض طولاً شپېته میله. شراح په دې کښې تطبیق کولوسره دا وئیلی دی چه دغه خیمو اوږدوالې او پلنوالې به برابر وی. والله اعلم [1]

**د مذکوره طرق تخریج:** د ابوعبدالصمد تعلیق او طرق امام بخاری رحمه الله پخپله د محمد بن المثنی په واسطه سره مسنداً ذکر کړې دې. دې نه علاوه دا امام مسلم رحمه الله هم موصولاً ذکر کړې دې. [2] او حارث بن عبید رحمه الله طریق امام مسلم رحمه الله موصولاً کتاب الجنة کښې ذکر کړې دې. [3]

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ددې په اول جزء کښې دې. یعنی صفة الجنة.

د باب پنځم حدیث حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحديث الخامس

٣٠٧٢- حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ اللَّهُ «أَعْدَدْتُ لِعِبَادِي الصَّالِحِينَ مَا لاَ عَيْنٌ رَأَتْ، وَلاَ أُذُنٌ سَمِعَتْ، وَلاَ خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ، فَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَلاَ تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ» [4] [٤٥٠١، ٤٥٠٢، ٧٠٥٩]

## تراجم رجال

**الحمیدی:** دا ابوبکر بن عبدالله بن زبیر قرشی اسدی حمیدی مکی رحمه الله دې. د دوی تذکره بدء الوحی اول حدیث کښې تیره شوې ده. [5]

**سفیان:** دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی کښې او تفصیلی حالات کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا..... لاندې بیان کړې شوی دی. [6]

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا عبدالرحمن بن هرمز الاعرج قرشی رحمه الله دې. ددې دواړو محدثینو حضراتو تذکره کتاب الایمان باب حب الرسول صلی الله علیه وسلم من الایمان لاندې تیره شوې ده. [7]

**ابوهریره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. ددوی حالات کتاب الایمان باب أمور الایمان

---

[1] التوضیح: ١٣٥/١٩ وأرشاد الساری: ٢٨١/٥ وتحفة الأحوذی: ٢٧٦/٧ والكوثر الجاری: ١٨٩/٦.

[2] صحیح البخاری كتاب التفسیر سورة الرحمن باب ﴿حُورٌ مَقْصُورَاتٌ﴾ رقم: ٤٨٧٩ ومسلم رقم: ٢٨٣٨.

[3] صحیح مسلم كتاب الجنة وصفة نعیمها باب فی صفة خیام الجنة..... رقم: ٧١١٤.

[4] قوله: عن أبی هریرة رضی الله عنه: الحدیث. أخرجه البخاری أیضاً الرقاق باب حجبت النار بالشهوات رقم: ٦٤٨٧ ومسلم ٧٠٨٨-٧٠٩٠ كتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها باب صفة الجنة.

[5] كشف الباری: ٢٣٧/١.

[6] اوګورئی كشف الباری: ٢٣٨/١ الحدیث الأول: ١٠٢/٣.

[7] كشف الباری: ١١/٢-١٠.

کښې تیرشوی دی. [1] دامشهور حدیث دې کتاب التفسیر کښې ددې شرح راغلې ده [2] خو بیاهم د دوو څیزونو ذکر به دلته مناسب وی:

① د حدیث جمله ((اقرؤاان شئتم)) باره کښې اختلاف دې چه د چا جمله یا مقوله ده؟ نو امام داؤدی رحمه الله دا د حضرت ابوهریره رضی الله عنه کلام ګرځولې دې خو ابن التین رحمه الله فرمانی چه ظاهرد حدیث ددې خلاف دې اودا د حضورپاك د ارشاد حصه ده. د حضرت ابوهریره رضی الله عنه کلام نه دې. [3]

② لکه چه دا حدیث شریف د آیت مبارك تفصیل او توضیح دې. په آیت کښې دعلم نفی ده ﴿فَلَا تَعۡلَمُ نَفۡسٌ مَّآ أُخۡفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعۡيُنٍ﴾ او په حدیث کښې ددې علم خاص د طرق نفی ده چه په دنیاکښې کومه یوه ذریعه او حس هم اختیارکړئی د جنت د نعمتونو حقیقی علم تاسو نه شئی حاصلولې دهغه ځانې پورې ستاسو رسیدل نه شی کیدې والله اعلم. [4]

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** داحدیث د جنت په وجودباندې دلالت کوی ځکه چه اعداد (تیاری) غالبًا عمومًا دهغه څیزکیږی کوم چه موجود او حاصل وی. [5]

د باب شپږم حدیث هم د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دی.

## الحديث السادس

[٣٠٧٣/٣٠٧٢] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَلِجُ الْجَنَّةَ صُورَتُهُمْ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، لاَ يَبْصُقُونَ فِيهَا، وَلاَ يَمْتَخِطُونَ، وَلاَ يَتَغَوَّطُونَ، آنِيَتُهُمْ فِيهَا الذَّهَبُ، أَمْشَاطُهُمْ مِنَ الذَّهَبِ وَالفِضَّةِ، وَمَجَامِرُهُمُ الأَلُوَّةُ، وَرَشْحُهُمُ المِسْكُ، وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ، يُرَى مُخُّ سُوقِهِمَا مِنْ وَرَاءِ اللَّحْمِ مِنَ الحُسْنِ، لاَ اخْتِلاَفَ بَيْنَهُمْ وَلاَ تَبَاغُضَ، قُلُوبُهُمْ قَلْبٌ وَاحِدٌ، يُسَبِّحُونَ اللَّهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا» [6]

## تراجم رجال

**محمدبن مقاتل:** دا مام محمد بن مقاتل مروزی رحمه الله دی. ددوی تذکره کتاب العلم باب مایذکرفی المناولة..... کښې تیره شوې ده. [7]

[1] کشف الباری: ۱/۴۵۹.

[2] کشف الباری: کتاب التفسیر سورة تنزیل: ۵۱۵.

[3] عمدة القاری: ۱۵/۱۵۴-۱۵۳التوضیح: ۱۹/۱۳۷.

[4] عمدة القاری: ۱۵/۱۵۳.

[5] عمدة القاری: ۱۵/۱۵۳التوضیح: ۱۹/۱۳۷.

[6] قوله: عن أبی هریرة رضی الله عنه: الحدیث، أخرجه البخاری فی الأنبیاء باب خلق آدم وذریته رقم: ۳۳۲۷ومسلم رقم: ۷۱۰۶-۷۱۰۳کتاب الجنة باب أول زمرة تدخل الجنة علی صورة القمر لیلة البدر وأزواجهم، والترمذی فی صفة الجنة باب ماجاء فی صفة الجنة رقم: ۲۵۳۷وابن ماجه فی الزهد باب صفة الجنة رقم: ۴۳۸۹-۴۳۸۸.

[7] کشف الباری: ۳/۲۰۶.

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارک حنظلي رحمه الله دي. ددوی حالات بدءالوحی پنځم حدیث لاندې یترشوی دی (۱)

**معمر:** دامعمر بن راشد ازدی بصری رحمه الله دي. ددوی تذکره بدء الوحی او کتاب العلم باب کتابة العلم کښې راغلې ده. (۲)

**همام بن منبه:** دا همام بن منبه یمانی صنعانی رحمه الله دي. ددوی حالات کتاب الإیمان باب حسن إسلام المرء ترکه مالا یعنیه په ذیل کښې بیان کړې شوی دی. (۳)

**ابوهریره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دي. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیر شوی دی. (۴)

**قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:**
**أول زمرة تلج الجنة صورتهم على صورة القمر ليلة البدر:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چه حضورپاک اوفرمائیل \چه د جنتیانو رومبې ډله کومه چه جنت ته داخلیږی دهغوی مخونه به د څوارلسمې شپې د سپوږمئی په شان پرقیږی.

**قوله: تلج:** ولوجانه مشتق دي. د باب ضرب نه دې ددې معنی د داخلیدلو ده. (۵) هم په دې باب کښې ددې حدیث دویم طریق کښې د تدخل الفاظ راغلي. دا حدیث امام بخاری رحمه الله هم په دې باب کښې په دریو طرق سره روایت کړې دی.

**قوله: صورتهم على صورة القمر....:** ددې نور وضاحت دکتاب الرقاق په روایت کښې دی.
«**يدخل الجنة من أمتي زمرة هم سبعون ألفا، تضيء وجوههم إضاءة القمر.....**» (۶) د دغه ډلې شمیر به اویا زره وی اود اویاؤ عدد د کثرت د بیان د پاره وی. مطلب دادې چه ډیره لویه ډله به په دغه صفت باندې متصف وی. بیابه یوه ډله داسې وی چه د ستورو په شان به پرقیږی کوم ته چه په راتلونکی حدیث «**والذين على أثرهم كأشد كوكب إضاءة**» سره تعبیر کړې شوې دې.
بیا به دې نه پس نور منازل وی لکه د مسلم شریف روایت (۷) کښې «**ثم هم بعد ذلك منازل**» فرمائیلې شوی دی. (۸)

---

(۱) کشف الباري: ۱/۴۶۲.
(۲) کشف الباري: ۱/۴۶۵، ۴/۳۲۱.
(۳) کشف الباري: ۲/۴۲۸.
(۴) کشف الباري: ۱/۴۵۹.
(۵) عمدة القاري: ۱۵/۱۵۴.
(۶) صحیح البخاري كتاب الرقاق باب يدخل الجنة سبعون...... رقم: ۶۵۴۲
(۷) صحیح مسلم رقم: ۲۸۳۴.
(۸) فتح الباري: ۶/۳۲۴التوضیح: ۱۹/۱۴۴عمدة القاري: ۱۵/۱۵۴کشف الباري کتاب الرقاق: ۶۳۲

**قوله: : لايبصقون فيها، ولايمتخطون، ولايتغوطون**: په جنت کښې به نه هغوی توکانړې توکی، نه به دهغوی پوزه رابهیږی اونه به هغوی متیازې کوی. **لايبصقون**: دا د بصاق نه دې د باب نصر نه دې ددې معنی د توکلو ده. **ولايمتخطون**: دا د مخاط نه دې د پوزې ګندګنی وغیره ته وائی. **ولا يتغوطون**: داد غائط نه دې غټومتیازو ته وائی. دا جمله د **خارج من السبيلين** نه کنایه ده یعنی متیازو ته هم شامل ده. د کتاب الأنبياء روایت کښې «**لايبولون ولايتفلون**»[1] زیاتوالې هم نقل دې. د باب په دویم طریق کښې «**ولايسقمون**» راغلې دې. مطلب دا چه جنتیان به بیمار کیږی هم نه. اوددې ټولو جملو مقصد دادې چه جنت به د ټول صفات ناقصه سلبیه نه پاك اوصفا وی.

دحضرت جابر رضي الله عنه په مسلم شریف کښې حدیث راغلې دې. [2] په دې کښې دی چه جنتیان به خوری هم څکی هم خو دا خوراك څښاك به د سبیلین نه نه خارج کیږی. بلکه هغوی به یو اړرګې اوکړی اودا ټول هضم. د اړرکی نه به د بدبو په ځائې خوشبوئی خارج کیږی. [3]

امام نسائي رحمه الله امام احمد رحمه الله او ابن حبان رحمه الله وغیره د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه یوحدیث نقل کړې دې چه د اهل کتاب یو سړې دحضورپاك په خدمت کښې حاضر شو او وئې وئیل: «**يا أبا القاسم، تزعم أن أهل الجنة يأكلون ويشربون؟ قال: نعم، ان أحدكم ليُعطى قوة مائة رجل في الإكل والشرب والجماع، قال: الذي يأكل ويشرب تكون له الحاجة، وليس في الجنة أذي! قال: تكون حاجة أحدهم رشحا، يفيض من جلودهم، كرشح المسك**»[4]

یعنی اې ابوالقاسم! تاسو دا وایئی اوګمان لرئی چه جنتیان به خوری او څکی؟ حضورپاك اوفرمائیل بالکل. تاسو خلقو ته به هلته خوراك څښاك او جماع کښې د سلو کسانو برابر قوت درکولې شی نودې کتابی اووئیل چه کوم بنده خوری څکی نوهغه ته خو به د قضاء حاجت ضرورت هم پیښیږی حالانکه په جنت کښې به ګندګی نه وی (نو دا خوړل څکل به چرته ځی؟) حضورپاك اوفرمائیل چه ددوی قضاء حاجت به داسې وی چه دهغوی د ویښتود سورو نه به خوله اوځی د کومې خوشبوئی چه به د مشك په شان وی. امام طبرانی رحمه الله لیکلی دی چه د سائل کتابی نوم ثعلبه بن حارث وو. [5]

علامه ابن الجوزی رحمه الله فرمائی: چونکه دجنتیانو خوراکونه به ډیر معتدل او مزیدار وی په دې وجه به د هغې نه فضله نه پیداکیږی بلکه د دغه خوراکونونه به مزیدار او خوشبوئی والاهوا پیداکیږی. [6]

علامه انور شاه کشمیری رحمه الله د صدرالدین شیرازی کوم چه شیعه دې لیکن وائی چه صوفی دې مګر دا بالکل تضاد دې د باطنی مسلك کیدې شی. صوفی متبع شریعت څوك رافضی نه شی کیدې. په دې وجه هغه اووئیل په جنتیانو به د روحانیت غلبه وی او په دوزخیانوبه د مادیت غلبه وی. په دې وجه به د دوزخیانو بدنونه خوړولې شی او د بعض اضراس (داړې) به د احد دغر[1] برابر وی. [2]

---

[1]) صحيح البخاري كتاب أحاديث الأنبياء باب خلق آدم..... رقم: ۳۳۲۷.

[2]) صحيح مسلم كتاب الجنة..... باب في صفات الجنة.... رقم: ۷۱۱۱-۷۱۰۸.

[3]) عمدة القاري: ۱۵/ ۱۵٤فتح الباري: ٦/ ۳۲٤.

[4]) السنن الكبرى للنسائي: ٦/ ٤٥٤ رقم: ۱۱٤۷۸وابن حبان، رقم: ۷٤۲٤ومسندأحمد: ٤/ ۳٦۷رقم: ۱۹٤۸٤ومسندالبزار رقم: ۳٥۲۲والمعجم الكبير: ٥/ ۱۷۷رقم: ٥۰۰٤والمعجم الأوسط: ٦/ ۳۱۱-۳۱۰رقم: ۸۸۷٦ثمامة بن عقبة المحلمي عن زيد بن أرقم.

[5]) فتح الباري: ٦/ ۳۲٤وفي العمدة: الطبري، بدل الطبراني. انظر العمدة: ۱٥/ ۱٥٤لعله من خطأ النساخ، حيث رواه الطبراني في المعجم الكبير رقم: ٥۰۰٤والأوسط من اسمه محمد رقم: ۷۷٤۱انظر مجمع الزوائد: ۱۰/ ٤۱٦.

[6]) فتح الباري: ٦/ ۳۲٤ والتوضيح: ۱۹/ ۱٤۲.

**قوله: آنيتهم فيها الذهب، أمشاطهم من الذهب والفضة:** په جنت كښې به لوښى د سرو زرو وى او دهغوى بنګړى به د سرو زرو او سپينو زرو وى. په وړاندينى روايت كښې د فضه يعنى چاندنى هم ذكر دې. لكه چه په وړاندې روايت كښې د فضه په ذكر باندې اكتفا كړې شوې ده اودلته نى د هغې د ذكر كولو ضرورت نه دې ګڼړلې ځكه چه دا بهر حال احتمال دې چه دواړه څيزونه دهريوسړى دپاره وى اوداهم احتمال دې چه د څه كسانود پاره به د سرو زرو لوښى وى او د څه د پاره د سپينو زرو. د احاديثو نه د دواړو احتمالاتو تائيد كيږى او په دې كښې څه استبعاد هم نشته دې ځكه چه په هر صورت كښې په درجو كښې به تفاوت خو وى.

امشاط كښې هم دغه تقرير دې دلته د سپينو زرو او د سرو زرو د ږمونځ ذكر دې خو په وړاندې روايت كښې صرف د چاندنى د ږمونځ ذكر دې. پورتنى دواړه احتمالات دلته هم محتمل دى.(٢)

امشاط جمع ده ددې مفرد مشط دې. ددې ميم مثلثه دې يعنى په ميم باندې زبر زير او پيش درېواړه صحيح دى. خو افصح پيش دې.(٤)

**قوله: مجامرهم الألوة:** دهغوى انګيټئى به د "اګر" وى. مجامر د مجمر جمع ده هغه لوښى كوم كښې چه خوشبوئى لوګې كولې شى. دهونى دان. او الوة (٥) عود ته وائى. يعنى هغه خوشبوئى كونكې لرګې چه د بخور دپاره سوزولې شى. په اردوكښې دې ته "اګر" وائى د كومې نه چه اګربتئى جوړيږى دغې ته عود هندى هم وئيلى شى.(٦) مجامر مبتدا دې او الألوة ددې خبر دې.

**يوتعارض او دهغې لرې كول:** ددې روايت نه معلومه شوه چه انګيټئى به د اګر وى يعنى اګر (عود) جوړې شوې به وى. وړاندې چه كوم روايت راخى په هغې كښې دى ((وقود مجامرهم: الألوة)) يعنى مجامر او انګيټو كښې چه كوم څيز سوزولې شى هغه اګر اوعود دى. اوس په دواړو روايتونو كښې په ظاهره تعارض دې. ددې تعارض مختلف وجوهات دى: ① يوجواب خودا كيدې شى چه محل ونيلوسره حال مراد اخستې شوې وى او ((مجامرهم الألوة)) معنى كښې دا وى ((مايجمر في المجمر هوالعود)) ② دويم جواب دادې چه ممكن دى انګيټئى هم د عود وى او څه چه په دې كښې سوزولې شى هغه هم عود وى.(٧)

**يواشكال اودهغې جوابات:** مګر د پورته تقرير نه دا اشكال پيدا كيږى چه په جنت كښې تاسوې د اور ذكركونې نوولې په جنت كښې به اور هم وى؟ اوهلته د اور څه كار دې؟ددې يو جواب علامه اسماعيلى رحمه الله دا وركړې دې چه كيدې شى دا انګيټئى د اور نه بغير سوزيږى دا څه ناممكن خبره نه ده الله تعالى ته په دې باندې قدرت شته چه د اور نه بغير انګيټئى سرې شى او مجمر دې ته په

---

(١) مستدرك الحاكم: ٦٣٨/٤ كتاب الأهوال رقم: ٨٧٥٩، ٨٧٦١عن أبى هريرة رضى الله عنه و ٨٧٧١عن أبى سعيدالخدرى رضى الله عنه.

(٢) فيض البارى: ٣٢٠/٤رقم: ٣٢٤٥.

(٣) فتح البارى: ٣٢٤/٦عمدة القارى: ١٥/ ١٥٤، ١٥٦.

(٤) فتح البارى: ٣٢٤/٦عمدة القارى: ١٥/ ١٥٤.

(٥) بفتح الهمزه ويجوز ضمها وبضم اللام وتشديد الواؤ، وحكى ابن التين كسرالهمزة وتخفيف الواؤ (أى الوة) فتح البارى: ٣٢٤/٦عمدة القارى: ١٥٤/١٥والتوضيح: ١٤٢/١٩.

(٦) القاموس الوحيد مادة: جمر.

(٧) فتح البارى: ٣٢٤/٦عمدة القارى: ١٥٤، ١٥٦/١٥.

اعتبار د اصل وضع ونيلى شوى وى. هغوى ددې يو جواب دا هم وركړې دې چه كيدې شى هلته هم اور وى مګر هغه اور د تكليف وركونكې نه وى اوتكليف سبب به نه جوړيږى.(١) ترمذى شريف كښې د ابن مسعود رضي الله عنه مرفوع روايت دې چه جنتيان به د وريتې كړې مرغنى د خوراك تمنا كوى نو وريته كړې مرغنى به دهغوى مخې ته راشى.(٢) ښكاره خبره ده چه د وريتولو دپاره به هم د اور ضرورت وى. نوپورتنى دواړه جوابونه به دلته هم وركولې شى.(٣) ابن قيم رحمه الله د ترمذى ددغه پورتنى حديث په شرح كښې فرمائى چه كيدې شى د جنت نه بهر مرغنى د وريتولو انتظامات وى يا هم په جنت كښې داسې اسباب اختيار كړې شى چه هغه مرغنى وريته شى د اور څه تعيين نشته دې.(٤)

**يوسوال اودهغې جواب:** اوس شاته د سرو زرو او سپينو زرو د ږمونځ ذكر راغلې وو اودلته د بخور او لوګى كولو ذكر دې. سوال دادې چه دا جنتيان خو به امرد وى بيا هلته ګندګى اوخيرې به هم نه وى تعفن او بدبوئى به هم نه وى نوسربه ئې خيرن شى نه بدن نه كپړې نوبيا هلته د ګمنځ كولو او خوشبوئى د لوګى كولو څه ضرورت دې؟

ددې جواب دادې چه دا هرڅه به ددې دپاره نه وى چه هلته بدبوئى وغيره وى يا خيرى وغيره څه مسئله وى بلكه دا هر څه به داعزاز او اكرام په توګه وى. مقصد دادې چه په دنيا كښې هر هغه څيز كوم چه د اعزاز او د انعام د قبيل نه ګڼلې شى دوى ته به هلته حاصل وى سره ددې چه د هغې ضرورت نه وى. رزقناها الله وإياكم.(٥)

**قوله:: ورشحهم المسك:** اودهغوى خوله به دمشكو د بوئى په شان وى. رشح خولې ته وائى. مطلب واضح دې بلكه د بعض خلقو دخولې بدبوئى خو د برداشت قابل نه وى. په جنت كښې به هم خوله راشى لكه څنګه چه شاته تيرشو چه دقضاء حاجت به هم دغه شكل وى. مګر ددې خولې نه به بدبوئى هيڅ كله نه راخى بلكه ددې نه به د مشك خوشبوئى راخى.(٦)

**قوله:: ولكل واحد منهم زوجتان:** او په دې كښې به دهر جنتى دپاره دوه بيبيانې وى.

---

(١) حواله جات بالا.

(٢) عزاها أليه الحافظان العينى وابن حجر، وإنما هو عندالبزار: ٤٠١/٥رقم: ٢٠٣٣وجمع الزوائد: ٤١٤/١٠كتاب أهل الجنة باب فيما أعده الله سبحانه وتعالى رقم: ١٨٧٣٤.

(٣) فتح البارى: ٣٢٤/٦عمدة القارى: ١٥٤/١٥، ١٥٦.

(٤) وقد ذكر نحو ذلك ابن القيم فى الباب الثانى والأربعين من حادى الأرواح الى بلاد الأفراح، وزاد فى الطبرى: أويشوى خارج الجنة أو بأسباب قدرت لا نضاجه، ولا تتعين النار، قال: وقريب من ذلك قوله تعالى: ﴿ هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ أُكُلُهَا دَائِمٌ وَظِلُّهَا ﴾ [الرعد/٣٥] وهى لا شمس فيها. فتح البارى: ٣٢٤/٦وحادى الأرواح إلى بلاد الأفراح: ١٩١الباب الثامن والأربعون.

(٥) وقال القرطبى: يقال هنا: أى حاجة فى الجنة للأمشاط، ولا تتبلد شعورهم ولا تتسخ، وأى حاجة للبخور، وريحهم أطيب من المسك؟ ويجاب عن ذلك: بأن نعيم أهل الجنة وكسوتهم ليس عن دفع ألم اعتراهم، فليس أكلهم عن جوع، ولا شرابهم عن ظمأ، ولا تطيبهم عن نتن، وإنما هى لذات متوالية، ونعم متتابعة، ألا ترى إلى قوله تعالى لآدم: ﴿ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَأُ فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴾ [طه: ١١٩-١١٨] وحكمة ذلك أن الله تعالى نعمهم فى الجنة بنوع ما كانوا يتنعمون به فى الدنيا. المفهم: ١٨٠/٧باب فى الجنة أكل وشرب.... رقم: ٢٧٥٣والفتح: ٣٢٤/٦والعمدة: ١٥٤/١٥والتوضيح: ١٤٢/١٩.

(٦) عمدة القارى: ١٥٥/١٥.

**كومې ښځې مراد دي؟**: دې نه دنياوي ښځې مراد دي حورې نه دي. هغوى خو به د مرتبو مطابق ډيرې زياتې وي. هم دا قاضي عياض رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله وغيره اختيار كړې دې چه د زوجتان نه د دنيا ښځې مراد دي. اوس چه د چا په دنيا كښې دوه ودونه شوې وي دهغوى معامله خو واضحه ده اود چا چه هم يوه ښځه وي دهغه به يوداسې ښځې سره واده كولې شي دكومې چه په دنيا كښې واده نه وى شوې دغه شان به دوه دوه پوره شي. والله اعلم.[1]

**زوجه صحيح ده كه زوج؟**: په قرآن او حديث كښې دا لفظ په تاء مربوطه سره زوجة استعمال شوې دې د عربو په كلام كښې هم ددې ډير مثالونه دي. ليكن مشهور لغت په حذف دتاء دې. په قرآن پاك كښې هم راغلې دي: ﴿اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾[2]

هم ددې په رڼا كښې امام اصمعي رحمه الله دا د تاء والاصورت نه منلو. حالانكه د قرآن اوحديث نه زيات كوم يوځيز فصيح كيدې شي؟ ابوحاتم سجستاني رحمه الله د ډيرو زياتو دلائلو سره په امام اصمعي باندې رد كړې دې.[3]

**قوله: :يرى مخ سوقهما من وراء اللحم من الحسن**: ددې دواړو د پنډو يا خپو مازغه دښائست د وجې نه د غوښې دپاسه ښكارى.

**دمذكوره جملې نور وضاحت**: مخ د ميم ضمه او خاء معجمه تشديد سره: مغز. من الحسن كښې من بيانيه دې يا تعليليه. ددغه دواړو ښځو ډير زيات ښائست بيانولې شي چه د هغوى د پنډئى به دومره صفا او شفاف وى چه په نلى كښې دننه كوم مازغه وى هغه به هم ښكارى.[4]

په ترمذى شريف كښې دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روايت كښې هم راځى چه دغه ښځې به اويا جوړې اغوستې وى اوددغه جوړو دپاسه به هغه مازغه ښكارى. ((ليرى بياض ساقها من وراء سبعين حلة حتى يرى مخها))[5]

په دې كښې د حيرانتيا څه عجيبه خبره نشته آبى حيات كښې ددې نمونې په دې دنيا كښې هم موجود دي. په خوړو اوبو كښې د كبانو يوقسم موندلې شي د كوم نوم چه چندا نامه او چندارنګا دې په عام عرف كښې دې ته شيشه كب وائى. د بدن د وړوكوالى په اعتبارسره د وړوكى كيدونه باوجود په هغه كښې دننه ټول اندامونه تردې چه كولمې هم په عام انسانى ستركوسره په آسانتيا سره ليدلې شى. سبحان الله الخالق القادر العلام.

چه كله د خپې د هډوكى دا حال دې نودمخ به ئې څه شان وى؟ په مسند احمد كښې دحضرت ابوسعيد

---

[1]) فتح البارى: ۳۲۵/۶عمدة القارى: ۱۵۵/۱۵الكنزالمتوارى: ۱۶۸/۱۳-۱۶۶.

[2]) سورة البقرة: ۲۵.

[3]) فتح البارى: ۳۲۵/۶عمدة القارى: ۱۵۵/۱۵والتوضيح: ۱۴۳/۱۹وقد قال الفرزدق: وإن الذى يسعى ليفسد زوجتى كساع إلى أسد البشرى يستبيلها والشعر فى أدب الكاتب: ۲۷۷. كتاب تقويم اللسان، باب ماجاء فيه لغتان استعمل الناس فى أضعفهما، وكتاب الأمالى لأبى على القالى: ۲۰/۱مطلب: أسماء الزوجة.

[4])عمدة القارى:۱۵۵/۱۵قال الحافظ فى الفتح ۳۲۵/۶والمراد به وصفها بالصفاء البالغ،وأن ما فى داخل العظم لايستتر بالعظم واللحم والجلد

[5]) روى الترمذى هذا الحديث مرفوعا وموقوفا، أما المرفوع ففى رقم: ۲۵۳۳وأما موقوفا ففى رقم: ۲۵۳۴كتاب صفة الجنة باب ماجاء فى صفة نساء أهل الجنة، ثم قال فى الموقوف:.... وهذا أصح.

خدري رضي الله عنه حديث كښې دي: ((ينظروجهه في خدها أصفى من المرآة))[1] جنتي به خپل مخ دهغې په اننګوكښې وينى چه د آئينې نه به هم صفا وي.

**قوله: لا اختلاف بينهم ولا تباغض**: ددغه جنتيانو به په خپل مينځ كښې نه څه اختلاف وي اونه دخپل مينځ بغض. د جنتيانو به په خپل مينځ كښې هيڅ قسم دښمنى نه وي ځكه چه دهغوى زړونه به د خفګانونو اوغمونو نه پاك اوصفا وي.[2]

**قوله: قلوبهم قلب واحد**: دهغوى زړونه به د يوبنده د زړه په شان وي. قلوبهم مبتدا دې او قلب واحد ددې خبر. داكثر ناسخينو روايت قلبُ واحد تركيب اضافي دې. او د مستملي په روايت كښې واحد مرفوع دې يعنى تركيب توصيفي دې. دا تشبيه بليغ ده. په كوم كښې چه اداة تشبيه حذف كړې شوې ده يعنى قلوبهم كقلب رجل واحد.[3] دا جمله مفسره ده دماقبل جمله ددې تفسير وو. ښكاره خبره ده چه كله د ټولو زړونه يووى نود خپل مينځ اختلافات او خفګانونه به ولې وي؟[4]

**قوله: يسبحون الله بكرة وعشيا**: هغوى به سحر مابښام دالله تعالى پاكى بيانوي. په اهل جنت باندې به دا تسبيح لازم او ضروري نه وي. چنانچه په مسلم شريف كښې د حضرت جابر بن عبدالله انصاري رضي الله عنهما حديث كښې دا الفاظ راغلى دى. ((يلهمون التسبيح والتكبير كما يلهمون النفس))[5] چه دهغوى په زړونوكښې به د تسبيح او تكبير داسې الهام او القاء كيږى لكه د ساه اخستلو الهام چه كولې شى ددې دواړو په مينځ كښې د مشابهت وجه داده چه انسان څنګه بغيرد تكليف او مشقت نه ساه اخلى دهغې دپاره سوچ نه شى كيدلې ددې نه بغيرژوندې نه پاتې كيږى دغه شان دهغوى ساه اخستل به هم تسبيح وى بغير د څه مشقت نه به هغوى دا كار كوى. ددې وجه به دا وى چه د جنتيانو زړه به د الله تعالى د معرفت نه منور او دهغه په محبت كښې معمور وى اوقاعده داده چه د چاچاسره زيات محبت وي دهغه تذكره هم دهغه په ژبه باندې ډيره وى. ((من أحب شيئا أكثر من ذكره))[6]

**دبكرة وعشيا معنى**: په جنت كښې به نه طلوع شمس كيږى اونه غروب شمس يعنى د نمر ختل او ډوبيدل نوبيا هلته د سحر اومابښام څه مطلب؟ نودلته د بكرة وعشيا نه مراد دهغې اندازه ده. يعنى د سحر اومابښام په اندازه به هغوى په تسبيح كښې مشغول وى. يوضعيف حديث[7] كښې راغلى دى

---

[1] فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵ومسندالإمام أحمد: ۷۵/۳رقم: ۱۱۷۱۵.

[2] فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵.

[3] فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵.

[4] فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵.

[5] صحيح مسلم كتاب الجنة.... باب في صفات الجنة.... رقم: ۷۱۰۸-۷۱۱۱.

[6] فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵والتوضيح: ۱۴۳/۱۹وقال الشاه أنور الكشميري رحمه الله في الفيض: وعند مسلم: يلهمون التسبيح كالنفس، فيجرى منهم التسبيح جريان النفس بدون عمد وقصد. وبه تكون حياتهم، وذلك لبلوغهم نهاية الروحانية. فيض الباري: ۳۲۱/۴رقم: ۳۲۴۵.

[7] حيث روى: إن تحت العرش ستارة معلقة فيه، ثم تطوى، فإذا نشرت كانت علامة البكور، وإذا طويت كانت علامة العشاء. فتح الباري: ۳۲۶/۶عمدة القاري: ۱۵۵/۱۵.

چه دعرش لاندې يوه پرده زوړند ده. دکومې په کولاويدو او بنديدو باندې يوه فرښته مامور ده. کله چه هغه کولاؤ کړې شی نو ددې مطلب به داشی چه اوس سحر شو او کله چه بنده کړې شی نو مطلب به نی دا وی چه اوس ماښام شو ګنی په جنت کښې به د سحر ماښام هيڅ تصور نه وی.(١)

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په دې کښې د جنت د ډيرو زياتو لازوال نعمتونو ذکر دې.

دباب اووم حديث هم د حضرت ابوهريره رضی الله عنه دې.

## الحديث السابع

٣٠٧٣- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، وَالَّذِينَ عَلَى إِثْرِهِمْ كَأَشَدِّ كَوْكَبٍ إِضَاءَةً، قُلُوبُهُمْ عَلَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ، لاَ اخْتِلاَفَ بَيْنَهُمْ وَلاَ تَبَاغُضَ، لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ، كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا يُرَى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَاءِ لَحْمِهَا مِنَ الْحُسْنِ، يُسَبِّحُونَ اللَّهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا، لاَ يَسْقَمُونَ، وَلاَ يَمْتَخِطُونَ، وَلاَ يَبْصُقُونَ، آنِيَتُهُمُ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ، وَأَمْشَاطُهُمُ الذَّهَبُ، وَوَقُودُ مَجَامِرِهِمُ الأَلُوَّةُ - قَالَ أَبُو الْيَمَانِ: يَعْنِي الْعُودَ -، وَرَشْحُهُمُ الْمِسْكُ" وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الإِبْكَارُ: أَوَّلُ الْفَجْرِ، وَالْعَشِيُّ: مَيْلُ الشَّمْسِ إِلَى أَنْ - أُرَاهُ - تَغْرُبَ (٢)[٣١٤٩، ٣٠٨١]

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان الحکم بن نافع مصرى رحمه الله دې.

**شعيب:** دا شعيب بن ابى حمزه قرشی اموی رحمه الله دې. ددې دواړو مختصر حالات بدء الوحی الحديث السادس کښې راغلی دی.(٣)

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا مشهومحدث عبدالرحمن بن هرمز قرشی رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره کتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان کښې راغلې ده.(٤)

**ابوهريره رضی الله عنه:** د صحابى رسول حضرت ابوهريره رضی الله عنه حالات کتاب الايمان باب أمور الايمان کښې تير شوی دی.(١)دا د تيرشوی حديث دويم طريق دې. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الإِبْكَارُ: أَوَّلُ الْفَجْرِ، وَالْعَشِيُّ: مَيْلُ الشَّمْسِ إِلَى - أَنْ أُرَاهُ - تَغْرُبَ. [٣١٤٩،٣٠٨١]

---

(١) فتح البارى: ٣٢٦/٦عمدة القارى: ١٥٥/١٥

(٢) قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه فى الحديث السابق آنفا.

(٣) كشف البارى: ٤٨٠/١-٤٧٩.

(٤) كشف البارى: ١١/٢-١٠.

**دمذکوره تعلیق مقصد:** دا امام بخاری رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله تعلیق ذکرکړې دې. ددې نه د هغوی مقصد په حدیث کښې راغلی الفاظ بکرة وعشیا توضیح اوتفسیر کول دی. "أراه" جمله دامام بخاری رحمه الله خپله ده. دا جمله معترضه ده اود أظنه په معنی کښې ده. لکه چه د مصنف رحمه الله په لفظ تغرب کښې شك دې نودهغې اظهارکولوسره د تغرب نه وړاندې أراه اضافه اوکړه. هغه حضراتو چاچه دا تعلیق موصولاً نقل کړې دې دهغوی په کلام کښې دا شك ذکر نه دې.

«أبکر فلان فی حاجته یبکر إبکارا» معنی ده د نمر د راختو نه ترسحر وخته پورې د خپل یوکار د پاره وتل. لیکن دعشی تعلق د زوال نه پس د نمر ډوبیدو پورې وخت سره دې. دحضرت مجاهد رحمه الله د قول مطابق د نمر ډوبیدو پورې عشی ممتد کیږی اوحضرت مصنف رحمه الله په نیز د نمر ډوبیدو نه څه وړاندې وخت پورې عشی وی. دکوم اظهار چه هغوی أراه جمله معترضه سره کړې دې. طبری رحمه الله وغیره دا تعلیق نقل کړې دې په هغې کښې أن تغیب الفاظ راغلی دی. دا هم هغه معنی ده کومه چه مصنف رحمه الله اختیارکړې ده. بهرحال په دواړو کښې څه منافات نشته دې. د دواړو معنی نیزدې نیزدې دی. والله اعلم. [۲]

**د تعلیق تخریج:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا تعلیق عبدبن حمید رحمه الله ابن ابی حاتم رحمه الله وغیره د ابن ابی نجیح رحمه الله په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې. [۳] او امام طبری رحمه الله هم دا روایت کړې دې [۴]
د باب اتم حدیث د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه دې.

## الحدیث الثامن

۳۰۷۵- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ، حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لَيَدْخُلَنَّ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا، أَوْ سَبْعُ مِائَةِ أَلْفٍ، لاَ يَدْخُلُ أَوَّلُهُمْ حَتَّى يَدْخُلَ آخِرُهُمْ، وُجُوهُهُمْ عَلَى صُورَةِ القَمَرِ لَيْلَةَ البَدْرِ» [۵] [۶۱۷۷، ۶۱۸۷]

## تراجم رجال

**محمدبن ابی بکر المقدمی:** دا محمدبن ابی بکر المقدمی رحمه الله دې.
**فضیل بن سلیمان:** دا فضیل بن سلیمان نمیری رحمه الله دې. [۶]

---

[۱] کشف الباری: ۴۵۹/۱.
[۲] فتح الباری: ۳۲۶/۶ عمدة القاری: ۱۵۶/۱۵ والتوضیح: ۱۴۴/۱۹ ومجمل اللغة: ۶۶۸/۲
[۳] فتح الباری: ۳۲۶/۶ عمدة القاری: ۱۵۶/۱۵ والتوضیح: ۱۴۴/۱۹ وتغلیق التعلیق: ۵۰۶/۳
[۴] تفسیر الطبری: ۳۹۲/۶ رقم: ۷۰۲۵.
[۵] قوله: عن سهل بن سعد رضی الله عنه: الحدیث، رواه البخاری فی کتاب الرقاق باب: یدخل الجنة سبعون ألفا بغیر حساب، رقم: ۶۵۴۲ وباب صفة الجنة والنار رقم: ۶۵۵۴ ومسلم رقم: ۵۳۷ کتاب الإیمان باب الدلیل علی دخول طوائف من المسلمین فی الجنة بغیر حساب ولا عذاب، والحدیث متفق علیه.
[۶] دَدغه دواړو حضراتو د حالاتو دپاره اوګورئ کتاب الصلاة باب المساجد التی علی طرق المدینة.

**ابوحازم:** دا ابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دي.

**سهل بن سعد:** دا مشهور صحابى رسول حضرت ابوالعباس سهل بن سعد الساعدى رضي الله عنه دي.[1]

**تنبيه:** داحديث دحضرت سهل رضي الله عنه نه علاوه دحضرت عمران بن حصين رضي الله عنه نه هم نقل دي. دحضرت سهل رضي الله عنه د حديث شرح كتاب الرقاق كښې[2] اودحضرت عمران رضي الله عنه دحديث شرح كتاب الطب كښې راغلې ده.[3]

په دې حديث كښې دهغه كسانو پيژندګلو اوعلامت خودلې شوې دې چه بې حسابه بې كتابه به په دومره لوئى شمير كښې جنت كښې داخليږى. فرمائيلى دى: «هم[4] الذين لا يسترقون، ولا يتطيرون، ولا يكتوون، وعلى ربهم يتوكلون».[5]

**يوه بله تنبيه:** دا حديث ابن ملقن رحمه الله په افراد بخارى كښې شمير كړې دې چه صرف په بخارى شريف كښې دا روايت موجود دې. حالانكه داسې نه ده. داحديث په صحيح مسلم كښې هم دې. غالبًا هغه د امام حميدى رحمه الله په اتباع كښې داسې وئيلى دى. چونكه دحميدى رحمه الله هم دغه موقف دې نودوارو حضراتو ته دلته تسامح شوې دې. والله اعلم.[6]

**ترجمة الباب سره دَ حديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. هغه داسې چه جنتيان به خپل مينځ كښې اتفاق سره اوسيږى اودهغوى مخونه به د ځوارلسمې د سپوږمۍ په شان ړقيږى. دا رومبى جزء سره مناسبت شو چه حديث د جنت د اوسيدونكو په صفت باندې مشتمل دې.

د باب نهم حديث دحضرت انس رضي الله عنه دې.

## الحديث التاسع

٣٠٧٦- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: أُهْدِيَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُبَّةُ سُنْدُسٍ وَكَانَ يَنْهَى عَنِ الْحَرِيرِ فَعَجِبَ النَّاسُ مِنْهَا فَقَالَ: «وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَمَنَادِيلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ أَحْسَنُ مِنْ هَذَا»[7]- [ر ٢٤٧٣]

---

[1] دغه دوارو حضراتو د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم........

[2] كشف البارى كتاب الرقاق باب يدخل الجنة سبعون ألفا.....:٦٢٦-٦٢٢

[3] كشف البارى كتاب الطب باب من اكتوى.....: ٥٧٧-٥٧٣.

[4] دا هغه خلق دى چه كودې جادوان نه كوى بدفالى نه نيسى خالونه نه لګوى او په خپل رب باندې يقين لرى

[5] صحيح بخارى رقم: ٥٧٠٥التوضيح: ١٤٥/١٩وقال ابن كثير: إن المعروف فى الروايات دخول سبعين ألفا ومع كل منه سبعون ألفا... ولا بد من تسليمه أيضا، وإن لم يذكره الراوى هناك، فإنه سرد له الروايات أيضا. أما من قال: سبع مائة ألف فالظاهر أنه وهم من الراوى. فيض البارى: ٣٢١/٤..

[6] التوضيح: ١٤٥/١٩والجمع بين الصحيحين رقم: ٩٢٦وصحيح مسلم كتاب الإيمان رقم: ٢١٩.

[7] قوله: حدثنا أنس رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه مالهبة باب قبول الهدية من المشركين.

**ترجمه** حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ته د سندس کپړې يوه جبه هديه کړې شوه او حضورپاك به خلق د ريښمو د اغوستو نه منع کول خلقو په ډيره خوښئ سره دې ته کتل نوحضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه کوم رومال په جنت کښې دې هغه ددې کپړې نه ډير ښه دي.

دا ريښمی جبه حضورپاك ته د دومة الجندل والی اکيدر هديه کړې وه «وكان الذي أهداها أكيدر دومة» (۱)

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمدجعفی:** دا عبدالله بن محمد جعفی مسندی رحمه الله دې. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب أمور الإيمان کښې تيره شوې ده. (۲)

**يونس بن محمد:** دا يونس بن محمد المؤدب بغدادی رحمه الله دې. ددوی حالات كتاب الوضوء باب الوضوء مرتين مرتين کښې راغلی دی. (۳)

**شيبان:** دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن نحوی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې بيان کړې شوی دی. (۴)

**قتاده:** دا قتاده بن دعامه سدوسی بصری رحمه الله دې. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه په ذيل کښې راغلې ده. (۵)

**انس بن مالك:** دا مشهور صحابی خادم رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه په ذيل کښې راغلې ده. (۶)

دحديث شرح كتاب الهبة (۷)

د باب لسم حديث د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دې.

## الحديث العاشر

۳۰۷۷- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ،

---

(۱) إرشادالساری: ۲۸۴/۵ التوضيح: ۱۵۲/۱۹ وصحيح البخاری كتاب الهبة باب قبول الهدية من المشركين تعليقا عن أنس رقم: ۲۶۱۶.

(۲) كشف الباری: ۲۵۷/۱.

(۳) كشف الباری: ۴۸۳/۵.

(۴) كشف الباری: ۲۶۳/۴.

(۵) كشف الباری: ۳/۲.

(۶) كشف الباری: ۴/۲.

(۷) باب قبول الهدية من المشركين رقم: ۲۶۱۵. اوكتاب اللباس کښې راغلې ده. كشف الباری كتاب اللباس باب من مس الحرير من...... ص: ۱۹۵.

قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا [ص: ۱۱۹]، قَالَ: أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِثَوْبٍ مِنْ حَرِيرٍ فَجَعَلُوا يَعْجَبُونَ مِنْ حُسْنِهِ وَلِينِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَمَنَادِيلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ أَفْضَلُ مِنْ هَذَا» [1]-[۳۵۹۱، ۵۴۹۸، ۶۲۶۴]

## تراجم رجال

**مسدد**: دا مسدد بن مسرهد اسدی بصری رحمه الله دی. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې راغلې. [2]

**يحيى**: دا يحيى بن سعيد قطان تميمي رحمه الله دی. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه...، لاندې ذکر کړې شوې ده. [3]

**سفيان**: دامشهورامام محدث سفيان بن عيينه رحمه الله دی. ددوی مختصر حالات بدء الوحی کښې اومفصل حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا.... کښې تير شوی دی. [4]

**ابواسحاق**: دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله همدانی سبیعی رحمه الله دی.

**البراء بن عازب**: دا مشهور صحابی رسول حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دی. ددې دواړو حضراتو تذکره كتاب الإيمان باب الصلوة من الإيمان لاندې بيان کړې شوې ده. [5]

ددې حديث مضمون هم دغه دې کوم چه دتير حديث وو فرق صرف دومره دې چه هلته د خلقو د خوښئ ذکر وو مګر وجه ئې ذکر نه وه کومه چه په دې حديث براء رضي الله عنه کښې ذکر کړې شوې. «فجعلوا يعجبون من حسنه ولينه» چه د دغه جبې ښائست نريوالې او نرموالې د خلقو د حيرانتياوجه وه. [6]

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنى دې چه په دې کښې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه د جنت د رومال ذکر دې دکوم ښائست چه به بې مثال وی. [7]

دباب يوولسم حديث دحضرت سهل بن سعد الساعدی رضي الله عنه دې.

---

[1] قوله: سمعت البراء بن عازب رضي الله عنه: الحديث، أخرجه البخاري في فضائل الصحابة، باب مناقب سعدبن معاذ رقم: ۳۸۰۲ وفي اللباس باب من مس الحرير من غيرلبس رقم: ۵۸۳۶ وفي الأيمان والنذور باب كيف كان يمين رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ رقم: ۶۶۴۰ ومسلم رقم: ۶۳۰۸-۶۳۰۶ في فضائل الصحابة باب من فضائل سعدبن معاذ رضي الله عنه، والترمذي مناقب سعدبن معاذ رضي الله عنه، رقم: ۳۸۴۶ وابن ماجه في المقدمة في فضل سعد بن معاذ رضي الله عنه رقم: ۱۴۴.

[2] كشف الباري: ۲/۲.

[3] كشف الباري: ۲/۲.

[4] كشف الباري: ۲۳۸/۱ الحديث الأول: ۱۰۲/۳.

[5] كشف الباري: ۳۷۵/۲-۳۷۰.

[6] فتح الباري: ۳۲۶/۶.

[7] سواله بالا.

## الحديث الحادي عشر

۳۰۷۸-حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا» [1]-[ر ۲٦٤١]

## تراجم رجال

**على بن عبدالله**: دا مشهور محدث على بن عبد الله المدينى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب العلم باب الفهم فى العلم لاندې تيره شوې ده.[2]

**سفيان**: دا مشهور امام محدث سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى كښې اومفصل حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا.... كښې تير شوى دى.[3]

**ابوحازم**: دا ابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دې.

**سهل بن سعد**: دا مشهور صحابى رسول حضرت ابوالعباس سهل بن سعد الساعدى رضي الله عنه دې.[4]

ددې حديث تفصيلي شرح كتاب الجهاد كښې راغلې ده.[5]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه د جنت د معمولى شان ځائى برابر ددنيا او مافيها نه بهتر دې. چنانچه صفة الجنة يعنى جزء اول سره ددې مطابقت دې.

دباب دولسم حديث دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې.

## الحديث الثاني عشر

۳۰۷۹-حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا» [6]

## تراجم رجال

**روح بن عبدالمومن**: دا ابوالحسن روح - بفتح راء وسكون واو، وإهمال حاء- [1]بن عبد المومن هذلى بصرى مقرى رحمه الله دې.[2]

---

[1]) قوله: عن سهل بن سعد الساعدى: الحديث مرتخريجه كشف البارى كتاب الجهاد: ۱۰۱/۱.

[2]) كشف البارى: ۲۹۷/۳.

[3]) كشف البارى:۱۳۸/۱الحديث الأول: ۱۰۲/۳.

[4]) ذدغه دوارو حضراتو حالاتو دپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم........

[5]) كشف البارى كتاب الجهاد اول، ۵۵۹-۵۵۸.

[6]) قوله: حدثنا أنس بن مالك رضي الله عنه: الحديث، أخرجه الترمذى كتاب التفسيرباب ومن تفسير سورة الواقعة، رقم: ۳۲۹۳.

دي د يزيد بن زريع حماد بن زيد، عبد الواحد بن زياد، ابوعوانه، جعفر بن سلميان ضبعي اومعاذ بن هشام رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت كوى. اوددوى نه دحديث روايت كونكوكښې امام بخارى، عثمان بن سعيد دارمي، ابوزرعه رازى، حرب كرماني، عبد الله بن احمد، مطين، ابوخليفه، محمدبن محمدتمار بصرى او ابويعلى موصلي رحمهم الله غوندې اساطين علم حديث شامل دى [3]، ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى. [4] ابوحاتم رازى رحمه الله فرمانى صدوق [5]، حافظ ذهبي رحمه الله معرفة القراء كښې ليكلي دى چه دې د يعقوب الحضرمي نيزدې دوست وو او فرمانى «كان متقنا مجودا» [6] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى صدوق [7] ددوى تاريخ وفات كښې اختلاف دې. امام ابن حبان رحمه الله د ۲۳۳ هجرى نه وړاندې يا روستو قول اختيار كړې دې [8] او ابن ابى عاصم، دانى، ابن خلفون، مطين او مغلطاى رحمهم الله وغيره ۲۳۴ هجرى د وفات كال ګرځولې دې [9] خو ابن زبير ربعي د ۲۳۵ هجرى قول اختيار كړې دې. [10]

روح بن عبد المومن رحمه الله د كتب سته نه صرف د بخارى شريف راوى دې. اوامام بخارى رحمه الله دهغوى نه صرف هم دغه حديث باب روايت كړې دې. رحمه الله تعالى رحمة واسعة. [11]

**يزيد بن زريع**: دا يزيد بن زريع تميمي بصرى رحمه الله دې. [12]

**سعيد**: دا سعيد بن ابى عروبة يشكرى بصرى رحمه الله دې. [13]

**قتاده**: دا قتاده بن دعامه سدوسي بصرى رحمه الله دې.

**انس**: دا مشهور صحابي خادم رسول حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. ددې دواړو حضراتو تذكره كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه په ذيل كښې راغلې ده. [14]

**قوله: عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: إن في الجنة لشجرة يسير الراكب في ظلها مائة عام لا يقطعها**: حضرت انس رضي الله عنه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوى چه هغوى عليه السلام فرمانيلى دى

---

[1] المغنى فى ضبط الأسماء: ۱۳۵حرف الراء، وتعليقات تهذيب التهذيب: ۲۹۶/۳.

[2] تهذيب الكمال: ۲۴۶/۹وتهذيب ابن حجر: ۲۹۶/۳.

[3] د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۲۴۷/۹-۲۴۶.

[4] ۲۴۴/۸.

[5] الجرح والتعديل: ۳ رقم الترجمة: ۲۲۵۹.

[6] معرفة القراء: ۱ رقم: ۱۰۹مؤسسة الرسالة، بيروت.

[7] تقريب التهذيب: ۳۰۴/۱رقم: ۱۹۶۸.

[8] الثقات: ۲۴۴/۸.

[9] تعليقات تهذيب الكمال: ۲۴۷/۹.

[10] حواله بالا.

[11] فتح البارى: ۳۲۶/۶عمدة القارى: ۱۵۷/۱۵تهذيب الكمال: ۲۴۶/۹.

[12] ددوى د حالاتودپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب غسل المنى وفركه وغسل ما يصيب من المرأة.

[13] ددوى د حالاتودپاره اوګورئى كتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد....

[14] كشف البارى: ۳-۴/۲.

چه په جنت کښې يوه ونه ده د کومې په سورې کښې به چه سور سل کاله روان وی مگر هغه به پوره نه کړی.
دباب ديارلسم حديث دحضرت ابوهريره رضی الله عنه دی.

## الحديث الثالث عشر

٣٠٨٠- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ سَنَةٍ، وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ {وَظِلٍّ مَمْدُودٍ} [الواقعة: ٣٠] (١) [٤٥٩٩]

## تراجم رجال

**محمدبن سنان:** دا محمدبن سنان عوقی بصری باهلی رحمه الله دي.
**فليح بن سليمان:** دا فليح بن سليمان خزاعی مدنی رحمه الله دي.
**هلال بن علي:** داهلال بن علی قرشی عامری مدنی رحمه الله دي. ددې درېواړو حضراتو حالات كتاب العلم باب من سئل علما وهومشتغل فی حديثه لاندې تیرشوی دی. (٢)
**عبدالرحمن بن ابي عمرة:** دا عبدالرحمن بن ابی عمره انصاری رحمه الله دي. (٣)
**ابوهريره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهريره رضی الله عنه دي. ددوی حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان کښې تیرشوی دی. (٤)
ددې حديث مضمون هم هغه دې کوم چه د تير حديث وو. بس فرق صرف دومره دې چه په دې کښې څه زياتوالې او اضافه ده.
**دپورته ذکرشوې ونې نوم:** د پورته ذکر شوې نوم په قول د علامه خطابی رحمه الله او ابن الجوزی رحمه الله طوبی دې. ددې تائيد دحضرت عتبه بن عبد رضی الله عنه دحديث نه هم کيږی. کوم چه احمد، طبرانی او ابن حبان رحمهم الله روايت کړې دې. (٥) حافظ رحمه الله فرمائی ((هذاهوالمعتمد)) ځکه چه د بعض حضراتو رائې داده چه دا څه متعين ونه نه ده. چونکه نکره استعمال شوې ده نوداسې به ډيرې ونې وی مگر دا

---

(١) قوله: عن أبي هريرة رضی الله عنه: الحديث، رواه البخاری فی تفسير سورة الواقعة باب: {وَظِلٍّ مَمْدُودٍ} رقم: ٤٨٨١ ومسلم رقم: ٧١٣٧-٧١٣٦فی صفة الجنة باب إن فی الجنة شجرة يسير الراكب فی ظلها مئة عام لا يقطعها، والترمذی رقم: ٢٥٢٣فی الجنة باب ماجاء فی صفة شجرة الجنة وابن ماجه فی الزهد باب صفة الجنة رقم: ٤٣٩١.
(٢) كشف الباری: ٥٣/٦٣/٣.
(٣) ددوی د حالاتو د پاره اوگورئی كتاب المياه باب حلب الإبل علی الماء.
(٤) كشف الباری: ٤٥٩/١.
(٥) المعجم الكبير للطبرانی: ١٢٧/١٧-١٢٦عامر بن زيد عن عتبة بن عبد رقم:٣١٢والإحسان بترتيب صحيح ابن حبان كتاب إخباره عن مناقب الصحابة، باب وصف الجنة: ٤٢٩/١٦عن أبی سعيد الخدری رضی الله عنه رقم: ١١٦٩٦.

راني معتمد نه ده.[1] اود راكب نه مراد راكب معتدل دي چه په درميانه رفتار سره تگ كونكي سور د سلوكالو تللو نه باوجود به هغې سوري پوره نه كړي. په جنت كښې خو به سوري وى نه څكه چه دهغې دپاره نمراوبيا گرمى پكار ده هلته د دې څيزونو څه كار دې؟ په دې وجه د سورى نه مراد ددې غاړه ده. مطلب دادې چه ددې ونې اوږدوالي په انسانى شعور كښې نه شى راتلې. انسانى احساسات د هغې حقيقت ته نه شى رسيدلي.[2]

**دكعب احبار تصديق:** حضرت عبد الله بن مبارك رحمه الله يوروايت نقل كړې دې چه دحضرت ابوهريره رضى الله عنه داحديث چه حضرت كعب احبار رحمه الله واؤريدو نوونې فرمائيل: «صدق والذي أنزل الفرقان على لسان محمد، لوأن رجلا راكب حقة أوجذعة، ثم سار فى أصل تلك الشجرة، مابلغها حتى يسقط هرما، إن الله تعالى غرسها بيده، ونفخ من روحه، ومافى الجنة نهر إلا ويخرج من أصلها»[3] يعنى دهغه ذات قسم چاچه فرقان (قرآن) د محمد ﷺ په ژبه مباركه باندې نازل كړې دې. ابوهريره رښتيااووئيل كه يو سړې په حقه يا جذعه اوښه باندې سور وى اوبيا د دغه ونې په جرړو كښې سفر كوى نو آخر ته به اونه رسى تردې چه بوډا به شى پريوبه څى. يقينا دغه ونه الله تعالى پخپله لګولې ده د خپل روح په ذريعه ئې په هغې كښې پوكې وهلې دې په جنت كښې هر يو نهر د دغه ونې د أصل نه راوځى. هم دې ته شجرة الخلد هم فرمائيلې شوې دې. حواله جات بالا.

**قوله: واقرءوا إن شئتم: ﴿وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ﴾** كه چرې غواړئې نودا آيت اولولئى. په دې آيت كښې د جنت د اوږد سورى خبره كيږى لكه چه دا حديث ددې آيت تفسير دې. اود «ولقاب قوس أحدكم» معنى داده چه په جنت كښې د ليندې برابر ځائې د ښائست وغيره په وجه د دنيا اومافيها نه بهتر دې داجمله كتاب الجهاد كښې تيره شوې ده.[4]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دحديث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې چه په دې كښې د جنت ښائست او وسعت وغيره تذكره كړې شوې ده.

د باب څوارلسم حديث هم د حضرت ابوهريره رضى الله عنه دې.

## الحديث الرابع عشر

۳۰۸۱ - حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، وَالَّذِينَ عَلَى آثَارِهِمْ كَأَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي

---

[1] فتح البارى: ۳۲۶/۲.

[2] عمدة القارى: ۱۵۸/۱۵ فتح البارى: ۶/۳۲۷-۳۲۶ وشرح القسطلانى: ۲۸۵/۵ قال ابن الملقن رحمه الله: المراد بظلها: راحتها ونعيمها، من قولهم: عز ظليل، وقيل معناه: ذراها وناحيتها وكنفها، كما يقال: أنا فى ظلك، أى: فى كنفك، وإنما أحوج إلى هذا التأويل، لأن ظل المتعارف عندنا إنما هو وقاية حر الشمس، وأذاها، وليس فى الجنة شمس، وإنما هى أنوار متوالية، لا حر فيها ولا قر، بل لذات متوالية، ونعم متتابعه. التوضيح: ۱۵۴/۱۹.

[3] التوضيح: ۱۵۳/۱۹ وكتاب الزهد لابن المبارك: ۲۶۷.

[4] كشف البارى: كتاب الجهاد اول: ۱۰۱-۱۰۰.

السَّمَاءِ إِضَاءَةً، قُلُوبُهُمْ عَلَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ، لَا تَبَاغُضَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَحَاسُدَ، لِكُلِّ امْرِءٍ زَوْجَتَانِ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ، يُرَى مُخُّ سُوقِهِنَّ مِنْ وَرَاءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ»[1] [ر ۳۰۷۳]

## تراجم رجال

**ابراهیم بن المنذر** دا مشهور محدث حضرت ابراهیم بن المنذر بن اسحاق حزامی رحمه الله دی.

**محمد بن فلیح** دا محمد بن فلیح بن سلیمان خزاعی رحمه الله دی ددې دواړو حضراتو حالات کتاب العلم باب من سئل علماً وهو مشتغل فی حدیثه لاندې تیرشوی دی.[2] ددې سند د نورو رواة دپاره سابقه سند اوګورئ. دا د باب د شپږم حدیث دریم طریق دی د دې حدیث تفصیلی شرح شاته شوې ده.

دباب پنځلسم حدیث د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دی

## الحديث الخامس عشر

۳۰۸۲- حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ: أَخْبَرَنِي قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَمَّا مَاتَ إِبْرَاهِيمُ قَالَ: «إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ»[3]- [ر ۱۳۱۶]

## تراجم رجال

**حجاج بن منهال**: دا حجاج بن منهال سلمی انماطی بصری رحمه الله دی ددوی تذکره کتاب الایمان باب ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة لاندې راغلی دی.[4]

**شعبه**: دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی رحمه الله دی ددې دواړو حضراتو حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې ذکر کړې شوې دی.[5]

**عدي بن ثابت**: دا مشهور تابعی حضرت عدی بن ثابت انصاری کوفی رحمه الله دی ددوی تذکره کتاب الایمان باب ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة لاندې راغلی دی.[6]

**البراء بن عازب**: دا مشهور صحابی رسول حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دی ددوی تذکره کتاب الایمان باب الصلوة من الایمان لاندې تیره شوې ده.[7]

**قوله: قال: لما مات ابراهیم، قال: إن له مرضعا فی الجنة** حضرت براء بن عازب رضی الله عنه

---

[1] قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، مر تخريجه آنفا في الحديث السادس من هذا الباب.

[2] فتح الباري: ۳/۶۲-۵۸.

[3] قوله: سمعت البراء رضي الله عنه: الحديث، انفرد به البخاري.

[4] كشف الباري: ۲/۷٤٤.

[5] كشف الباري: ۱/۶۷۸.

[6] كشف الباري: ۲/۷٤٥.

[7] كشف الباري: ۲/۳۷۵.

فرمائي چه كله حضرت ابراهيم صاحب زاده رسول ﷺ وفات شو نوحضورپاك اوفرمائيل چه په جنت كښې دهغه دپاره يوه پيئې وركونكې مرضعه ده.

**دَ حياة الانبياء عليهم السلام ثبوت:** د رسول الله ﷺ خوئي حضرت ابراهيم رضي الله عنه د وړوكوالي يعني د پينوڅكلو په زمانه كښې وفات شوې وو. نو رسول الله ﷺ د كورد خلقو او مسلمانانو د تسلئ دپاره د تعزيت په توګه دا ارشاد فرمائيلې. په دې حديث سره چه يو طرف نه دحضرت ابراهيم رضي الله عنه چه دحضورپاك خوئي دې د هغه منقبت ښكاره او واضح دې بل طرف ته دا زيرې هم دې چه هغه په جنت كښې خوراك كوي. دهغوي دپاره هلته هم د مرضعه پيئو وركونكې انتظام دې. په دې سره دهغوي حيات بعد الممات ثابتيږي نو په درجه اولى سره دا حيات دحضرات انبياء عليهم السلام دپاره هم ثابت دې. مولانا بدر عالم ميرتهى رحمه الله فرمائي: «وفيه بشارة بفضل إبراهيم رضي الله عنه، حيث عدّ من أخبر عنهم الله تعالى بحياتهم، فيأتيهم رزقهم غدوا وعشيا، وكان رزقه لبنا، فأوتي في الجنة. أعني في نما رزقه أنباء بحياته على شاكلة حياة الأنبياء عليهم السلام والشهداء. والله تعالى أعلم»[1]

**ترجمة الباب سره دَ حديث مناسبت:** په دې حديث سره د جنت وجود ثابتيږي دغه شان ددې د ترجمې د جزء ثاني سره مناسبت دې.

د باب شپاړلسم او آخرى حديث د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه دې.

## الحديث السادس عشر

٣٠٨٣- حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّ أَهْلَ الجَنَّةِ يَتَرَاءَوْنَ أَهْلَ الغُرَفِ مِنْ فَوْقِهِمْ، كَمَا يَتَرَاءَوْنَ الكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ الغَابِرَ فِي الأُفُقِ، مِنَ المَشْرِقِ أَوِ المَغْرِبِ، لِتَفَاضُلِ مَا بَيْنَهُمْ» قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ تِلْكَ مَنَازِلُ الأَنْبِيَاءِ لاَ يَبْلُغُهَا غَيْرُهُمْ، قَالَ: «بَلَى وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، رِجَالٌ آمَنُوا بِاللَّهِ وَصَدَّقُوا المُرْسَلِينَ»[2]

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله قرشي اويسى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب الحرص على الحديث په ذيل كښې ذكركړې شوې ده.[3]

**مالك بن انس:** دا امام دارالهجرة حضرت مالك بن انس مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالي حالات بدء الوحى او تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان كړې شوى دى.[1]

---

[1]) البدر السارى مع فيض البارى: ٣٢١/٤ وقال الكورانى الحنفى رحمه الله فيه شرح: إن له مرضعا فى الجنة: تكمل له الرضاع، صرح به فى الرواية الأخرى. الكوثر الجارى: ١٩٤/٦ وانظر أيضا الطبقات الكبرى لابن سعد: ١٤٠/١ ذكر أبراهيم، ابن رسول الله ﷺ

[2]) قوله: عن أبى سعيد الخدرى رضى الله عنه: الحديث. رواه البخارى فى الرقاق، باب ماجاء فى صفة الجنة وأنها مخلوقة: رقم: ٦٥٥٦ وفى التوحيد باب كلام الرب مع أهل الجنة رقم: ٧٥١٨ ومسلم رقم: ٧١٤٤ فى صفة الجنة باب ترائى أهل الجنة أهل الغرف والترمذى فى صفة الجنة باب بلاترجمة رقم: ٢٥٥٥.

[3]) كشف البارى: ٤٨/٤.

**صفوان بن سليم**: دا صفوان بن سليم مدني زهري رحمه الله دي. (۲)

**عطاء بن يسار**: دا ابومحمد عطاء بن يسار هلالي مدني رحمه الله دي. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب كفران العشير... کښې تيره شوې ده. (۳)

**ابوسعيد خدري**: دا مشهور صحابی رسول حضرت سعد بن مالك بن سنان ابوسعيد خدری انصاری رضی الله عنه دي. ددوی حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان کړې شوی دی. (۴)

**قوله: :عن صفوان بن سليم**: د سنن يو راوی دی. دکوم نوم چه ايوب بن سويد دې. (۵) ددوی نه دا وهم شوې دې چه د صفوان په ځائې زيد بن أسلم رحمه الله په سند کښې داخل کړې دې کوم چه صحيح نه دې. دارقطنی رحمه الله په غرائب مالك کښې د هغوی ذکر کړې دې. غرائب مالك د دارقطنی رحمه الله هغه تاليف دې په کوم کښې چه د امام مالك رحمه الله هغه صحيح احاديث جمع کړی دی کوم چه په موطاکښې ذکر نه دی. حديث باب هم دهغې نه دې. (۶)

**قوله: :عن أبي سعيد**: په ترمذی شريف وغيره کښې حديث باب مسند ابی هريره گرځولې شوې دې چنانچه هم دغه حديث هلته «فليح عن هلال بن علي عن عطاء بن يسار عن أبي هريرة» په طريق سره راغلې دې. (۷) د امام ذهلی رحمه الله قول امام دارقطنی رحمه الله نقل کړې دې:

«لست أدفع حديث فليح، يجوز أن يكون عطاء بن يسار حدث به عن أبي سعيد وعن أبي هريرة» (۸) چه زه دفليح حديث نه رد کوم ځکه چه دا بالکل ممکن دی چه عطاء دا د ابوسعيد اوحضرت ابوهريره رضی الله عنهما دواړو نه روايت کړې وی. خلاصه دا چه دا حديث د دواړو صحابه کرامو رضی الله عنهما د مسند نه کيدې شی. (۹)

**قوله: :عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: إن أهل الجنة يتراءيون أهل الغرف من فوقهم كما يتراءيون الكوكب الدري الغابر في الأفق من المشرق والمغرب، لتفاضل ما بينهم**: حضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه روايت کوی چه حضور پاك فرمائيلی دی چه بيشکه جنتيان به دخپل ځان دپاسه درجاتو بالاخانې داسې وينی لکه ځنګه چه تاسو د آسمان مشرقی يا مغربی کنارې سره يو روښانه ستورې ته ګورئ. دهغه فاصلې د وجې نه کومه چه دهغې په مينځ کښې وی. په دې حديث کښې چه د جنتيانو په مينځ کښې کوم تفاضل او تفاوت وی هغه بيان کړې شوې دې اوفرمائيلې شوی دی چه د اوچتو درجو والا جنتی به دومره په اوچتوالی

---

(۱) كشف الباري: ۲۹۰/۱ الحديث الثاني: ۸۰/۲.

(۲) ددوی دحالات دپاره اوګورئ كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده في خلوة.

(۳) كشف الباري: ۲۰٤/۲.

(۴) كشف الباري: ۸۲/۲.

(۵) دا ضعيف او کثر الوهم راوی دې. اوګورئ تهذيب الكمال ۴۷۷/۳-۴۷۵ رقم الترجمة ۶۱۶

(۶) فتح الباري: ۳۲۷/۶ عمدة القاري: ۱۵۹/۱۵.

(۷) رواه الترمذي رقم: ۲۵۵۶ أبواب صفة الجنة باب ماجاء في ترائي أهل الجنة في الغرف وأحمد: ۳۳۵/۲ رقم: ۸٤۰٤ ، ۳۳۹/۲ رقم: ۸٤۹۲

(۸) التوضيح: ۱۵۶/۱۹ وفتح الباري: ۳۲۷/۶ عمدة القاري: ۱۵۹/۱۵.

(۹) التوضيح: ۱۵۶/۱۹ وفتح الباري: ۳۲۷/۶ عمدة القاري: ۱۵۹/۱۵.

باندې وي لكه په دنيا كښې په آسمان باندې ستورى ته د هغې د كتلو دپاره ستونه اوچتولې شي هغه د دنيا په آسمان باندې د ډير لرې نه پرقيږى هم دغه تفاضل اوتفاوت دلته د يوحسى مثال په ذريعه واضح كړې شوي دې. اوددې وجه هم خودلې شوې ده چه ((لتفاضل مابينهم)). او دا ظاهرى خبره ده، په دنيا كښې هم دمرتبو د فرق لحاظ ساتلې شى نو په آخرت كښې به هم د اعمالو په ذريعه ددې لحاظ ساتلې شى.(١)

**دَ لفظ درى تحقيق**: الدري. دا لفظ په څلور قسم سره لوستلې شوې دې ① دُرِّيٌّ ② دُرِيءٌ ③ دِرِيٌّ ④ دِرِيءٌ بيا د دې معنى هم مختلف دى. چه د دال ضمه وى نو د در طرف ته به منسوب وى يعنى د مرغلرې په شان، تشبيه به په سپينوالى او پرق كښې وى. اوكه چرې د دال په كسره سره وې نو درأ په معنى د دفع دې يعنى لرې كول شړل، د ستورو په ذريعه شيطانان هم شړلې شى.(٢)

ابن الجوزى د كسائى په حواله سره دال مثلث هم روايت كړې دې اوفرمائيلي دى چه د دال په ضمه سره ذې نودر(مرغلره) طرف ته منسوب دې چه كسره سره وې نو معنى جارى اوسارى ده اوكه فتحه سره وې نومعنى اللامع يعنى پرقيدونكې دې(٣)راجح هم دغه دى چه درى بغيرد همزه ضمه سره وى د كوم معنى چه ډيرزيات روښانه اوپرقيدونكې ستورې او فراء فرمائى چه ډير لوئى ستورى ته وائى.(٤)

**دَ الغابر تحقيق**:الغابر د اكثر په روايت كښې هم دغه شان دې. دابن الحذاء په روايت كښې غاير دې يعنى د باء په ځائې ياء ده. خو ترمذى شريف(٥) په روايت كښې غارب دې. ددې ټولو معانى نيزدې نيزدې دى يعنى غيبيدل او لرې كيدل او ډوبيدل. مطلب دادې چه ستورې د ډوبيدو او راختو په وخت د نظر نه په لرې فاصله باندې وى په دې وجه ډير وړوكې ښكارى. دا بين المشرق والمغرب سره تعبيركړې شوې دې. يعنى د راختو په وخت او ډوبيدو په وخت اود افق نه د دنيا آسمان مراد دې.(٦)

**قوله: قالوا: يارسول الله،تلك منازل الأنبياء،لايبلغها غيرهم**: صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض اوكړو يارسول الله ﷺ داخو به د انبياء كرامو عليهم السلام منازل وى د نورو خو به د هغه ځائى پورې رسيدل نه كيږى.

**قوله: قال: بلى،والذى نفسى بيده،رجال آمنوابالله وصدقوا المرسلين**: نبى كريم ﷺ اوفرمائيل اوجى، هغه ذات د چا په لاس كښې چه زما ځان دې هغه بنديگان چه په الله باندې ايمان راوړى اود رسولانو تصديق ئې كړې هغوى د هغه ځائى پورې رسيدل حاصلولې شى.

**بلى صحيح دې يا بل؟**: امام قرطبى رحمه الله فرمائى چه بلى حرف ايجاب او تصديق دې د سياق حديث

---

(١) التوضيح: ١٥٨/١٩وفتح البارى: ٣٢٧/٦عمدة القارى: ١٥٩/١٥.

(٢) التوضيح: ١٥٩/١٩-١٥٨وفتح البارى: ٣٢٧/٦.

(٣) حواله جات بالا. والحجة للقراء السبعة: ٣٢٣/٥-٣٢٢والحجة فى القراءات السبعة: ١٦١سورت النور.

(٤) التوضيح:١٥٩/١٩وفتح البارى: ٣٢٧/٦.

(٥) رواه الترمذى رقم: ٢٥٥٦أبواب صفة الجنة باب ماجاء فى ترائى أهل الجنة فى الغرف.

(٦) التوضيح: ١٥٨/١٩وفتح البارى: ٣٢٧/٦عمدة القارى: ١٥٩/١٥.

تقاضاداده چه په جواب کښې د اول نه اضراب وی او د ثانی ایجاب او تصدیق. کیدې شی چه دا سل وو کوم چه په بلی سره بدل کړې شوی دې. ددې وجه داده چه د ایجاب مقام نه دې. صحابه کرامو حضراتو څه سوال نه وو کړې چه د سوال په جواب کښې د حرف ایجاب استعمال کیږی بلکه هغوی خو هم پخپله خودلې وو چه دغه مقامات رفیعه او درجات عالیه خو به انبیاء کرامو حضراتو ته حاصل وی زمونږ مقام او رسیدل ؛ هغه خانی پورې چرته؟ په دې وجه بل ونیل وو نه چه بلی. لکه چه دلته تسامح شوې دې. دې نه علاوه ابن التین رحمه الله لیکلی دی چه د ابوذر په روایت کښې : بلی په خانی بل دې. ددې نه هم د قرطبی رحمه الله تائید کیږی چه بل کیدل پکار وو نه چه بلی. علامه قرطبی رحمه الله نور فرمانی چه رجال د مبتداء محذوف خبر دې یعنی هم رجال اوس د رسول الله ﷺ د دغه پورتنی ارشاد مطلب دا شو چه دا بالاخانې به هغه خلقو ته حاصلیږی او ددې نعمتونه به هغه کسان حاصلوی چه په الله تعالی باندې مضبوط ایمان لری او د انبیاء مرسلین داسې تصدیق کوی څنګه چه هغوی مستحق دی.(۱)

**دٙ بلي ایجابیه توجیه**: که چرې روایت د بلی ایجابیه سره وې نوددې توجیه به داسې کیږی چه تیك ده دا اوچت منازل د الله تعالی دمقررکولو وجې نه به هم انبیاء کرام علیهم السلام ته حاصل وی مګر..... الله تعالی دهغوی نه علاوه هم په ډیرو خلقو چه هغوی به انبیاء نه وی خپل خصوصی فضل کوی او د هغه خانی پورې به هغوی ته رسیدل ورکوی. حافظ رحمه الله فرمای: «ويمكن توجيه "بلى" بأن التقدير: نعم هى منازل الأنبياء بإيجاب الله تعالى لهم ذلك، ولكن قد يتفضل الله تعالى على غيرهم بالوصول إلى تلك المنازل» (۲)هم دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله وغیره نقل کړې دې په دې کښې دی چه حضرات شیخین رضی الله عنهما به هم په هغه خلقو کښې شامل وی چاته چه دغه نعمتونه او بالاخانې حاصل وی. په دې روایت کښې دی: «وإن أبابكر وعمر منهما، وأنعما» (۳)

**د بالاخانو استحقاق به څنګه کیږي؟**: امام ترمذی رحمه الله دحضرت علی رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل کړی دی: «إن فى الجنة لغرفا، ترى ظهورها من بطونها، وبطونها من ظهورها. فقال أعرابى: لمن هى يا رسول الله؟ قال: هى لمن ألان الكلام، وأدام الصيام، وصلى بالليل والناس نيام» (۴)چه په جنت کښې داسې بالاخانې دی چه دهغې بهر د دننه نه او دننه د بهر نه ښکاری. یوباندچی تپوس اوکړو یا رسول الله! دهغې مستحق به څوك وی؟ نو حضورپاك اوفرمائیل دا بالاخانې به دهغوی دپاره وی چه په نرمئی سره خبرې اترې کوی، همیشه روژې ساتی او کله چه ټول خلق اوده وی هغه وخت د الله تعالی مخې ته د مانځه دپاره اودریږی.

**دا بالاخانې به کوم امت ته ملاويږي؟**: یو احتمال خودادې چه دغه پورته ذکرشوې بالاخانې به امت محمدیه علی صاحبها الف تحیه ته ملاویږی. او ښکته منازل به د نورو امتونو موحدینو ته. او دویم احتمال دادې چه د دغه بالاخانو استحقاق به هغه خلق لری چه مخکښې په جنت کښې داخل شی

---

(۱) الملهم: ۱۷۶/۷ التوضیح: ۱۵۹/۱۹ وفتح الباری: ۳۲۷/۶ عمدة القاری: ۱۵۹/۱۵.

(۲) فتح الباری: ۳۲۸/۶.

(۳) الجامع الترمذی کتاب المناقب باب مناقب أبی بکر الصدیق رضی الله عنه رقم: ۳۶۵۸ وأخرجه صاحب الحلیة: ۲۵۶/۲ عن جابر بن عبدالله رضی الله عنه

(۴) الجامع الترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة غرف الجنة رقم: ۲۵۲۷ ونوادرالأصول کما فی المختصر المطبوع: ۲۷۳ التوضیح: ۱۵۷/۱۹ وفتح الباری: ۳۲۸/۶.

اوسکته درجات به هغه خلقو ته ملاویږی چه د شفاعت او سفارش په ذریعه په جنت کښې داخلیږی.

**راجح قول:** حافظ ابن حجر رحمه الله اول قول راجح ګرځولو سره فرمائی چه ددې احتمال تائید د حدیث باب ددې جملې سره کیږی چه دهغه جنتیانو په حق کښې راغلې ده «هم الذین آمنوا بالله وصدقوا المرسلین»، چه د ټولو انبیاء کرام علیهم السلام د تصدیق تحقق صرف امت محمدیه علی صاحبها الف تحیه په حق کښې ثابت دې په خلاف د نورو قومونو او ملتونو سابقه. چه ددوی په حق کښې هم راتلونکې د ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام تصدیق ثابت دې مګر هغه په طریق د توقع دې نه چه په طریق د واقع (۱)

**یوه اهم تنبیه:** علامه کورانی حنفی رحمه الله فرمائی چه بعض شراح دا دعوی کړې ده چه د امت محمدیه هر یو کس به ددغه بالاخانو مستحق وی. حالانکه دا خالص غلطه خبره ده، د قرآن اوحدیث نه ددې هیڅ تائید نه کیږی بلکه هلته خو معامله ددې برعکس ده. پورته روایت تیرشوې دې چه حضور پاک علیه السلام حضرات شیخین رضی الله عنهما هم ددغه بالاخانو مستحق ګرځولې دی چه په دې خبره باندې صراحتاً دلالت کوی چه دا دخول عمومی نه بلکه خصوصی دې ګنی ددې حضراتو د تخصیص څه معنی؟ والله اعلم بالصواب. (۲)

**ترجمة الباب سره دحدیث مناسبت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه د ترجمې جزء اول سره دې چه په حدیث کښې د جنت د بالاخانو ذکر دې اودهغې د مستحقینو د اوصاف بیان دې.

## ۹- باب: صِفَةِ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ

**ماقبل سره مناسبت:** په تیرشوی باب کښې مطلقاً د جنت د نعمتونو تذکره وه دلته دهغې د دروازو صفت یعنی دهغې د شمیر او نومونو وغیره ذکرکولې شی لکه چه دا تخصیص بعد التعمیم دې.

**دترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمة الباب مقصد څه دې؟ په دې کښې د شراح رائې مختلف دی. ① د حافظ ابن حجر رائې خودا ده چه امام بخاری صفت وئیلو سره عدد (تعداد یعنی شمیر) یا تسمیه مراد اخستې دې. د عدد مراد اخستلو مطلب دادې چه د باب په مسند حدیث کښې د جنت د اتو دروازو ذکر دې. دتسمیه مراد اخستلو مطلب دادې چه په دې کښې د یوې دروازې نوم ریان ذکر دې او د نورو دروازو ذکر دمعلق روایاتو په تفصیل کښې دې کوم چه شاته په مختلف مقاماتو باندې موصولاً اومرفوعاً تیرشوی دی. (۳)

② علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته د جنت د دروازو شمیر اودهغې صفت بیانول غواړی. ددې ټولو خلاصه دا شوه چه دلته دوه خبرې دی: (۱) اول خودا چه د جنت د دروازو صفت څه دې؟ (۲) دویم دا چه دهغې د دروازو تعداد څه دې؟

---

[1]) فتح الباری: ۳۲۸/۶.

[2]) الکوثرالجاری: ۱۹۵/۶وفی هامش المصریة عن شیخ الإسلام: فإن قلت: فلا یبقی فی غیر الغرف أحد، لأن أهل الجنة کلهم مؤمنون مصدقون بالرسل؟ قلت: المصدقون بجمیع الرسل هم أمة محمدصلی الله علیه وسلم، فتبقی أمة غیره من سائر الأنبیاء فی غیر الغرف. الکنزالمتواری: ۱۶۸/۱۳.

[3]) فتح الباری: ۳۲۸/۶.

**دجنت د دروازو صفت**: دجنت د دروازو د او دوالی او پلنوالی باره کښې دحدیث په کتابونو کښې مختلف روایات راغلی دی. چنانچه مصنف ابن أبی شیبه او مسند احمد وغیره کښې دابوسعید خدری رضی الله عنه [1] او کعب رضی الله عنه [2] نه مرفوعاً روایت دې چه: ((أن ما بين المصراعين مسيرة أربعين سنة)) چه د جنت د دروازو د دواړو زنځیرونو په مینځ کښې دځلوېښتو کالو مسافت دې. او د ابن عمر رضی الله عنهما نه مرفوعاً نقل دی: ((باب أمتي الذي يدخلون منه الجنة عرض مسيرة الراكب المجود ثلاثا..)) [3] ښکاره خبره ده چه په دغه روایاتو کښې تعارض دې.

**د روایاتو په مینځ کښې تطبیق**: ددې په مینځ کښې تطبیق دادې چه څنګه په جنت کښې د جنتیانو درجات او منازل کښې تفاوت وی هم دغه شان به په دروازو کښې هم تفاوت وی. د چا چه څومره لوئی جنت وی هم دهغې په اعتبار سره به دهغې د دروازې اوږدوالې او پلنوالې هم وی. [4]

**د جنت د دروازو شمیر**: د جنت د دروازو د شمیر په سلسله کښې په کثرت سره روایات راغلی دی. په اکثر روایاتو کښې دا راغلی دی چه د جنت اته دراوازې دی. خو که په مختلف روایاتو باندې نظر واچولې شی نوداسې روایات هم شته په کوم کښې چه د زیاتو دروازو ذکر دې. علامه قسطلانی رحمه الله څوارلس یا پنځلس دروازې شمیرلې دی. [5] دا خو ډیر کم تعداد دی. دعبدالله بن عمرو بن العاص نه مرفوعاً روایت کښې پنځه زره دروازې نقل دی [6] او د حضرت عمر او حضرت ابن مسعود رضی الله عنهما نه لس زره [7] او د حضرت انس، حضرت ابوسعید الخدری او حضرت ابن عباس رضی الله عنهم نه او یا زره دروازو روایت نقل دې. [8]

اصل خبره داده چه په کومو روایاتو کښې دا راغلی دی چه د جنت دروازې به اته وی دې نه مراد د اتو واړو جنتونو جدا جدا اته دروازې دی. دا به دهغه جنتیانو صدر دروازې وی. بیا په دې کښې مختلف درجات وی او دهغه درجاتو به جدا جدا دروازې وی لکه چه څه به لوئی دروازې وی او څه وړې.

حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی: ((فلابد للجمع بينهما من الحمل على أبواب صغار وكبار)) [9]

یوبل ځائی کښې فرمائی: ((ولا بد من حمل هذه الأبواب الكثيرة على أبواب من داخل أبواب الجنة الأصلية......

---

[1] کنزالعمال: ۱۹۳/۱٤ رقم: ۳۹۲۲۷ عتبه بن غزوان رضی الله عنه المصنف لابن ابی شیبة: ۱۸/٤٥٦-٤٥٥ کتاب صفة الجنة والنار، باب رقم: ۳۵۱۷۲ ومسند الإمام أحمد: ۱۷٤/٤ رقم: ۱۷۷۱۸ مسند عتبة بن غزوان. المعجم الكبير: ۱۱۲/۱۷ ما أسنده عتبة.... رقم: ۲۷٤

[2] مصنف ابن ابی شیبة: ٤٥٦/۱۸ رقم: ۳۵۱۷۳.

[3] الجامع للترمذی أبواب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة الجنة رقم: ۲۵٤۸.

[4] حادی الأرواح إلی بلاد الأفراح: ۱۲۳/۱ فصل الباب الحادی عشر فی صفة أبوابها والکنز المتواری: ۱۷۱/۱۳.

[5] ددغه دروازو نومونه دادی: (۱) باب الريان (۲) باب الصلاة (۳) باب الجهاد (٤) باب الصدقه (۵) باب الرحمة (باب التوبة) (٦) باب الزكوة (۷) باب الحج (۸) باب العمره (۹) باب الكاظمين الغيظ (۱۰) باب الراضين (۱۱) الباب الايمن (۱۲) باب الضحى (۱۳) باب الفرح (۱٤) باب الذكر (۱۵) باب الصابرين. او ګورئی إرشادالساری: ۲۸٦/۵.

[6] رواه ابن جرير الطبری فی تفسیره: ۵۱۲/۱۳ تحت قول الله تعالی ﴿يَدْخُلُوْنَ عَلَيْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ﴾ وروی ذلک موقوفا عن عمر، المصنف لابن أبی شیبة: ٤۵۳/۱۸ کتاب صفة الجنة رقم: ۳۵۱٦٦.

[7] المصنف لابن أبی شیبة: ۳۹/۷ رقم: ۳٤۰۳۲ وکنزالعمال: ۲۷۳/۱٤ کتاب القیامة، الجنة رقم: ۳۹۷٦۳ عن عمر.

[8] کنزالعمال: ۵۵۰/۱ عن أنس رقم: ۲٤٦۳ وفضل الأوقات للبیهقی: ۱۵٤/۱ رقم: ٤٤-٤۳ عن أبی سعید رضی الله عنه

[9] الکنز المتواری: ۱۷۳/۱۳ والکوکب الدری: ٤۰۲/٤.

وبه جزم مشايخى عند الدرس». والله اعلم بالصواب.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: (مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجَنَّةِ). [ر: ۱۷۹۸]

او نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه کوم سړی دوه یوشان څیزونه (د الله په لار کښې) خرچ کوی نوهغه ته به د باب الجنة نه آواز کیږی.

**د مذکوره تعلیق تخریج** دا تعلیق امام بخاری رحمه الله مسنداً کتاب الصوم وغیره کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت سره موصولاً نقل کړې دې. فِيهِ عُبَادَةُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ. [ر: ۳۲۵۲]

**دمذکوره تعليق تخريج:** لکه چه په دې عبارت کښې امام بخاری رحمه الله ددې حدیث طرف ته اشاره کړې ده کوم چه هغوی پخپله کتاب احادیث الانبیاء کښې موصولاً نقل کړې دې. په هغې کښې دی «من شهد أن لا إله إلا الله وحده، لا شريك له، وأن محمدا عبده ورسوله، وأن عيسى عبدالله ورسوله، وكلمته ألقاها إلى مريم، وروح منه، والجنة حق، والنار حق، أدخله الله الجنة على ما كان من العمل، .... من أبواب الجنة الثمانية أيها شاء»[2]

د حضرت عبادة رضی الله عنه نه یوبل حدیث هم ددې مضمون نقل دې په هغې کښې هم د ابواب الجنة ذکر دې. دا امام طبرانی رحمه الله[3]، امام احمد رحمه الله[4]، امام حاکم رحمه الله[5]، امام ابن ابی عاصم رحمه الله[6] او حافظ ابن حبان رحمه الله[7] وغیره[8] ذکرکړې دې.[9] دهغې الفاظ دادی:

«عليكم بالجهاد في سبيل الله فإنه باب من أبواب الجنة، يذهب الله به الهم والغم»

چه دالله تعالی په لارکښې جهاد کوئی ځکه چه هغه د جنت د دروازو نه یوه دروازه ده. الله تعالی ددې په ذریعه پریشانی اوغم لرې کوی

**د دواړو تعليقاتو مقصد او مناسبت:** ددې دواړو تعليقاتو د ذکرکولومقصد هم دغه دې چه د جنت مختلف دروازې دی دکومې چه مختلف صفات دی. چونکه ترجمه هم ددې وه په دې وجه ترجمة الباب سره ددواړو تعليقاتو مطابقت واضح دې چه په دواړو کښې د جنت د دروازوذکر دې. والله اعلم.

## الحديث الاول

۳۰۸۴- حَدَّثَنَا سَعِيدُ [ص: ۱۲۰] بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «فِي الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ، فِيهَا بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانَ، لَا يَدْخُلُهُ إِلَّا الصَّائِمُونَ»[10]. [ر ۱۷۹۷]

---

[1] الكنز المتوارى: ۱۷۲/۱۳ وأوجز المسالک: ۴۵۷/۹.

[2] صحيح البخارى كتاب احاديث الأنبياء رقم: ۳۴۳۵.

[3] المعجم الكبير: ۱۸۱/۱۸ رقم: ۸۳۳۴ عن أبى أمامة الباهلى.

[4] مسند أحمد: ۲۳۰ رقم: ۲۳۱۸۱ حديث عبادة.

[5] المستدرک: ۸۴/۲ كتاب الجهاد رقم: ۲۴۰۴.

[6] الجهاد لابن ابى عاصم: ۱۳۴-۱۳۳/۱ و۱۳۶ ما ذكر عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه قال: الجهاد باب.....

[7] صحيح ابن حبان: ۱۹۴/۱۱ كتاب السير باب الغلول ذكر الإخبار بأن الغال يكون غلوله: ۴۸۵۵.

[8] الأحاديث المختارة للضياء المقدسى: ۲۹۱-۲۹۲/۸ رقم: ۳۵۶-۳۵۸ والسنن الكبرى للبيهقى: ۲۰/۹ باب أصل فرض الجهاد رقم: ۱۸۲۵۵.

[9] انتوضيح: ۱۶۱/۱۹.

[10] قوله: عن سهل بن سعد رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه فى كتاب الصوم باب الريان للصائمين رقم: ۱۸۹۶.

## تراجم رجال

**سعيدبن ابي مريم:** دا سعيد بن ابى مريم جمحى بصرى رحمه الله دې ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب من سمع شيئا فراجع لاندې راغلى دى [1]
محمدبن مطرف: دا ابوغسان محمد بن مطرف بن داؤد تيمى مدنى رحمه الله دې [2] ابوحازم: دا ابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دې
**سهل بن سعد:** دا مشهور صحابى رسول حضرت ابوالعباس سهل بن سعد الساعدى رضي الله عنه دې [3]
**ترجمة الباب سره د حديث مطابقت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دوو وجوهاتو سره دې چه په دې كښې د جنت اته دروازو هم ذكر دې او په دې كښې د يوې دروازې صفت هم ذكر دې يعنى ريان په كوم باندې چه به روژه دار په جنت كښې داخليږى دا د رى نه ماخوذ دې دكوم معنى چه د خروبوالى ده. مطلب دادې چه كوم سړې تګې په دې دروازه دننه داخليږى دهغه تنده به ماته شى اوختمه به شى نولكه څنګه چه دا صفت په يو دروازه كښې دې په نورو دروازو كښې به دغه شان صفاتو لحاظ كړې شوې وى [4] ددې حديث شرح د كتاب الصوم په شروع كښې تيره شوې ده [5]

## ۱۰-باب: صِفَةِ النَّارِ، وَأَنَّهَا مَخْلُوقَةٌ.

**ماقبل سره مناسبت:** په تيرشوو دوارو بابونو كښې د جنت د هغې د نه ختميدونكو نعمتونو ذكر وو ددې خانى نه د جهنم ذكر شروع كيږى اولنې كه د الله تعالى د جمالى صفت مظهر دې نو دويم د الله تعالى د جلالى صفت مظهر دې. په دنيا كښې دوه قسم خلق دى نيكان او ګناهګاران جنت د نيكانو خانى دې او جهنم د بدانو، نو مناسبت واضح دې.
**دترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمة الباب مقصد بالكل واضح دې امام بخارى رحمه الله په معتزله او ټولو عقليت خوښونكو باندې رد كوى څوك چه د جهنم نه انكار كوى چه د جهنم ثبوت بالكل برحق دې او هغه پيدا كړې شوې دې. [6]
پاتې شو دا سوال چه اوس جهنم چرته دې؟ نو ددې جواب دحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه په دې حديث كښې دې چه د رسول الله نه پوښتنه اوكړې شوه چه جهنم به د كوم خانى نه راوړلې شى؟ نو اوفرمائيلې شو چه د قيامت په ورځ به جهنم د اوومې زمكې نه راوړلې شى. ددې به اويا زره واګې وى [7] مطلب دا چه هغه په اوومه زمكه كښې دې حسب عادت دلته هم امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب

---

[1] كشف البارى: ۱۰۶/٤.
[2] ددوى دحالاتودپاره اوګورئى كتاب الأذان باب فضل من غدا إلى المسجد.....
[3] ددغه دوارو حضراتود حالاتودپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم.......
[4] عمدة القارى:۱٥/۱٦۰.
[5] كتاب الصوم باب الريان للصائمين.
[6] قال الإمام النسفى رحمه الله: والجنة حق، والنار حق، وهما مخلوقتان الآن، موجودتان، باقيتان، لا تفنيان، ولا يفنى أهلهما. متن العقائد النسفية: ٤۱۸المطبوع مع شرحه للتفتازانى، البشرى.
[7] التوضيح: ۱٦٦/۱۹والتفسير المظهرى سورة النحل. الآية: ۱۱۱، ۳۸۳/٥.

باندې دلالت کونکې احادیث ذکرکولونه اول آیات قرآنی ذکرکړې دی چه ددې هم دې موضوع سره مناسبت دې. ﴿غَسَّاقًا﴾/النبأ: ۲۵/ يُقَالُ: غَسَقَتْ عَيْنُهُ وَيَغْسِقُ الْجُرْحُ، وَكَأَنَّ الْغَسَاقَ وَالْغَسَقَ وَاحِدٌ. ﴿غِسْلِينٍ﴾/الحاقة: ۳۶/ كُلُّ شَيْءٍ غَسَلْتَهُ فَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ فَهُوَ غِسْلِينٌ، فِعْلِينٌ، مِنَ الْغَسْلِ مِنَ الْجُرْحِ وَالدَّبَرِ.

په دې عبارت کښې امام بخاری رحمه الله د آیت مبارك ﴿إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا﴾ طرف ته اشاره کړې ده اوددې تفسیر ئې کړې دې. په دې آیت کښې موجود لفظ غساقا تفسیر اومعنی کښې اختلاف دې. علامه جوهری رحمه الله فرمائی دغسقت عینه معنی ده په سترګوباندې تیاره خوره شوه اودهغه سترګه خرابه شوه. اوغسق الجرح معنی ده د زخم نه زیړې زیړې اوبه بهیدل د زخم سخاکیدل اوخرابیدل. بعض د دې مطلب السائل خودلې دې یعنی بهیدونکې.

یوقول دادې چه د الغساق معنی ده البارد الذي يحرق ببرده چه داسې یخې اوبه چه د خپل یخوالی او بردودت د وجې نه سوزول کوی. بعض وئیلی دی چه الماء البارد المنتن یخې بدبوئی والا اوبه. دا معنی دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه د مرفوع حدیث نه هم ثابته ده. د ترمذی اوحاکم روایت دې. «لوأن دلوا من غساق يهراق إلى الدنيا لأنتن أهل الدنيا» (۱)

ابن درید رحمه الله فرمائی چه دا د دوزخیانو د نونو اوبه دی چه هلته به په یو تالاب کښې راجمع کیږی. د تندې لګیدو په صورت کښې به جهنمیان ددې نه غساق څکی. اعاذنا الله منه. (۲)

دَ غساق ضبط: بیا داسې اوګنړئی چه د غساق سین مشدد اومخفف دواړه شان لوستلې شوې دې. د امام ابوعمر ودانی رحمه الله په قراءت کښې مشدد دې اوداامام کسائی رحمه الله په قراءت کښې مخفف دې. نوچه چا مشدد لوستلې دی هغه السائل مراد اخستې دې اوځوك چه مخفف وائی هغوی البارد مراد اخستې دې. د دې ټولو اقوال حاصل لکه چه دا دې جهنمیان به غساق څکی چه ډیر زیات یخ بدبونی داره او بهیدلې نوونه دی. (۳)

اوامام بخاری رحمه الله دې «وكأن الغساق....» سره دا خودلی دی چه غساق اوغسیق کښې د فعال اوفعیل وزنونه هم یوه معنی اداکوی. مولانا محمد حسن مکی رحمه الله لیکی چه دامام بخاری رحمه الله طریقه او عادت دادې چه کله هغه ته د یو لفظ په معنی او ترادف وغیره په سلسله کښې د لغت د کتابونونه څه حتمی خبره نه معلومیږی نود خپلې رائې اظهار "كأن" په ذریعه کوی. (۴)

﴿غِسْلِينٍ﴾: كُلُّ شَيْءٍ غَسَلْتَهُ فَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ فَهُوَ غِسْلِينٌ، فِعْلِينٌ، مِنَ الْغَسْلِ مِنَ الْجُرْحِ وَالدَّبَرِ: په دې

---

[۱]) الجامع للترمذی فی صفة جهنم باب ماجاء فی شراب أهل النار رقم: ۲۵۸۸ والمستدرک للحاکم: ۶۰۲/٤ کتاب الأهوال رقم: ۸۷۷۹

[۲]) ددې ټولو اقوالو دپاره اوګورئی عمدة القاری: ۱۶۰/۱۵ وإرشادالساری: ۲۸۷/۵ ولسان العرب مادة: غسق والصحاح للجوهری مادة غسق وفتح الباری ۳۳۱/۶ التوضیح: ۱۶۶۱۹.

[۳]) عمدة القاری: ۱۶۰/۱۵ وفتح الباری: ۳۳۱/۶.

[٤]) الکنز المتواری: ۱۷٤/۱۳ وقال العینی فی العمدة: ۱۶۱/۱۵ وقد تردد البخاری فی کون الغساق، والغسق واحدا، ولیس بواحد......

عبارت کښې د قرآن کریم د آیت ﴿وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ﴾ [1] طرف ته اشاره کړې ده اود غسلين وضاحت او تفسير کړې شوې دې چه غسلين د فعلين په وزن دې. غسل - بفتح الغين - نه مشتق اوماخوذ دې. د زخم وينځلې شوى ته غسلين وائى.

**دَ مذكوره عبارت وضاحت:** جرح خو هريوزخم ته وائى مګر دبر [2] هغه زخم ته وائى كوم چه اوښ ته لګيدلې وى. عموماً د بوج اوچتولوسره د اوښانو شا زخمى كيږى. اوس به مطلب داسې شى چه غسلين د زخمونو د وينځلو سره چه كوم ګند اومردارى او اوبه راوځى هغې ته وائى. كوم ته چه دهون هم وائى. [3]

پورته ذکر کړې شوې د غسلين تفسير دحضرت ابوعبيده رحمه الله دې. خو طبرى رحمه الله په خپل طريق سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د غسلين معنى دا نقل كړې ده. «صديد أهل النار» [4] يعنى د دوزخيانو نوونه. [5] مطلب دا دې چه د زخمونو وينه او پيپ (نوونه) به دهغوى خوراك وى. چونكه دهغوى زخمونه هلته وينځلې خو به شى نوچه كوم دهغې نه پيپ (نوونه) او وينه راوځى هغوى به دغه خورى.

**يواشكال اودهغې جوابات:** دلته اشكال دا پيداكيږى چه الله تعالى ارشادفرمائى ﴿وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ﴾ بل خائې دى ﴿لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِنْ ضَرِيعٍ﴾ [6] اوضريع بنكاره خبره ده چه نبات ته وائى نو په ظاهره په دواړو آياتونو كښې تعارض راغلې؟

بعض حضراتو دجمع بين الآيتين لار اختيارولوسره ونيلى چه ضريع به هم د غسلين نه وى ليكن دا غلط دى ځكه چه كتاب التفسير [7] كښې راخى چه ضريع نبات دې اودلته پخپله مصنف رحمه الله د غسلين شرح دهون سره كړې ده. اصل خبره داده چه دوزخيان به مختلف قسم وى د هريو قسم خوراك به جدا جدا وى د چا به ضريع اود چا به غسلين وى. والله اعلم. [8]

وَقَالَ عِكْرِمَةُ: ﴿حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾/الأنبياء: ٩٨/: حَطَبُ بِالْحَبَشِيَّةِ. وَقَالَ غَيْرُهُ: ﴿حَاصِبًا﴾/الإسراء: ٦٨/: الرِّيحُ الْعَاصِفُ، وَالْحَاصِبُ مَا تَرْمِي بِهِ الرِّيحُ، وَمِنْهُ ﴿حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ يُرْمَى بِهِ فِي جَهَنَّمَ هُمْ حَصَبُهَا، وَيُقَالُ: حَصَبَ فِي الْأَرْضِ ذَهَبَ، وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنْ حَصْبَاءِ الْحِجَارَةِ. ﴿صَدِيدٍ﴾/إبراهيم: ١٦/: قَيْحٌ وَدَمٌ ﴿خَبَتْ﴾ /الإسراء: ٩٧/:

طَفِئَتْ ﴿تُورُونَ﴾/الواقعة: ٧١/: تَسْتَخْرِجُونَ، أَوْرَيْتُ أَوْقَدْتُ. ﴿لِلْمُقْوِينَ﴾/الواقعة: ٧٣/: لِلْمُسَافِرِينَ، وَالْقِيُّ الْقَفْرُ.

وَقَالَ عِكْرِمَةُ: ﴿حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾: حَطَبُ بِالْحَبَشِيَّةِ: آيت مبارك ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ طرف ته اشاره ده چه حضرت عكرمه رحمه الله په دې آيت كښې ذكر شوې لفظ حصب تفسير

---

[1] الحاقة: ٣٦.

[2] والدبر: بفتح الدال المهملة والموحدة: ما يصيب الأبل من الجراحات. شرح القسطلانى: ٢٨٧/٥.

[3] فيروزاللغات فارسى حصه دوم ١٦٨ ماده غ.س.

[4] عمدة القارى: ١٦١/١٥فتح البارى: ٣٣١/٦تفسير الطبرى: ٤١/٢٩.

[5] عمدة القارى: ١٦١/١٥فتح البارى: ٣٣١/٦

[6] سورة الغاشية: ۶

[7] صحيح البخارى كتاب التفسير، (تفسير) سورة هل أتك حديث الغاشية قال البخارى رحمه الله هناك: ويقال: لضريع نبت.....

[8] فتح البارى: ٣٣١/٦وعمدة القارى: ١٦١/١٥.

حطب سره كړې دې اوفرمائيلى دى چه په حبشى زبان كښې حصب ته حطب وائى، اود حطب معنى د لرګى اوخشاك ده. علامه خليل بن احمد فراهيدى فرمائى چه حصب مطلقاً خشاك ته وائى يعنې كوم چه د اور بلولو په كار راشى. كوم لرګى چه د خشاك په توګه مستعمل نه وى هغه حصب نه دې (۱)

ابن عرفه رحمه الله فرمائى چه كه د حضرت عكرمه رحمه الله مراد دادې چه لفظ حصب حبشى الاصل دې لكه چه عربو اوريدلى دى او دانى د عربى ژبې حصه جوړكړو نو په دې كښې هيڅ حرج نشته دې. اوس دا عربى لفظ دې ګڼى په قرآن كريم كښې څه غير عربى لفظ موجود نه دې. (۲)

**دَمذكوره تعليق تخريج:** دحضرت عكرمه رحمه الله دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله په خپل تفسير كښې عبد الملك بن ابجر په طريق سره موصولاً نقل كړې دې. (۳) هم دغه شان ابن ابى عاصم هم دا موصولاً تخريج كړې دې (۴)

**وَقَالَ غَيْرُهُ: ﴿حَاصِبًا﴾: الرِّيحُ الْعَاصِفُ:** دغيره ضمير مجرور دحضرت عكرمه رحمه الله طرف ته راجع دې اود غير نه مراد ابوعبيده رحمه الله. هغوى د سورة الملك آيت ﴿أَمْ أَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ أَن يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا﴾ (۵) كښې راغلې لفظ **حاصبا** تفسير په **الريح العاصف** سره كړې دې (۶) يعنى داسې سخته سيلئى چه خاورې او قوت كانړى الوزوى.

**وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنْ حَصْبَاءِ الْحِجَارَةِ:** امام بخارى رحمه الله پورته لفظ حصب د اشتقاق په بدلون سره مختلف معانى ذكر كړې وى په دې جمله كښې ئې د دغه ټولو معانى اصل اوخودلو چه حصب په اصل كښې د **حصباء** نه دې او **حصباء** قوت كانړى ته وائى. جوهرى رحمه الله ليكلى دى **حصمت الرجل أحصبه** په معنى كښې دې. **رميته بالحصباء** يعنى ما هغه په قوت كانړى اوويشتلو (۷)

اهل جهنم ته هم ﴿حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ ونيلې شوې دې چه هغوى به په دې كښې غورزولې شى لكه چه قوت كانړى غورزولې شى چرته چه به هغه د خشاك په توګه سوزيږى. (۸) او **حصب فى الأرض** معنى ده تلل، تګ. والله اعلم. (۹)

**﴿صَدِيدٍ﴾: قَيْحٌ وَدَمٌ:** په دې كښې دې آيت مبارك ﴿وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ﴾ (۱۰) طرف ته اشاره ده چه ابوعبيده د صديد تفسير نوونه اووينې سره كړې دې. مطلب دادې چه دوزخيانو له به د څكلو پاره وينې اونوونه وركولې شى. (۱۱)

---

(۱) كتاب العين للفراهيدى: ۱۲۳/۳باب الحاء والصاد والباء معهما مادة: حصب، وعمدة القارى: ۱۶۱/۱۵.

(۲) التوضيح: ۱۶۶/۱۹عمدة القارى: ۱۶۱/۱۵.

(۳) فتح البارى: ۳۳۱/۶وتغليق التعليق: ۵۰۸/۳.

(۴) عمدة القارى: ۱۶۱/۱۵.

(۵) سورة الملك:۱۷.

(۶) فتح البارى: ۳۳۱/۶عمدة القارى:۱۶۱/۱۵ولسان العرب مادة حصب

(۷) الصحاح للجوهرى مادة حصب، وعمدة القارى: ۱۶۱/۱۵.

(۸) فتح البارى: ۳۳۲/۶عمدة القارى:۱۶۱/۱۵.

(۹) عمدة القارى:۱۶۱/۱۵ فتح البارى: ۳۳۲/۶وكشف البارى كتاب التفسير سورة الإسراء: ۳۶۴-۳۶۳ ولسان العرب مادة حصب

[خَبَتْ] طَفِئَتْ : په دې كښې آيت مبارك. [كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا] (۳) طرف ته اشاره ده چه په دې كښې راغلې لفظ خبت معنى طفئت يعنى د مړه كيدو ده.

**دخبت تحقيق اومختلف معاني محتمله:** خبت د فعل ماضى مؤنث صيغه ده په دې كښې ضمير دې كوم چه راګرځى د النار طرف ته اومطلب دادې چه هغه اور كله يخ شى نو مونږ (الله) به دهغې شدت زياتوو.

خبت خبؤ نه مشتق دې، دنصرنه راځى دكوم معنى چه كه چرې د دې فاعل النار وى نود يخيدو ده. خو امام بخارى رحمه الله د دې تفسير طفئت سره كړې دې. د كوم معنى چه د مړه كيدو ده. دا تفسير په اصل كښې امام طبرى رحمه الله په خپل طريق سره د امام مجاهد رحمه الله نه نقل كړې دې. خود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د دې تفسير سكنت نقل دې. دغه شان د امام ابوعبيده رحمه الله نه هم نقل دې. (۴)

حافظ ابن حجر فرمائى چه هم دغه دويمه معنى راجح كيدل پكاردى خكه چه اهل عرب د اور باره كښې كله چه هغه يخ شى او په سكروټوباندې ايره غالب شى نو خبت النار وائى. اوكله چه اكثر سكروټې مړې شى نوخمدت النار وائى اوكله چه بالكل مړ شى نو همدت النار وائى. خو په دې خبره كښې هيڅ شك نشته دې چه د دوزخ اور به نه مړكيږى. په دې وجه د لفظ خبت مناسب تفسير هم هغه دې كوم چه دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې. چه د دې معنى سكنت ده. والله اعلم بالصواب (۵)

﴿تُوْرُوْنَ﴾: تَسْتَخْرِجُوْنَ، أَوْرَيْتُ أَوْقَدْتُ: تورون يعنى تاسو راوباسئى. أوريت: أوقدت. د لفظ تورون په ذريعه حضرت مصنف رحمه الله د سورت واقعه آيت مبارك ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِيْ تُوْرُوْنَ ﴾ (۶) طرف ته اشاره كړې ده. او مذكوره تفسير دحضرت ابوعبيده رحمه الله دې. هغوى د تورون تفسير تستخرجون سره كړې دې. دكوم معنى چه د راويستو ده. د ونو لرګى سوزولوسره دهغې نه د اور د راويستلو كاراخستې شى. (۷) أوريت د باب افعال نه دماضى متكلم صيغه ده دكوم معنى چه د اور لګولو او تيزولو ده دمجرد نه هم د دې هم دغه معنى راځى. (۸)

﴿لِلْمُقْوِيْنَ﴾ لِلْمُسَافِرِيْنَ، وَالْقِيُّ الْقَفْرُ: هم په سورت واقعه كښې راغلى دى﴿ نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ ﴾ (۹)

چنانچه امام بخارى رحمه الله په دې كښې راغلې لفظ مقوين تفسير اوتوضيح فرمائى چه د مقوين معنى مسافر ده.

---

[۱] سورة ابراهيم: ۱۶.

[۲] عمدة القارى: ۱۶۱/۱۵ومجاز القرآن: ۳۳۸/۱سورة إبراهيم.

[۳] سورة الاسراء :۹۷

[۴] تفسير الطبرى: ۱۱۳/۱۵سورة الإسراء ومجازالقرآن: ۳۹۱/۱.

[۵] فتح البارى: ۳۳۲/۶ ولسان العرب مادة خبء، والقاموس الوحيد مادة: خبء.

[۶] سورت واقعه: ۷۱.

[۷] فتح البارى: ۳۳۲/۶ مجازالقرآن: ۲۵۲/۲.

[۸] عمدة القارى: ۱۶۱/۱۵والقاموس الوحيد مادة ورى.

[۹] سورة الواقعة: ۷۳.

**متعدد تفسيري اقوال:** ددې لفظ په تفسير او مطلب كښې متعدد اقوال دى. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مجاهد قتاده او ابن جرير رحمهم الله وغيره ددې معنى مسافرين بيان كړې ده. بعض نور د تفسير ائمه فرمائى چه دا د قى نه مشتق دې د كوم معنى چه خنګل او بيابان دې. خو عبدالرحمن بن زيد بن اسلم نه ددې معنى محتاج اوفقير نقل ده. او ابن ابى نجيح رحمه الله معنى مستمعين يعنى غوږ كيخودونكې او په توجوسره اوريدونكې هم كړې ده. (١)

دا ټول مطالب اومعانى بلاتكلف په دې خائى كښې راجمع كيدې هم شى ځكه چه داور په شان نعمت دكوم ذكر چه دې نه ورانديز شوې، هريوسړې محتاج دې اود خالق لم يزل طرف نه عظيم احسان اوانعام، كه مقيم وى كه مسافر، خنګل وى كه بيابان يا آبادئى كښې محتاج وى يا آسوده حال، غنى وى كه تنګ دست....، هريو ددې نعمت محتاج دې اودې نه فائده اوچتوى. **القى قفر** يعنى بيابان، بې آب وګيا صحراء، خنګل خالى ميدان ددې جمع قفار راځى. (٢)

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿صِرَاطِ الْجَحِيمِ﴾/الصافات: ٢٣/: سَوَاءِ الْجَحِيمِ وَوَسَطِ الْجَحِيمِ. ﴿لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ﴾ /الصافات: ٦٧/: يُخْلَطُ طَعَامُهُمْ بِالْحَمِيمِ. ﴿زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ﴾ /هود: ١٠٦/: صَوْتٌ شَدِيدٌ وَصَوْتٌ ضَعِيفٌ. ﴿وِرْدًا﴾ /مريم: ٨٦/: عِطَاشًا ﴿غَيًّا﴾/مريم: ٥٩/: خُسْرَانًا. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿يُسْجَرُونَ﴾/غافر: ٧٢/: تُوقَدُ بِهِمُ النَّارُ. ﴿وَنُحَاسٌ﴾/الرحمن: ٣٥/: الصُّفْرُ يُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ. يُقَالُ: ﴿ذُوقُوا﴾/الحجر: ٢٢/: بَاشِرُوا وَجَرِّبُوا، وَلَيْسَ هَذَا مِنْ ذَوْقِ الْفَمِ. ﴿مَارِجٍ﴾ /الرحمن: ١٥/: خَالِصٍ مِنَ النَّارِ، مَرَجَ الْأَمِيرُ رَعِيَّتَهُ إِذَا خَلَّاهُمْ يَعْدُو بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ. ﴿مَرِيجٍ﴾/ق: ٥/: مُلْتَبِسٍ، مَرِجَ أَمْرُ النَّاسِ اخْتَلَطَ. ﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ﴾/الرحمن: ١٩/: مَرَجْتَ دَابَّتَكَ تَرَكْتَهَا.**

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿صِرَاطِ الْجَحِيمِ﴾: سَوَاءِ الْجَحِيمِ وَوَسَطِ الْجَحِيمِ:** قرآن مجيد كښې يوخائى ﴿صِرَاطِ الْجَحِيمِ﴾ او يوخائى كښې ﴿سَوَآءِ الْجَحِيمِ﴾ (٣) مصنف رحمه الله ددې تفسير وسط الجحيم سره كړې دې او په دليل كښې دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړې دې. مطلب دادې چه دا لفظ په دواړو كښې مشترك دې. (٤)

**دمذكوره تعليق تخريج:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما پورته ذكرشوې تفسيرى اثر ابن ابى حاتم او امام طبرى رحمه الله موصولاً نقل كړې دې. (٥)

**﴿لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ﴾: يُخْلَطُ طَعَامُهُمْ بِالْحَمِيمِ:** آيت مبارك كښې ﴿ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ﴾ (٦) طرف ته اشاره كړې ده اودشوب تفسير ئې خلط سره كړې دې. حضرت ابوعبيده رحمه الله فرمائى ((**تقول العرب: كل شيء خلطته بغيره فهومشوب**)) (٧)

---

(١) فتح البارى: ٣٣٢/٦عمدة القارى: ١٦٢/١٥ومعارف القرآن للكاندهلوى: ٦٢٠/٧
(٢) لسان العرب مادة (ق، ى، ى) وعمدة القارى: ١٦٢/١٥.
(٣) سورة الصافات: ٥٥.
(٤) فتح البارى: ٣٣٢/٦ عمدة القارى: ١٦٢/١٥تحفة البارى: ٣٢/٤.
(٥) فتح البارى: ٣٣٢/٦عمدة القارى: ١٦٢/١٥ تغليق التعليق: ٥٠٨/٣والدر المنثور: ٢٧٧/٥ تفسير الطبرى: ٣٩/٢٣.
(٦) سورة الصافات: ٦٨
(٧) فتح البارى: ٣٣٢/٦عمدة القارى: ١٦٢/١٥وتفسير الطبرى: ٤١/٢٣.

دآيت مبارك مطلب دادې چه دهغوى خوراك به د ترخې ونې خوړل ګرمو خوټکيدلو اوبوسره ګډوډ ملاؤ شوې وی. ساط يسوط سوطا اوخلط يخلط هم يوه معنى ده يعنى يوخائى كول اوګډوډ كول.(1)

**[زفير وشهيق] صوت شديد وصوت ضعيف [فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ]**(2) طرف ته اشاره كړې ده. په دې كښې راغلى الفاظ زفير او شهيق تفسير كوى چه د زفير معنى سخت آواز او د شهيق معنى كمزورې آواز دې. امام طبرى رحمه الله او ابن ابى حاتم رحمه الله د على بن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د دې الفاظو هم دغه تفسير روايت كړې دې.(3)

په لغت كښې زفير د خر د شروع والا آواز ته وائى كوم چه سخت وى اوشهيق د خر روستونى آواز ته وائى كوم چه په مزه مزه كميږى مګر په هغې كښې ساه ډيره اوږده وى. اوس د آيت مبارك مطلب دا شو چه د دوزخيانو به په دوزخ كښې دا حالت وى چه دهغوى د پاره به د خر اول آواز په شان چغې صورې وى. د غم كرب شدت، اوشدت د الم اوخفګان نه به دهغوى د اشقياء دا حالت وى. أعاذنا الله منها.(4)

**(وِرْدًا): عِطَاشًا:** آيت مبارك **(وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا)**(5) كښې د لفظ وردا تفسير كولې كيږى چه دا د عطاشا په معنى كښې دې يعنى تګى. د ابن ابى حاتم رحمه الله مطابق دا تفسير هم د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې.(6) د حضرت مجاهد رحمه الله نه د دې تفسير «**منقطعة أعناقهم من الظمأ**» نقل دې(7) چه د تندې د سختئى نه به د هغوى ستونه زوړندوى.

**(غَيًّا): خُسْرَانًا:** آيت مبارك **(فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا)**(8) لفظ غي تفسير بيانولې شى چه دا د خسران او نقصان په معنى كښې دې. دا تفسير هم د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې كوم چه ابن ابى حاتم رحمه الله موصولاً نقل كړې دې.(9) خو هم ابن ابى حاتم رحمه الله د ابوعبيده بن عبدالله بن مسعود رحمه الله په طريق سره دهغوى د پلار ابن مسعود رضي الله عنه نه د دې لفظ غي معنى دا خودلې ده چه دا د دوزخ يوه وادى ده چه ډيره ژوره ده.(10) په دې صورت كښې به د آيت مبارك مفهوم داسې شى چه هغوى به د دغه وادئى غي ګرموالى اوحرارت كښې اچولې شى.(11)

**وَقَالَ مُجَاهِدٌ: (يُسْجَرُونَ): تُوقَدُ بِهِمُ النَّارُ:** د قرآن كريم د آيت **(ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ)**(12) لفظ يسجرون

---

1) عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵ كشف البارى كتاب التفسير: ۵۵۰ والقاموس الوحيد مادة "سوط".
2) سورة هود: ۱۰۶
3) فتح البارى: ۳۳۲/۶ عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵ تفسير الطبرى: ۷۰/۱۲.
4) فتح البارى: ۳۳۲/۶ عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵ معارف القرآن للكاندهلوى: ۷۳/۴ سورة هود.
5) سورة مريم: ۸۶
6) فتح البارى: ۳۳۲/۶ عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵ الدرمنثور: ۳۵۰/۳ تغليق التعليق: ۵۰۹/۳.
7) فتح البارى: ۳۳۲/۶ عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵.
8) سورة مريم: ۵۹.
9) فتح البارى: ۳۳۲/۶ تغليق التعليق: ۵۰۹/۳.
10) فتح البارى: ۳۳۲/۶- ۳۳۳ عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵.
11) عمدة القارى: ۱۶۲/۱۵.
12) سورة غافر: ۷۲.

تفسیر د حضرت مجاهد رحمه الله په حواله سره نقل کړې شوې دې چه ددغه مشرکانو او کافرانو په ذریعه د دوزخ اور لګولې شی یعنی دوی به ددې خشاك وی لکه څنګه چه لرګی وی.[1] لفظ یسجرون د باب نصر نه دې سجرا وسجورا ددې مصدر دې.[2]

[ونحاس] الصفر يصب على رؤوسهم دلته آیت مبارك [يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنتَصِرَانِ] [3] وضاحت کولې شی چه په دې کښې راغلې لفظ نحاس معنی صفر ده یعنی پیتل... چه دا ویلی کړې شی او د جهنمیانو په سرونو باندې وارولې شی.[4]

(ذوقوا): باشروا وجربوا، وليس هذا من ذوق الفم. د قرآن کریم آیت (ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ) [5] طرف ته اشاره ده اودا خودلې شوی دی چه دلته ذوق د قبیل د امر معنوی دې. یعنی ادراك احساس او پوهه، څکه چه عذاب د خوړلو څیز نه دې بلکه د تجربې او زغملو څیز دې. په دې وجه نې د دې تفسیر کولو سره اوفرمانیل چه دوزخیانوته به ونیلې شی چه د سوزولو دا عذاب اوس اوزغمنی او تجربه اوکړنی. اودا ذوق د الفم نه نه دې یعنی په خله سره څکل مراد نه دی چنانچه دا مجازدی څکه چه د ذوق حقیقت خو هم په خله سره څکلې کیږی. په نورو ډیرو آیاتونو کښې هم دا ماده هم په دې مجازی معنی کښې استعمال شوې ده. لکه چه فرمانیلې شوی دی (ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ) [6] نور فرمانی (ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ) [7] اونور فرمانی (لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ) [8]

ابن ابی حاتم رحمه الله د حضرت ابوبرزه اسلمی رضی الله عنه نه[9] مرفوعاً او طبری رحمه الله د حضرت عبدالله بن عمرو نه موقوفاً[10] نقل کړی دی چه په جهنمیانو باندې ددې آیت نه زیات څه بل سخت آیت نه دې نازل شوې. چنانچه فرمانی (فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا) [11] چه دا اوزغمنی اوددې مزه اوڅکنی مونږ به ستاسو دپاره په عذاب کښې هم زیاتوالې کوو. أعاذنا الله منها.[12]

---

[1] فتح الباري: ۳۳۳/٦ تغليق التعليق: ۵۰۹/۳.

[2] القاموس الوحيد مادة سجر.

[3] سورة الرحمٰن: ۳۵

[4] عمدة القاري: ۱٦۳/۱۵ كشف الباري كتاب التفسير: ٦۵۲ دا تفسیر هم د حضرت مجاهد رحمه الله نه نقل دې. تغليق التعليق: ۵۱۰/۳ فتح الباري: ۳۳۳/٦ وتفسير مجاهد: ۵٦٦.

[5] سورة آل عمران: ۱۳۱.

[6] سورة الحشر: ۱۵.

[7] سورة الدخان: ٤۹.

[8] سورة الدخان: ۵٦.

[9] كتاب البعث والنشور باب قول الله تعالى عزوجل (إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا.....) : ۳۱۸/۱ رقم: ۵۷۹ مجمع الزوائد: ٤۱/۲ رقم: ۱۱٤٦۳ وتفسير ابن كثير: ۳۷۷/٦ سورة النبأ.

[10] جامع البيان للطبري: ۳٦/۲٤ سورة النبأ.

[11] سورة النبأ: ۳۰.

[12] فتح الباري: ۳۳۳/٦ وتحفة الباري: ۳۳/٤.

(مَارِجٍ) : خَالِصٍ مِنَ النَّارِ، مَرَجَ الأَمِيرُ رَعِيَّتَهُ إِذَا خَلاَّهُمْ يَعْدُو بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ. (مَرِيجٍ) : مُلْتَبِسٍ، مَرِجَ أَمْرُ النَّاسِ اِخْتَلَطَ امام بخاري په دې عبارت کښې دقرآن کريم د دريو آياتو دريو الفاظو تشريح کړې ده. په دې دريوارو الفاظو کښې مشترك شې دادې چه په دې کښې کلمه د مرج په مختلف معانو کښې استعمال شوې ده.

د مارج په ذريعه آيت مبارك (وَخَلَقَ الْجَانَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ) [1] طرف ته اشاره کړې ده چه په دې کښې د لفظ مارج معنى خالص ده. په اصل کښې مارج هغه تيزې شغلې ته وائى کومې سره چه لوګې نه وى اوهم دغه شان سره کړې شوې شغله هم هغې ته وئيلى شى. [2]

مرج الأمير رعيته معنى ده د بادشاه يا حاکم رعايا ته د فساد آزادى ورکول چه څنګه غواړى په يو بل باندې ظلم کونى اوهغوى بې واګو پريږدل. [3]

مريج سره امام بخاري رحمه الله د آيت مبارك (بَلْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ فَهُمْ فِي أَمْرٍ مَّرِيجٍ) [4] لفظ د مريج تفسير کړې دې چه ددې معنى د ملتبس ده يعنى اينختې او نه خلاصيدونکې. دغه شان مرج أمر الناس دې يعنى مشتبه اوګډوډ کيدل، ورانيدل. دا د باب سمع نه دې اومرج ددې مصدر دې. [5]

(مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ) : مَرَجْتَ دَابَّتَكَ تَرَكْتَهَا: د سورة الرحمن آيت (مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ) [6] طرف ته اشاره کولو سره امام بخاري رحمه الله ددې تفسير فرمائي اومرجت دابتك معنى ده کله چه ته څاروې د څرن دپاره پريږدې. دا د ابوعبيده رحمه الله ارشاد دې. [7]

**دبحرين نه څه مراد دې؟**: په آيت مبارك کښې د بحرين نه څه مراد دې؟ په دې کښې دمفسرينو حضراتو اختلاف دې. چنانچه بعض وائى چه بحر السماء او بحر الأرض مراد دى. [8] بعض وائى چه بحر فارس او بحر روم مراد دى. [9] دبعض مفسرينو رائې داده چه دې نه شيرين اونمکين دريابونه مراد دى [10]

قول اول يعنى بحر السماء وبحر الأرض ابن جرير طبرى رحمه الله راجح ګرځولې دې څکه چه الله تبارك وتعالى دې نه پس فرمائيلى دى: (يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ) [11] لؤلؤ اومرجان اصداف او سيپونه راوځى. د بحر السماء نه بحر الأرض کښې څاڅکې پريوځى اوهلته نه د سيپئ په خله کښې داخليدوسره مرغلره جوړيږى بيا ددغه سيپونه مرغلرې راويستلې شى. [1]

---

[1] سورة الرحمن:١٥.

[2] لسان العرب مادة مرج، والقاموس الوحيد مادة مرج، عمدة القارى: ١٦٣/١٥.

[3] حواله جات بالا وفتح البارى: ٣٣٣/٦.

[4] سورة ق: ٥

[5] لسان العرب مادة مرج والقاموس الوحيد مادة مرج، وعمدة القارى: ١٦٣/١٥فتح البارى: ٣٣٣/٦.

[6] سورة الرحمن: ١٩.

[7] مجاز القرآن: ٢/٧٧سورة الفرقان وشرح القسطلانى: ٢٨٧/٥عمدة القارى: ١٦٣/١٥فتح البارى: ٣٣٣/٦.

[8] عن ابن عباس، قال: المراد بالبحرين هنا: بحر السماء والأرض يلتقيان كل عام. رواه الطبرى من طريق على بن أبى طلحة: ٧٥/٢٧.

[9] ومن طريق قتادة والحسن: هما بحرا فارس والروم. فتح البارى: ٣٣٣/٦و ٧٥/٢٧.

[10] فتح البارى: ٣٣٣/٦.

[11] سورة الرحمن: ٢٢.

حافظ صاحب رحمه الله هم دا راجح گرځولي دی. (۲) مگر په آخری احتمال کښې هم څه اشکال نشته دې خکه چه دلته د الله تبارك وتعالى د قدرت كامله بيان كيږي چه رب كريم دوه دريابونه داسې هم روانولې شي سره ددې چه دواړه يوځائې او يوبل سره ملاؤ شوی دی مگر يو شيرين او بل نمكين ددواړو اوبه خپل مينځ كښې ملاؤنه شي، هم په دې باندې په تفسير كښې مونږ خبره كړې ده (۳)

**د شبهې نه خالي دليل:** مولانا محمد ادريس كاندهلوی رحمه الله يو واقعه نقل كړې ده چه يو عالم ته يوخل په ادله كلاميه كښې څه شك اوتردد پيداشو. نو الله تعالى نه نې دعا اوغوښتله اې پروردګار يوڅه داسې دليل را القاء كړې چه په هغې كښې هيڅ يو فلسفى ته څه شبهه اونه شي اونه هغه دڅه قسم تشكيك جارى كړې شي. نو په خوب كښې اوليدل چه يو سړې د قرآن كريم تلاوت كوى اودا آيت لولى. ﴿ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ۝ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ۝ ﴾ (۴)هغه عالم زر مطمئن شو اوپوهه شو چه واقعى دا استدلال داسې حجت قاطعه دې چه ددې باره كښې هيڅ يو دهريه اومنكر خدا ته لږشان هم تامل اوتردد گنجائش نه شي ويستلې. اودې آيت د ماده پرستو طبعيينو شك شبهې ختمې كړې چه د اوبو طبعيت خو اختلاط اتصال او امتزاج دې نو..... سوا د الله تعالى د ذات نه كوم يوڅيز دواړو دريابونو اوبه په يوبل كښې د ورگډيدونه منع كونكې دې.تعالى الله تعالى وجلت قدرته.(۵)

**ترجمة الباب سره د ايات مناسبت:** امام بخارى رحمه الله چه كومه ترجمه قائمه كړه دهغې عنوان وو "صفة النار وأنها مخلوقة" ددې لاندې هغه مختلف قرآنى آياتونو متنوع الفاظ اودهغې تفسير او توضيح ذكر كړې دې. ددې ټولو آياتونو د جهنم او د اهل جهنم سره څه نه څه تعلق دې. چنانچه غساق اوغسلين به د جهنميانود خوراك حصه وى حصب جهنم يعنى دا جهنميان به دهغه خائې د اور دپاره د خشاك په توگه استعماليږى. بياد صديد ذكر دې چه د اهل جهنم مشروب به وى. ﴿ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا۝ ﴾ كښې خودلې شوى دى چه هغه اور به كله يخيږى نه. ﴿ اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِيْ تُوْرُوْنَ۝ ﴾ كښې د اور ذكر دې. په مقوين كښې هم د اور ذكر دې چه د جهنم لازمه دې. ﴿ صِرَاطِ الْجَحِيْمِ ﴾ او ﴿ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ﴾ كښې د وسط جهنم ذكر دې. ﴿ لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ﴾ كښې دا مذكور دى چه دوى ته به په خوراك كښې سرې كړې گرمې اوبه ملاووِلوسره وركولې شي. په زفير اوشهيق كښې دا ذكر كړې شوى دى چه جهنميان به د سخت تكليف د وجې نه د خريه شان چغې وهى. ﴿ وِرْدًا ﴾ كښې دهغوى د تندې ذكر دې او ﴿ غَيًّا ﴾ كښې دا اوخودلې شو چه هغوى به په ډيره خساره كښې وى.

دحضرت مجاهد رحمه الله اثر ﴿ يُسْجَرُوْنَ ﴾ ..... كښې دا ذكرفرمائيلې شوې دې چه ددې جهنم د اور خشاك به هم دا جهنميان وى. ﴿ وَنُحَاسٌ ﴾ كښې په جهنميانو باندې كيدونكې متنوع عذاب يوقسم ذكركړې شوې دې چه هغوى به دا ټول قسم عذابونه زغمى او برداشت كوى به نې. هره ورځ به د نوى تجرباتو نه تيريږى بيابه هغوى ته ونيلې شي چه اوڅكنى دا عذاب...

---

(۱) تفسير الطبرى: ۷۵/۲۷فتح البارى: ۳۳۳/۶.

(۲) قلت: وفي هذا دفع لمن جزم بأن المراد بهما البحر الحلو والبحر الملح.... فتح البارى: ۳۳۳/۶.

(۳) كشف البارى كتاب التفسير: ۶۵۱

(۴) سورة الرحمن: ۲۰-۱۹.

(۵) معارف القرآن كاندهلوى: ۶۰۹/۷

آخرى لفظ چه كوم ذكركړې شوې دې هغه ﴿مَارِجٍ مِّنْ نَّارٍ﴾ دې چه د سور كړې شوى اور شغلونه ‹ دې جناتو تخليق اوشو. نار او جهنم يوځيز دې او نار د جهنم لازمه ده اعاذنا الله من جميعها دې نه پس ‹ا اوګنړئ چه امام بخارى رحمه الله ددې ترجمې لاندې لس احاديث ذكركړى دى په كوم كښې چه رومبې حديث د حضرت ابوذر رضي الله عنه دې

## الحديث الاول

۳۰۸۵- حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُهَاجِرٍ أَبِي الْحَسَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَقَالَ: «أَبْرِدْ» ثُمَّ قَالَ: «أَبْرِدْ» حَتَّى فَاءَ الفَيْءُ، يَعْنِي لِلتُّلُولِ ثُمَّ قَالَ: «أَبْرِدُوا بِالصَّلاَةِ، فَإِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ» [1]-[ر ۵۱۱]

**ترجمه**: حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمائى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په يوسفر كښې وو نوونى فرمائيل تاخيركونى، بيا اوفرمائيل تاخير كوئى تردې چه سورى واوړى، يعنى د غونډو طرف ته، بيائى اوفرمائيل چه مونځ ‹د ماسپښين› كښې تاخيركونى ځكه چه د ګرمئى شدت د جهنم د تاؤ نه دې

## تراجم رجال

**ابوالوليد**: دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب علامة الإيمان حب الأنصار كښې تيرشوى دى.[2]

**شعبه**: دا امير المؤمنين فى الحديث شعبه بن حجاج عتكى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو حالات كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې ذكر كړې شوې دى.[3]

**مهاجر**: مهاجر مولى ابى الحسن رحمه الله دې.

**زيدبن وهب**: دا زيد بن وهب الجهنى الهمدانى رحمه الله دې.[4]

**ابوذر**: دا مشهور صحابى حضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب المعاصى من أمر الجاهلية.... لاندې راغلى دى.[5]

داحديث كتاب الصلاة كښې تيرشوې دې[6]، دلته د ترجمه په مناسبت سره دوباره ذكركړې شوې دې.

**ترجمة الباب سره ۮ حديث مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې

---

[1]) قوله: أباذر رضى الله عنه: الحديث مر تخريجه كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر.

[2]) كشف البارى: ۳۸/۲.

[3]) كشف البارى: ۶۷۸/۱

[4]) ددې دواړو ۮحالاتو ۮپاره اوګورئى كتاب مواقيت الصلوة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر.

[5]) كشف البارى: ۲۳۸/۲.

[6]) صحيح البخارى كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر رقم: ۵۳۵.

«فإن شدة الحر من فيح جهنم» (١) په دې سره د ترجمې دواړه جزونه ثابتيږي. صفة النار هم اود جهنم موجود کيدل هم. ښکاره خبره ده که چرې هغه موجود نه وې نو دهغې تاؤ به دکوم ځائې نه راتللو. (٢)
دباب دويم حديث دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه دې.

## الحديث الثاني

٣٠٨٢-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ ذَكْوَانَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، «أَبْرِدُوا بِالصَّلاَةِ فَإِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ» (٣)[ر ٥١٣]

### تراجم رجال:

**محمدبن يوسف:** دا محمدبن يوسف بن واقد فريابى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذکره كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم..... په ضمن کښې تيره شوې ده. (٤)
**سفيان:** دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى کښې او تفصيلى حالات «كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا....کښې تير شوى دى. (٥)
**اعمش:** دامشهور محدث ابومحمد سليمان بن مهران الكاهلى المعروف بالاعمش رحمه الله دې. ددوى حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيرشوى دى. (٦)
**ذكوان:** دا ابوصالح ذکوان رحمه الله دې. ددوى لقب سمان وزيات دې ددوى تذکره كتاب الإيمان باب أمور الإيمان کښې نقل کړې شوې ده. (٧)
**ابوسعيد:** دا مشهور صحابى حضرت ابوسعيد بن مالك بن سنان خدرى رضي الله عنه دې. ددوى تفصيلى تذکره كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن کښې شوې ده. (٨)
دا حديث هم كتاب الصلاة کښې تيرشوې دې. (٩) باب سره مناسبت واضح دې.
دباب دريم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

---

(١) عمدة القارى: ١٦٣/١٥ فتح البارى: ٣٣٣/٦.
(٢) فتح البارى: ٣٣٣/٦.
(٣) قوله: عن أبى سعيدالخدرى رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه فى مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر.
(٤) كشف الباى: ٢٥٢/٣.
(٥) اوګورئى كشف البارى: ٢٣٨/١، ١٠٢/٣.
(٦) اوګورئى: كشف البارى: ٢٥١/٢.
(٧) كشف البارى: ٦٥٨/١
(٨) كشف البارى: ٨٢/٢
(٩) صحيح البخارى كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر رقم: ٥٣٨.

## الحديث الثالث

۳۰۸۷- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اشْتَكَتِ النَّارُ إِلَى رَبِّهَا فَقَالَتْ: رَبِّ أَكَلَ بَعْضِي بَعْضًا، فَأَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ: نَفَسٍ فِي الشِّتَاءِ وَنَفَسٍ فِي الصَّيْفِ، فَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الحَرِّ، وَأَشَدُّ مَا تَجِدُونَ مِنَ الزَّمْهَرِيرِ" [1]

## تراجم رجال

**ابواليمان**: دا ابواليمان الحكم بن نافع حمصي رحمه الله دي.

**شعيب**: دا شعيب بن ابى حمزه قرشي اموى حمصي رحمه الله دي. ددې دواړو مختصر حالات بدء الوحى الحديث السادس كښې راغلى دى.[2]

**الزهري**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددوى مختصر ذكر بدء الوحى دريم حديث لاندې راغلى دى.[3]

**ابوسلمه بن عبدالرحمن**: دا مشهور تابعى حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنى رحمه الله دي. ددوى مفصل حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان كښې راغلى دى.[4]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.

ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.[5]

**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت**: ددې حديث مناسبت هم ترجمة الباب سره واضح دې چه په دې كښې دجهنم د دوو ساګانو ذكر دې. يو په ګرمئى كښې اوبل په يخنئى كښې.[6]

دې نه علاوه دا اودې نه وړاندې دواړه احاديث د جمهورو په خپل موقف باندې ډير قوى حجت دې چه جهنم اوس هم موجود دې اودهغې تخليق شوې دې. حافظ صاحب رحمه الله فرمائى «وهذه الأحاديث من أقوى الأدلة على ما ذهب إليه الجمهور من أن جهنم موجودة الآن».[7]

دباب څلورم حديث دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دي.

---

[1] قوله: أباهريرة رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه صحيح البخارى كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر.

[2] كشف البارى: ۱/ ۴۸۰-۴۷۹.

[3] كشف البارى: ۳۲۶/۱ الحديث الثالث وكشف البارى كتاب الغسل: ۱۹۴.

[4] كشف البارى: ۳۲۳/۲.

[5] كشف البارى: ۶۵۹/۱ بل داحديث هم شاته تيرشوې دې صحيح البخارى كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر رقم: ۵۳۷.

[6] عمدة القارى: ۱۶۴/۱۵.

[7] فتح البارى: ۳۳۳/۶.

## الحديث الرابع

۳۰۸۸-حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ هُوَ العَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ الضُّبَعِيِّ، قَالَ: كُنْتُ أُجَالِسُ [ص: ۱۲۱] ابْنَ عَبَّاسٍ بِمَكَّةَ فَأَخَذَتْنِي الحُمَّى، فَقَالَ أَبْرِدْهَا عَنْكَ بِمَاءِ زَمْزَمَ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ «الحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَأَبْرِدُوهَا بِالْمَاءِ أَوْ قَالَ بِمَاءِ زَمْزَمَ-شَكَّ هَمَّامٌ-» (۱)

**ترجمه**: مشهور تابعي حضرت ابو جمره ضبعي رحمه الله فرمائي چه زه په مكه مكرمه كښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سره كيناستم پاسيدم چه په ما تبه راغله نوحضرت دعلاج په توگه ماته دا اوفرمائيل چه ددې تبې گرمائش په آب زمزم سره يخ كړه. چنانچه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي پس دا په اوبوسره يا د زمزم په اوبوسره يخه كړئ.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد**: دا عبدالله بن محمد بن عبدالله جعفي رحمه الله دې. ددوى حالات **كتاب الايمان باب أمور الايمان** كښې تيرشوى دى. (۲)

**ابوعامر**: دا ابوعامر عبدالملك بن عمرو بن قيس عقدى بصرى رحمه الله دې. ددوى اجمالي تذكره **كتاب الايمان باب أمور الايمان** كښې شوې ده. (۳)

**همام**: دا همام بن يحيى بن دينار عوذى بصرى رحمه الله دې. (۴)

**ابوجمره**: دا ابوجمره نصر بن عمران ضبعي بصرى رحمه الله دې. ددوى تفصيلي تذكره **كتاب الايمان باب أداء الخمس من الايمان** لاندې راغلې ده. (۵)

**ابن عباس** رضي الله عنه: دا مشهور صحابي حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. د دوى اجمالي تذكره بدء الوحي اوتفصيلي **كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر...** كښې شوې ده (۶)

دباب پنځم حديث د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه دې.

## الحديث الخامس

۳۰۸۹-حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبَايَةَ

---

(۱) قوله: كنت أجالس ابن عباس رضي الله عنهما الحديث. انفرد به الإمام البخاري رحمه الله، ولم يخرجه غيره تحفة الأشراف: ۲۶۳/۵رقم: ۶۵۳۰

(۲) كشف البارى: ۶۵۸/۱

(۳) كشف البارى: ۶۵۸/۱

(۴) ددوى د حالاتو دپاره اوگورئ كتاب مواقيت الصلاة باب من نسى صلاة فليصل......

(۵) كشف البارى: ۷۰۱/۲.

(۶) كشف البارى: ۴۳۵/۱و۲۰۵/۲.

بْنِ رِفَاعَةَ، قَالَ أَخْبَرَنِي رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «الْحُمَّى مِنْ فَوْرِ جَهَنَّمَ فَأَبْرِدُوهَا عَنْكُمْ بِالْمَاءِ» [1] [٥٣٩٤]

**ترجمه**: حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه فرمائي چه نبي كريم ﷺ مې په ارشاد كولو سره واوريدو چه تبه د جهنم د جوش او دهغې د شدت نه ده نودا د اوبو په ذريعه لرې كونئ.

## تراجم رجال

**عمرو بن عباس**: دا ابوعثمان عمرو بن عباس رحمه الله دې.

**عبدالرحمن**: دا عبدالرحمن بن مهدى ازدى بصرى رحمه الله دې. [2]

**سفيان**: دامشهورامام محدث سفيان بن ثورى رحمه الله دې. ددوى حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې بيان كړې شوى دى. [3]

**ابيه (سعيد)**: داحضرت سفيان والد سعيد بن مسروق رحمه الله دې. [4]

**عبايه بن رفاعه**: داحضرت عبايه بن رفاعه انصارى مدنى رحمه الله دې. [5]

**رافع بن خديج ﷺ**: دا مشهور صحابى حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه دې. [6]

دباب شپږم حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث السادس

٣٠٩٠- حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ «الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَأَبْرِدُوهَا بِالْمَاءِ» [7] [٥٣٩٣]

## تراجم رجال

**مالک بن اسماعيل**: دا مالك بن اسماعيل بن زياد نهدى كوفى رحمه الله دې. [8]

---

[1]) قوله: أخبرنى رافع بن خديج رضى الله عنه: الحديث، رواه البخارى فى الطب، باب الحمى من فيح جهنم رقم: ٥٧٢٦ومسلم رقم:٥٧٥٩، ٥٧٦٠ فى السلام باب لكل داء دواء، والترمذى رقم: ٢٠٧٤فى الطب باب ماجاء فى تبريدالحمى بالماء.

[2]) ذدې دواړو محدثينوحضراتو د حالات دپاره اوګورئ: كتاب الصلوة باب فضل استقبال القبلة.

[3]) اوګورئ كشف البارى:٢٧٨/٢.

[4]) د دوى دحالاتودپاره اوګورئ كتاب الأذان باب من شكا إمامه.

[5]) د دوى دحالاتودپاره اوګورئ كتاب الجمعة باب المشى إلى الجمعة.

[6]) د دوى دحالاتودپاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلوة باب وقت المغرب.

[7]) قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث رواه البخارى فى الطب، باب الحمى من فيح جهنم، رقم: ٥٢٢٦ومسلم رقم: -٥٧٥٥ ٥٧٥٦فى السلام باب لكل داء دواء، والترمذى رقم: ٢٠٧٥فى الطب باب ماجاء فى تبريد الحمى بالماء وابن ماجه فى الطب باب: الحمى من فيح جهنم رقم: ٣٥١٨.

[8]) ددوى دحالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعرالإنسان.

**زهير**: دا ابوخيثمه زهير بن معاويه كوفى جعفى رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب الصلوة من الايمان كښې تيرشوى دى. [1]

**هشام**: دا هشام بن عروه بن زبير بن عوام اسدى رحمه الله دي.

**عروه**: دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحى دويم حديث كښې او اجمالى په كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوې ده. [2]

**عائشة رضي الله عنها**: دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې راغلى دى. [3]

دباب آووم حديث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دى.

## الحديث السابع

٣٠٩١- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَأَبْرِدُوهَا بِالْمَاءِ» [4] [٥٣٩١]

## تراجم رجال

**مسدد**: دا ابوالحسن مسدد بن مسرهد اسدى بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه لاندې راغلې. [5]

**يحيى**: دا يحيى بن سعيد قطان ابوسعيد احول بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه...، لاندې ذكر كړې شوې ده. [6]

**عبيدالله**: داحضرت عبيدالله بن عمر بن حفص عمرى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت لاندې نقل كړې شوې ده. [7]

**نافع**: دا مشهور تابعى محدث حضرت نافع مولى ابن عمر رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد په ذيل كښې راغلى دى. [8]

---

[1] كشف البارى: ٣٦٧/٢.

[2] كشف البارى: ٢٩١/١، ٢/ ٤٣٦-٤٣٢.

[3] كشف البارى: ٢٩١/١.

[4] قوله: عن ابن عمر رضى الله عنهما: الحديث رواه البخارى فى الطب باب الحمى من فيح جهنم رقم: ٥٧٢٣ ومسلم رقم: -٥٧٥١ ٥٧٥٤ فى السلام باب لكل داء دواء، والترمذى رقم: ٢٠٧٥ فى الطب باب ماجاء فى تبريد الحمى بالماء، وابن ماجه فى الطب باب الحمى من فيح جهنم رقم: ٣٥١٧.

[5] كشف البارى: ٢/٢.

[6] كشف البارى: ٢/٢.

[7] كشف البارى: ٢/٢.

[8] كشف البارى: ٦٥١/٤

**ابن عمر**: دامشهور صحابى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. دد وى تفصيلي حالات **كتاب الايمان باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام على خمس**.... لاندې تيرشوى دى.(۱)

**تنبيه**: دلته امام بخارى رحمه الله په ترتيب سره څلور احاديث ذكر كړل. يعنى حديث ابن عباس، حديث رافع، حديث عائشه اوحديث ابن عمر رضي الله عنهم. دكوم معنى اومطلب چه متحد دې. په دې تولو كښې تبه د جهنم دګرمنى د شدت نتيجه ګرځولې شوې ده. يعنى دې سره تشبيه وركړې ده. هم ددې څلورو نه درې احاديث يعنى حديث رافع حديث عائشه اوحديث ابن عمر رضي الله عنهم حضرت مصنف رحمه الله په كتاب الطب كښې هم ذكركړى دى.(۲)هم هلته ددې تقرير اوشرح ذكركړې شوې ده.(۳)

ددغه څلورو احاديثو خلاصه اومفهوم دادې چه اوبه د تبې علاج دې اوحقيقت هم دغه دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په ارشاد باندې كه پوره يقين وى نوچه هرڅنګه تبه وى هغه په اوبوسره لرې كيږى دهغې په شدت كښې كمې راځى. د دارالعلوم ديوبند بانى حضرت مولانا محمدقاسم نانوتوى رحمه الله به د خپلې تبې علاج هم دغه شان كولو.(۴)

**د احاديث اربعه مناسبت باب سره**: ددې څلورو وارو احاديثو ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې چه په دې كښې د جهنم حرارت او د ګرمنى د شدت بيان كړې شوې دې كوم چه په صفة النار كښې داخل دې.(۵)

دباب اتم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

---

(۱) كشف البارى: ۶۳۷/۱.

(۲) صحيح البخارى كتاب الطب باب الحمى من فيح جهنم رقم: ۵۷۲۳، ۵۷۲۶-۵۷۲۵.

(۳) كشف البارى كتاب الطب: ۳۹-۳۶وللاستزادة انظر التوضيح: ۱۷۶/۱۹-۱۷۴.

(۴) دسيدنا امام نانوتوى رحمه الله دژوند حالات ليكونكې مولانا سيد مناظر احسن ګيلانى رحمه الله فرمانى: "ددې خط نه، په ظاهر هم دغه معلوميږى چه كيدې شى د مليريا حمله پرې شوې وه. يخنئى سره به ئى تبه كيدله مګر پوهيدلو چه "دو نوبت بشدت ګذشت" كومه دوره اولړزه د تبې په په هغوى باندې وه دهغې په علاج كښې څه تدبيرونه اختياركړل هم پخپله ليكى: "آخركا ازصبح روز دوم، بعلاج مسنون، غسل از آب تازه تدبير كرده شد" د يخنئى او تبې په دې سختنئى كښې د لامبلو سرې تخيل هم نه شى كولې. ليكن د مسنون علاج عقيدت هم دغه علاج آسان كړو او په تازه اوبوسره ئى غسل اوكړو. الله تعالى ته پته ده چه طبيبانو اوداكټرانو په نيز ددې طريقه علاج اختيارولو څه نتيجه كيدل پكاردى؟ ليكن حضرت رحمه الله هم پخپله اطلاع وركوى چه "خداوند حقيقى به بركت اين عمل شفانم بخشيد" فيوض قاسميه ص ۴ دسيرت قاسمى پوفانى يعنى حضرت شيخ الهند مولانا محمود الحسن رحمه الله خاكسار هم پوخل اوكنل چه په سخته تبه كښې راګير وو د حرارت د سختوالي د وجې نه په بدن مبارك باندې لاس كيخودل هم ګران وو ليكن هم په دې خيال كښې نه ياد دى چه حضرت شيخ الهند رحمه الله مدرسې ته تشريف راوړلو اودمدرسې د جمات مشرقى طرف كښې چه كوم كوهې دې هم هغې له راغلو كيناستو او موجود طلبه ته ئى حكم وركړو چه ډولچې راوباسئى او په ما باندې اچوئى. غالبا په دې عمل كښې د شركت سعادت دې فقير ته هم حاصل شوې وو. په صحيح توګه خو نه شم وئيلې ليكن كه حافظه مې غلطى نه كوى نو وئيلې شم چه د خرمن لونې ډول سره وار په وار تقريبا اتيا ډولچې اوبه واچولې شوې. طالبان نه واپس كيدل اود يوسترې كيدونه پس به بل سرخ تاوولو كښې مشغول كيدلو. حضرت به هم په دغه تبه كښې د ډولچې دپاسه ډولچې په خان باندې اړولې. رچيدلو او زه حيران وومُ سوچ مې كولو ګوره چه څه انجام به كيږى؟ الله الله كولوسره ئى د بس كولو حكم وركړو. ستركې سرې وې دهغې سوروالى ښائست ترتنه پورې په زړه اودماغو كښې پروت دې. پاسيدو په كپړه ئى بدن اوچ كړو. تركومې چه خيال دې د تبې نوم هم ددې غسل نه پس باقى پاتې نه شو" سوانح قاسمى (سيرت شمس الاسلام)۱/۶۰۹-۶۰۸، ۱۰۱/۲مكتبه رحمانيه لاهور.

(۵) عمدة القارى: ۱۶۴/۱۵.

## الحديث الثامن

۳۰۹۲- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «نَارُكُمْ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ»، قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً قَالَ: «فُضِّلَتْ عَلَيْهِنَّ بِتِسْعَةٍ وَسِتِّينَ جُزْءًا كُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا» (۱)

## تراجم رجال

**اسماعيل بن ابي اويس:** دا اسماعيل بن ابی اویس مدنی اصبحی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر..... كښې تیرشوی دی (۲)

**مالك:** دا ابوعبدالله مالك بن انس مدنی اصبحی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی تذکره بدء الوحی اوکتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن كښې ذكرشوې ده. (۳)

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله دې

**الأعرج:** دا عبدالرحمن بن هرمز الاعرج قرشیی رحمه الله دې. ددې دواړو محدثینو حضراتو تذکره كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان لاندې تیره شوې ده. (۴)

**ابوهريره:** دامشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. ددوی حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان کښې تیرشوی دی. (۵)

**قوله: أن رسول الله ﷺ قال: ناركم جزء من سبعين جزءا من نار جهنم:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه ستاسو اور د جهنم د اور اویایم جزء نه یو جز دې.

**دحديث شريف دوه مطلب** ① مطلب دادې چه زمونږ دا دنیاوی اور چه په خوراك څښاك او نورو څیزونو کښې استعمالیږی. ددې په مقابله کښې د دوزخ اور اویا درجې زیات ګرم دې اوس تاسو پخپله خیال اوکړئ چه کله ددې دنیاوی اور دا حال دې چه څیزونه په لمحو او سیکنډونو کښې ایره کوی نو د دغه جهنم د اوربه څه حال وی؟

② یامطلب دادې چه که دټولو دنیا اور راجمع کړی کوم چه خلق سوزوی نودا به د جهنم د اور یو جزء وی اودهغې اور خود اویاؤ اجزاء برابردې أعاذنا الله منها (۱)

---

۱) قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، أخرجه مسلم كتاب صفة الجنة باب في شدة الحر من نار جهنم رقم: ۲۸۴۳ والترمذي كتاب صفة جهنم باب ماجاء في أن ناركم هذه جزء من سبعين جزءا من نار جهنم رقم: ۲۵۹۲ وابن ماجه كتاب الزهد باب صفة النار رقم: ۴۳۱۸.

۲) كشف الباري: ۱۱۳/۲.

۳) كشف الباري: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

۴) كشف الباري: ۲/۱۱-۱۰.

۵) كشف الباري: ۶۵۹/۱

**په روایاتوکښې تعارض اودهغې حل:** په صحیحین کښې **سبعین جزءاً** یعنی د اویا عدد ذکردې.[1] خو دامام احمد رحمه الله په یوروایت کښې **مائة جزء** راغلې دې.[2]
په دې روایاتو کښې دتطبیق صورت هم دغه دې چه مبالغه فی الکثرة باندې محمول کړې شي چه هغه اور ډیرزیات خطرناك دې ستاسو د اندازونه هم زیات. دویم جواب دادې چه اعتبار دعدد زائد وی مطلب دا چه سل درجې زیات دې.[3]
**نارکم** مبتداء دې **جزءمن سبعین جزا** ددې خبر دې. **من نارجهنم** کښې **من** بیانیه دې او ورسره دتبعیض معنې ته هم شامل دې.[4]
**قوله: :قیل: یارسول الله، إن کانت لکافیة** چا اوونیل یارسول الله! هم دا دنیاوی اور کافی وو. دلته **ان** مخففه من المثقله دې. یعنی **إنهاکانت کافیة** چه دګناهګارانودپاره هم دغه ددنیا اورکافی وو. **ان** مخففه او نافیه په مینځ کښې فارق هم دغه کلمه د لام وی. دا د حضرات بصریین مذهب دې خودحضرات کوفیین په نیز **إن** په معنی دَ ما اولام په معنی دَإلا دې. ددوی مطابق تقدیری عبارت داسې دې: ((**ماکانت إلاکافیة**)).[5]
**قوله: :قال: فضلت علیهن بتسعة وستین جزءاً کلهن مثل حرها** حضورپاك ﷺ اوفرمائیل ددې دنیا په اور باندې د جهنم اور یوکم اویا درجې فضیلت اوفوقیت لری. په دې کښې د هریو ګرمائش اوحرارت ددې دنیاوی اور په شان دې. د **علیهن** ضمیر **نیران الدنیا** طرف ته راجع دې کوم چه مفهوم دې. د مسلم شریف په روایت کښې **علیها** دې.[6] یعنی **علی النار** نیران د نارجمع ده.[7]
د ابن حبان او مسند احمد په روایت کښې **مثل حرها** سره سره ((**وضربت بالبحر مرتین، ولولا ذلك ما انتفع بها أحد**)) زیات والې هم نقل دې.[8] هم دغه شان یوحدیث دحضرت انس رضی الله عنه نه هم نقل دې کوم چه امام حاکم رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله نقل کړې دې. په هغې کښې دا اضافه هم ده ((**فإنها لتدعوالله أن لایعیدها فیها**)).[9]
**دَ مختلف روایاتو خلاصه:** ددې ټولو روایاتوخلاصه داده چه د جهنم داور حرارت اود سوزولو صلاحت

---

[1] التوضیح: ۱۹/۱۷۷.
[2] مسندأحمد: ۲/۳۷۹رقم: ۹۹۱۰مجمع الزوائد: ۱۰/۳۸۷کتاب صفة النار باب تلقی النارأهلها.
[3] فتح الباری: ۶/۳۳٤أعمدة القاری:۱۵/۱۶۵.
[4] عمدة القاری: ۱۵/۱۶۵.
[5] التوضیح لابن ملقن: ۱۹/۱۷۷وشرح الطیبی: ۱۰/۲۷۷.
[6] صحیح مسلم کتاب الجنة..... باب جهنم..... رقم: ۲۸٤۳.
[7] فتح الباری: ۶/۳۳٤.
[8] مسندالاحمد: ۲/۲٤٤مسندأبی هریرة رقم: ۷۳۲۳وصحیح ابن حبان کتاب إخبارعن مناقب الصحابة باب صفة النار رقم: ۷٤٦۳ والحمیدی فی مسنده: ۲/۲۷٤ رقم: ۱۱۶۳.
[9] رواه الحاکم فی مستدرکه: ٤/۵۹۲کتاب الأهوال رقم: ۸۷۵۲وابن ماجه کتاب الزهد باب صفة النار رقم: ٤۳۱۹.

د دنيا داور نه يوكم اويا درجې زيات دې. د دنياوى اور نه فائده حاصلول هم آسان او ممكن نه وه مگر الله تعالى د خپل بنديگانو د ضرورت اوحاجت دوجې نه د دې نه فائده حاصلولو كښې آسانى راوستلودپاره سمندر په دې دنياوى اور باندې دوه خل اووهلو گنى دې ته نيزدې كيدل هم ممكن نه وو. بل دا د دنيا اور پخپله د دې خبرې نه پناه غواړى اودعاكوى چه الله تعالى دې جهنم ته واپس اونه ليگى.
دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روايت [1] كښې خو اووه خل په سمندرى اوبوسره د يخولوذكر دې. اود حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت كښې «ضرب بها البحر عشر مرات» [2] ذكر دې. نومقررعدد مراد نه دې بلكه دا قابل د انتفاع جوړول مراد دى. چه د دې دنياوى اور گرموالى هم څه معمولى نه وو مگر د انسانانو د ښيگړې د خاطره د دې په گرموالى كښې غير معمولى كمې اوكړې شو. أعاذنا الله منها.

**دَ جواب دَ تكرار مقصد:** دعلامه طيبى رحمه الله د قول مطابق حضورپاك د سائل د سوال په جواب كښې چه داكوم فرمائيلى چه «فضلت عليهن بتسعة.....» نوهم دهغه سابقه جملې دتاكيد په توگه تكرار دې كوم چه حضورپاك په شروع كښې فرمائيلې وو. مطلب دادې چه بيشكه د چا د سوزولودپاره هم دا ددنيا اور كافى دې مگر د خالق اومخلوق په اوركښې خوفرق كيدل پكاردى كه نه. لهذا د دوزخ اور چه ذكوم عذاب الهى دپاره تيار كړې شوې دې دهغې تقاضا ده چه د هغې په حرارت او گرمانش كښې د دنيا د اور نه ډير زياتوالې وى. دې دپاره چه د الله تعالى عذاب د دنيا د عذاب نه په فرق وى [3].
**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح او ښكاره دې چه په دې كښې د جهنم د اور خوف ناكې او خطرناك والى بيان دې.
د باب نهم حديث دحضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه نه نقل دې.

## الحديث التاسع

۳۰۹۳- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، سَمِعَ عَطَاءً، يُخْبِرُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ ﷺ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ «وَنَادَوْا يَا مَالِكُ» [4]-[ر ۳۰۵۸]

## تراجم رجال

**قتيبه بن سعيد:** دا ابوالرجاء قتيبه بن سعيد بن جميل ثقفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب إفشاء السلام من الايمان لاندې تيرشوى دى. [5]

---

[1] عمدة القارى: ۱۶۵/۱۵ التوضيح: ۱۷۷/۱۹ والتمهيد لابن عبدالبر: ۱۶۳/۱۸.
[2] إنما ذكرها الإمام العينى رحمه الله، ولم أجدها فى مجموعة الأحاديث. والله اعلم بالصواب.
[3] شرح الطيبى: ۲۷۷/۱۰ رقم: ۵۶۶۵
[4] قوله: عن أبيه (يعلى بن أمية): الحديث، مرتخريجه سابقا، باب إذا قال أحدكم: آمين.....
[5] كشف البارى: ۱۸۵/۲.

**سفيان:** دامشهورامام محدث سفيان بن عيينه رحمه الله دي. ددوى مختصر حالات بدء الوحي كښې اومفصل حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا.... كښې تير شوى دى. [1]

**عمرو:** دا عمرو بن دينار جمحي رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم كښې تيره شوې ده. [2]

**عطاء:** دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب عظة النساء كښې راغلى. [3]

**صفوان بن يعلي:** دا صفوان بن يعلى بن اميه تميمى رحمه الله دي. [4]

**ابيه:** دا مشهور صحابى حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه دي. [5]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حديث مطابقت هم واضح دې چه په دې كښې د خازن جهنم د مالك ذكر دې. بل د حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه دا حديث اوس يو څو ابواب وړاندې «باب إذا قال أحدكم: آمين» د شرح سره تيرشوې دې.

دباب لسم او آخرى حديث دحضرت اسامه بن زيدبن حارثه رضي الله عنه دې.

## الحديث العاشر

٣٠٩٣- حَدَّثَنَا عَلِيٌّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، قَالَ: قِيلَ لِأُسَامَةَ لَوْ أَتَيْتَ فُلاَنًا فَكَلَّمْتَهُ، قَالَ: إِنَّكُمْ لَتُرَوْنَ أَنِّي لاَ أُكَلِّمُهُ إِلَّا أُسْمِعُكُمْ، إِنِّي أُكَلِّمُهُ فِي السِّرِّ دُونَ أَنْ أَفْتَحَ بَابًا لاَ أَكُونُ أَوَّلَ مَنْ فَتَحَهُ، وَلاَ أَقُولُ لِرَجُلٍ أَنْ كَانَ عَلَيَّ أَمِيرًا: إِنَّهُ خَيْرُ النَّاسِ، بَعْدَ شَيْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: وَمَا سَمِعْتَهُ يَقُولُ: قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ القِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ، فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ فِي النَّارِ، فَيَدُورُ كَمَا يَدُورُ الحِمَارُ بِرَحَاهُ، فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ: أَيْ فُلاَنُ مَا شَأْنُكَ؟ أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ المُنْكَرِ؟ قَالَ: كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلاَ آتِيهِ، وَأَنْهَاكُمْ عَنِ المُنْكَرِ وَآتِيهِ" رَوَاهُ غُنْدَرٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ [6] [٦٦٨٥]

**ترجمه:** حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه ته چا اووئيل كه چرې ته فلانكى له تلې وې او هغه سره دې خبره كړې وه (نو ډيره مناسب به وه). هغوى اووئيل تاسو خلق گڼرئى چه زه هغه سره صرف ستاسو د اورلو دپاره خبرې اترې كوم. زه خو بغيرددې نه چه (د فتنې) د يونوى باب شروع اوكړم هغه سره په خان

---

[1] كشف البارى: ١/١٣٨ الحديث الأول: ٣/١٠٢.

[2] كشف البارى: ٤/٣٠٩.

[3] كشف البارى: ٤/٣٧.

[4] ددوى د حالاتو دپاره اوگورئى كتاب الحج باب غسل الخلوق ثلث مرات.

[5] حواله بالا.

[6] قوله: قيل لأسامة بن زيد رضى الله عنه: الحديث، أخرجه البخارى فى الفتن، باب الفتنة التى تموج كموج البحر رقم: ٧٠٩٨ ومسلم رقم: ٧٤٤٤-٧٤٤٣ فى الزهد، باب عقوبة من يأمر بالمعروف ولا يفعله، وينهى عن المنكر ويفعله.

له څائی کښې (په دې معامله کښې او نورو معاملاتو کښې) خبرې اترې کوم. زه فتنه پیدا کونکې د ټولو نه ړومبې سړې نه جوړیدل غواړم اونه زه هغه سړې څوك چه زما حاکم دې داسې وایم چه هغه د ټولو خلقو نه بهتر دې. ما د رسول الله ﷺ نه یوه خبره اوریدلې ده. خلقو تپوس اوکړو چه تاسو کومه خبره اوریدلې ده؟ حضرت اسامه رضی الله عنه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه داسې فرمائیل اوریدلی دی چه د قیامت په ورځ به یوسړې راوستلې شی بیا به هغه په جهنم کښې غورزولې شی. نو د هغه کولمې به په اور کښې راوُځی نو هغه به داسې تاویږی لکه څنګه چه خر د جرندې سره چاپیره تاویږی. ددې حال په لیدو به دوزخیان هغه سره راجمع شی اوهغه ته به وائی چه اې فلانکی ستا دا حال ولې دې؟ ولې تابه مونږ ته د خو خبرو حکم او د بدو کارونونه نه منع کولو؟ هغه بنده به وائی چه او ما به تاسو ته دخو کارونو حکم درکولو مګر پخپله به مې عمل نه کولو اوتاسو به مې دخرابو خبرو نه منع کولې مګر پخپله به په بدو کښې اخته ووم.

## تراجم رجال

**علي**: دا مشهور محدث علی بن عبدالله ابن المدینی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی تذکره **کتاب العلم باب الفهم في العلم** په ذیل کښې راغلې ده.(1)

**سفیان**: دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی کښې او تفصیلی حالات «کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا....کښې تیر شوی دی. (2)

**اعمش**: دامشهورمحدث ابومحمدسلیمان بن مهران الکاهلی المعروف بالاعمش رحمه الله دې. ددوی حالات «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیرشوی دی. (3)

**ابووائل**:دا ابووائل شقیق بن سلمه کوفی اسدی رحمه الله دې. ددوی حالات **کتاب الإیمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله**.....لاندې ذکرکړې شوی دی.(4)

**اسامه**: داحضرت اسامه بن زید بن حارثه کلبی مدنی رضی الله عنه دې. ددوی تفصیلی حالات **کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء** په ضمن کښې تیرشوی دی. (5)

**قوله:: قیل لأسامة: لو أتیت فلانا فكلمته؟ قال: إنكم لترون أني لا أكلمه إلا أسمعكم...**

په دې حدیث کښې د فلانا اورجل نه مراد حضرت عثمان رضی الله عنه دې. (6)

---

(1) کشف الباری: ۲۹۷/۳.

(2) اوګورئی کشف الباری:۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.

(3) اوګورئی: کشف الباری:۲۵۱/۲.

(4) کشف الباری: ۵۵۹/۲.

(5) کشف الباری: ۱۸۰/۵.

(6) دا دعام شراح رائې ده خو د حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله مطابق رجل نه مراد ولید بن عتبه دې چه دحضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه د مور شریك رور وو. چنانچه لیکی: ((ثم لا یخفی علیک أن ظاهر کلام الشراح قاطبة. وکذا کلام الشیخ (الکنکوهی) قدس سره، والمشائخ: أن المراد بالرجل فی قوله: ولا أقول لرجل.... هو عثمان رضی الله عنه. ثم أولوا وعید الحدیث فی شأن عثمان. والأوجه عند هذا العبد الضعیف أن مصداق الأمیر هو الولید. والمعنی أن کون الولید أمیرا لا یمنعنی أن أکلم فیه،

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې «يجاء بالرجل يوم القيامة، فيلقى فى النار» چه په دې كښې د جهنم د اور صفت بيان كړې شوې دې.[1]

**قوله: :رواه غندر عن شعبة عن الأعمش** دا تعليق دې كوم چه موصولاً پخپله مصنف رحمه الله كتاب الفتن كښې نقل كړې دې.[2]

# ١١ - باب: صِفَةِ إِبْلِيسَ وَجُنُودِهِ.

**ماقبل سره مناسبت:** دتيرشوى باب تعلق جهنم سره وو او د جهنم چه كوم تعلق دې هغه پټ نه دې ښكاره خبره ده چه جهنم به هم په ابليس اود هغه په منونكو سره ډكولې شى. چنانچه هم هغه خلق به د هغه خشاك وى چه دهغه متبعين وى دا به دهغوى د هميشه دپاره د اوسيدو ځاني وى أعاذنا الله منها.

**دترجمة الباب مقصد:** دلته امام بخارى د ابليس اود هغه د لښكر تذكره كړې ده. اكثر فلاسفه اوقدريه د شيطان د وجود انكار كوى لكه څنګه چه تفصيل په وړاندې باب كښې راځى. چنانچه حضرت مصنف رحمه الله په دې باب سره د هغه منكرينو رد كړې دې. د ابلس اود هغه د لښكر اثبات ئې په قرآن او سنت سره فرمائيلې دې. د ابليس لعين سره متعلق ډير بحثونه دى كوم چه به مونږ ترتيب وار ذكر كوو.

**ايا إبليس اسم مشتق دې؟:** د ټولو نه اول بحث دلته د ابليس د نوم باره كښې دې چه دا مشتق دې او كه نه؟ چنانچه د يوجماعت موقف خودادې چه ابليس اسم عجمى دې، دعلميت او عجمه د جمع كيدو د وجې نه غير منصرف دې. ابن الانبارى رحمه الله دا قول نور مدلل كولو دپاره فرمائى چه كه چرې دا عربى لفظ وې نوضرور به منصرف وې لكه لفظ د اكليل چه دې. خو علامه طبرى رحمه الله فرمائى چه دا هم عربى دې ددې باوجود غير منصرف دې، منصرف نه دې چه په كلام عرب كښې ددې مثال ډير كم ملاويږى. په دې وجه دا د عجمى نوم په شان ګرځولو سره غير منصرف اوګرځولې شو.

مګر د علامه طبرى رحمه الله دا خبره محل اشكال ده څكه چه د يونوم مثالونه په كلام عرب كښې قلت دهغې دعدم صرف ته مستلزم نه دى. دا علت بنياد جوړولو سره يونوم منصرف يا غير منصرف نه شى ګرځولې كيدې. خو د بعض حضراتو وينا ده چه دا اسم عربى دې او أبلس نه مشتق دې د كوم معنى چه د نااميده كيدو ده. علامه جوهرى رحمه الله ليكلى دى «أبلس من رحمة الله: أي يئس، ومنه سمي إبليس، وكان اسمه عزازيل»[3] قاموس فيروز آبادى كښې هم دا نوم مشتق منلې شوې دې. د كوم د تغليط طرف ته چه علامه مرتضى زبيدى رحمه الله اشاره كړې ده.[4]

---

بعد أن سمعت هذا الوعيد الشديد، وعلى هذا فيكون مورد الحديث هو الوليد. فحينئذ لا يشكل الحديث بمناقب عثمان رضى الله عنه فتأمل، فإنه لطيف.)) الكنز المتوارى: ١٨٦/١٣. اوددې حديث تفصيلى شرح بهٔ ان شاء الله په كتاب الفتن كښې راځى. صحيح البخارى كتاب الفتن باب الفتنة التى تموج كموج..... رقم: ٧٠٩٨ وكذا انظر: فتح البارى: ٣٣٤/٦ عمدة القارى: ١٦٦/١٥ التوضيح: ١٨٠/١٩ شرح ابن بطال: ١٠/٤٨-٤٦ كتاب الفتن رقم: ٣٤٣٦.

[1] قال العينى رحمه الله فى العمدة: ١٦٦/١٥ مطابقته للترجمة من حيث إن فيه ذكر النار، التى هى جهنم.

[2] صحيح البخارى كتاب الفتن باب الفتنة التى تموج كموج..... رقم: ٧٠٩٨.

[3] الصحاح للجوهرى: ١٠٨ مادة بلس وعمدة القارى: ١٦٧/١٥.

[4] تاج العروس: ١١/٤ فصل الباء من باب السين. وعمدة القارى: ١٦٧/١٥.

بهر حال دواړه اقوال مونډلې شي. علامه عيني رحمه الله د ابن ابى الدنيا رحمه الله په حواله سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو روايت نقل كړې دې د هغې نه هم اسم مشتق معلوميږي. په هغې كښې دي: «كان اسم ابليس حيث كان عند الملائكة عزازيل، ثم أبليس بعد» [1] يو روايت د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دا هم دې چه دهغه نوم حارث وو. [2] د ابليس په كنيت كښې مختلف اقوال دى. ابومره، ابوالعمر او ابوكردوس. [3]

**ابليس د ملائک نه وو كه نه؟:** په دې كښې اختلاف دې چه ابليس د ملائك نه وو كه نه؟

① علامه ابوالوفا علي بن عقيل رحمه الله كتاب الارشاد كښې فرمائي چه ابليس د فرښتو نه وو. د علامه ابوبكر عبدالعزيز رحمه الله رائې هم دغه وه ځكه چه ارشاد رباني دې ﴿وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ﴾ [4] په دې مقام باندې استثناء دا خودلې شي چه ابليس د فرښتو د جنس نه وو ځكه چه باب استثناء كښې په كلام عرب كښې مشهور هم دغه دى چه هغه د جنس نه وى خلاف جنس نه استثناء غيراولى ده. [5]

حضرت نور فرمائي چه زمونږ د موقف د صحت دليل دا هم دې كه د ده شمير په فرښتو كښې نه وو نو په سجده نه كولو سره به دده ملامتيا او طعن اوتشنيع نښه جوړول هم صحيح نه وې. ځكه چه هغه په امر كښې داخل نه وو. ګورئې، كه د وخت بادشاه دا اعلان اوكړى چه كپړې والادې دكان نه كولاووى اونابنايان دې كولاؤ كړى نونابنايانوبه په دكان كولاوولو باندې نشانه هيڅ كله نه شي جوړولې. چونكه نابنايان خلق په دغه نهى كښې داخل نه دى. چنانچه كه ابليس هم د فرښتو د جنس نه نه وې نوهغه به فرښتوسره په امر بالسجود كښې هيڅ كله داخل نه وې. حالانكه ابليس هم مامور بالسجود نه وو په دې باندې اجماع ده. نوثابته شوه چه هغه د ملائك نه وو. ابوبكر عبدالعزيز رحمه الله فرمائي «وأنه لولم يكن من الملائكة خرج عن أن يكون مأمورا بالسجود، لأن السجود انصرف إلى الملائكة، وقد أجمعنا على أنه (ابليس) كان مأمورا به» [6]

دا دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه [7] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما [8] د صحابه كرامو يوجماعت، بل حضرت سعيدبن مسيب رحمه الله [9] وغيره اواكثر مفسرين حضرات قول دې مثلاً بغوى رحمه الله [10] واحدى رحمه الله [11] او قاضى بيضاوى رحمه الله [12] وغيره هم دا اختيار كړى دى. [1] دحضرات متكلمين يوجماعت هم

---

[1] عمدة القاري: ١٦٧/١٥ ومكائد الشيطان لابن أبي الدنيا: ٩١ رقم: ٧٢.

[2] عمدة القاري: ١٦٧/١٥.

[3] عمدة القاري: ١٦٧/١٥.

[4] سورة البقرة: ٣٤.

[5] جامع الدروس العربية: ٣/٩٥-٩٤ الباب التاسع منصوبات الأسماء، الاستثناء، مباحث عامة.

[6] آكام المرجان: ٢١٦-٢١٥ الباب الرابع والثمانون في بيان هل كان إبليس من الملائكة؟

[7] تفسير طبري: ١٧٨/١ لقط المرجان: ١٩١.

[8] حواله بالا.

[9] حواله بالا.

[10] معالم التنزيل: ٧٨/١ سورة البقرة.

[11] تفسير واحدى: ٧٤/١.

[12] تفسير البيضاوى مع حاشية الشهاب: ٢/٢٠٦-٢٠٥.

دغه رائې لري. ابوالقاسم رحمه الله فرمائي زمونږ د شيخ ابوالحسن اشعري رحمه الله هم دغه مذهب دې.[2] په دې مسئله کښې دويم قول د حسن بصري رحمه الله دې. هغوی فرمائي:
«لم يكن إبليس من الملائكة طرفة عين»[3] يعنې ابليس د يوې لمحې دپاره هم د ملائکه حصه نه وو.
هم دغه شان ابن شهاب زهري رحمه الله فرمائي چه ابليس د ټولو جناتو پلار دې. لکه څنګه چه حضرت آدم عليه السلام د ټولو انسانانو پلار دې. آدم عليه السلام بشر وو او ابوالبشر دې. ابليس د جناتو نه دې او ابوالجن دې.
شهر بن حوشب رحمه الله فرمائي چه ابليس د جناتو نه وو. د فساد وينو توېولو وجې نه چه کله جنات د زمکې نه ويستلو سره جزائر وجبال کښې خواره کړې شو نو هغه وخت د ګرفتارو کسانو نه وو. هغه نې اونيولو او آسمان ته نې بوتلو بيا فرښتو سره هم هلته اوسيدلو. کوم وخت چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام ته د سجدې کولو حکم ورکړو نو دې ئې شو انکاري شو او د الله تعالى د دربار نه اوشړلې او ورټلې شو.[4]
حضرت سعد بن مسعود رحمه الله فرمائي چه فرښتې به جناتو سره په جنګ وې. چنانچه کله چه په دغه شان جنګ کښې شيطان راګير شو نو هغه وخت دې ماشوم وو. بيا به ئې فرښتو سره عبادت کولو.[5]
علامه ابومحمد ابن حزم ظاهري رحمه الله[6] او علامه زمخشري رحمه الله[7] دواړو هم دا قول اختيار کړې دې چه هغه د جناتو نه وو. د علماء ديوبند نه هم مولانا محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله هم دغه مختار دې.[8]

دلائل دواړو طرف ته دې خو مونږ د امام ابن تيميه رحمه الله دې محاکمه باندې دابحث ختمو. حضرت فرمائي چه ابليس د خپل صورت په اعتبار سره د فرښتو نه وو خود خپل اصليت او مثال په اعتبار سره دهغوی نه نه دې بلکه د بل نوع يعنې جنات نه دې.
«إبليس كان من الملائكة باعتبار صورته، وليس منهم باعتبار أصله، ولا باعتبار مثاله.....»[9]
**ايا الله تعالى نيغ په نيغه د ابليس سره کلام کړې وو؟**: علامه ابو الوفا ابن عقيل رحمه الله فرمائي چه څوك دا سوال اوكړي چه آيا الله تعالى شيطان لعين سره بلاواسطه يعنې نيغ په نيغه خبرې اترې کړې دی؟ نو هغه ته به په جواب کښې مونږ داسې وايو چه په دې کښې د علماء اصوليين اختلاف دې. په دې کښې محققين هم دغه فرمائي چه نيغ په نيغه خبرې اترې نه دی شوی. سره ددې چه بعض حضراتو دا قول اختيار کړې دې چه نيغ په نيغه خبرې شوی دی مګر رومبې قول صحيح دې. چنانچه

---

[1]) آكام المرجان: ۲۱۶.
[2]) آكام المرجان: ۲۱۶.
[3]) رواه طبری فی تفسير: ۱۷۰/۱۵ ابوالشيخ فی العظمة: رقم: ۱۱٤٦ دَ حضرت حسن بصري رحمه الله نه دا هم نقل دی چه الله تعالى دې هغه خلق غرق کړي چه دا ګمان لري چه دَ ابليس تعلق دَ ملائکه سره وو حالانکه الله تعالى پخپله فرمائي ﴿ كَانَ مِنَ الْجِنِّ ﴾. لقط المرجان: ۱۹۲.
[4]) البداية والنهاية: ۱۰۲/۱ وآكام المرجان: ۲۱۸ ولقط المرجان: ۱۹۲ عمدة القاری: ۱٦۷/۱۵.
[5]) رواه ابن جرير الطبری فی تفسير: ۱۷۹/۱۰ ولفظ المرجان: ۱۹۲.
[6]) الفصل فی الملل والأهواء والنحل: ۲۸/٤ مکتبة الخانجی القاهره.
[7]) الكشاف: ۱۳۰/۱.
[8]) معارف القرآن کاندهلوی: ۹۸۲/۱.
[9]) مجموع الفتاوی: ۱۷۷/٤ کتاب مفصل الاعتقاد. السؤال الحادی والسنون.

الله تعالى ابليس سره د يو فرښتې په ذريعه سره خبره کړې وه. ځکه چه د الله تعالى چاسره د کلام کول په هغه باندې رحمت کول، دهغه نه راضى کيدل دهغه عزت کول اودهغه د شان اوچتولو دپاره وى. کورنى چه حضرت موسى عليه السلام ته دحضرت محمد ﷺ او حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام نه علاوه په نورو ټولو انبياء کرامو باند هم ددغه کلام کولو د وجې نه فضيلت ورکړې شوې دې. (1)

**ابليس څه فرضي کردار نه دې:** دير زيات قدريه اوفلاسفه وغيره د ابليس د وجود شخصى منکرووَ اودى. نن هم ديرزيا متجد دين دې څه فرضى اوخيال څيز تصور کوى. چه انسان څه غلط يا خراب کار اوکړى نو دا په هر انسان کښې دننه موجود قوت بهيميه کارګنړى. (2) خود قرآن اوسنت په رنړا کښې دا موقف قطعاً صحيح نه دې بلکه ابليس يو واضحه وجود لرى د سور کړې شوې اور نه د ده تخليق شوې دې. دې د شيطانانو پلار دې په کوم کښې چه شهوتونه ډک کړې شوى دى. (3)

**دابليس صفات:** ابن جرير طبرى ليکلى چه الله ﷻ ابليس ته ښه شکل اوصورت ورکړو هغه ته ئى عزت ورکړو، دهغه اکرام ئى اوکړو اود آسمان دنيا حکومت ئى هغه ته حواله کړو بل د جنت د خزانو کنجيانې ئى هغه ته حواله کړې خو دا ټول هرڅه په هغه راس رانغلل اودکم ظرفنى مظاهره کولوسره ئى د الله ﷻ په اوچتوالى او لوينى باندې خپل خان لونى اوخودلو اود ربوبيت دعوى ئى اوکړه خپل ماتحتان ئى د خپل عبادت او اطاعت طرف ته راوبلل. په نتيجه کښې الله ﷻ دهغه شکل اوصورت د شيطان په شکل کښې مسخ کړو دهغه شکل اوصورت ئى وران کړو کوم انعامات او حکومت ئى چه ورکړې وو ټول هر څه ئى ترې واخستل او په هغه باندې ئى لعنت اوورولو. دا خو دنياوى سزا وه او په آخرت کښې به د هغه اود هغه تابعدارانو اومنونکو ځائى صرف او صرف جهنم وى. (4)

دالله تعالى رب العزت نه بغاوت اوسرکشئى د وجې نه به ابليس ته په خپل ښائست اوحسن وجمال طاؤس الملائکة ونيلې شو. بيا الله تعالى دهغه شکل وران کړو اوهغه د هميشه هميشه دپاره د الله تعالى د دربار نه شړلې شوې او رټلې شوې اوګرخولې شو. (5)

---

(1) آكام المرجان: ٢١٩الباب الخامس والثمانون. هل كلم الله تعالى إبليس؟ ولفظ المرجان: ١٨٩هل كلم الله أبليس؟

(2) سرسيداحمد خان هم ددغه موقف داعى وو. هغه چه يو طرف ته په خپل تفسير کښې د ديرزيات قطعيات اوسمعيات نه انکار کړې دې بل طرف ته ئې د شيطان د وجود نه بالکل انکار کړې دې. هغه ليکى "اوچرته چه لفظ جن يا جان لکه چه په دې سورت کښې په معنى د ابليس يا شيطان راغلې دې ددې نه اود دغه لفظونونه هيڅ څه وجود خارج از انسان مراد نه دې بلکه په لحاظ د انسان قواتې بهيميه انسانيه باندې ددې اطلاق شوې دې ......" (سورت الحجر ص ١١٥-١١٤ ازتفسير القرآن).

(3) قال العينى: أما جده، فما ذكره الماوردى فى تفسيره (النكت والعيون: ١٠٢/١) ١٥٨/٣هو شى خص روحانى. خلق من نار السموم، وهو أبوالشياطين، وقد ركبت فيهم الشهوات، مشتق من الإبلاس، وهواليأس من الخير". وعمدة القارى:١٥/١٦٧.

(4) تاريخ ابن جرير الطبرى: ٥٦/١عمدة القارى: ١٥/١٦٨-١٦٧.

(5) قال عبدالملك بن أحمد بإسناده عن ابن عباس رضى الله عنهما قال: كان إبليس يأتى يحيى بن زكريا، عليهما الصلاة والسلام، طمعا أن يفتنه، وعرف ذلك يحيى منه، وكان يأتيه فى صورشتى. فقال له: أحب أن تأتينى فى صورتك التى أنت عليها. فأتاه فيها، فإذا هو مشوّه الخلق، كريه المنظر، جسده جسد خنزير، ووجهه وجه قرد، وعيناه مشقوقتان طولا. وأسنانه كلها عظم واحد، وليس له لحية.......... فقال يحيى عليه السلام: ويحك! ما الذى شوّه خلقتك؟ فقال: كنت طاؤس الملائكة، فعصيت الله، فمسخنى فى أخس صورة وهى ماترى...... قال: فأين تسكن؟ قال: فى صدور هم (صدور بنى آدم) وأجرى فى عروقهم. قال: فما الذى يعصمهم منك، قال: بغض الدنيا، وحب الأخرة. عمدة القارى: ١٥/١٦٨.

**دابليس اولاد اودهغه لښكر**: ترجمة الباب كښې يولفظ جنوده راغلې دې. حافظ صاحب رحمه الله فرمائى لكه چه امام بخارى رحمه الله د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه د دې مشهور حديث طرف ته اشاره كوى په كوم كښې چه دا مضمون راغلې دې چه ابليس خپل لښكر د نبيادم د ګمراه كولودپاره روانه وى. [1]

چنانچه ابن حبان حاكم او طبرانى رحمهم الله وغيره روايت كړې دې چه:

**((إذا أصبح إبليس بث جنوده، فيقول: من أضل مسلماً ألبسته التاج، قال: فيقول له القائل: لم أزل بفلان حتى طلق امرأته، قال: يوشك أن يتزوج، ويقول الآخر: لم أزل بفلان حتى عق. قال: يوشك أن يبر. قال: فيقول القائل: لم أزل بفلان، حتى شرب. قال: أنت. قال: ويقول الآخر: لم أزل بفلان حتى زنى، فيقول: أنت. ويقول الآخر: لم أزل بفلان حتى قتل. فيقول: أنت أنت))** [2]

يعنى روزانه چه كله سحر شى نوابليس خپل لښكر خوره وى او ورته وائى چه څوك يومسلمان ګمراه كړى زه به هغه ته تاج په سر كوم. چنانچه يوورېكې شيطان راشى وائى چه ما په فلانكى باندې محنت شروع كړو ترڅو چه هغه خپلې ښځې ته طلاق وركړو. شيطان وائى بيا څه چل اوشو؟ هغه به دوباره نكاح اوكړى (يعنى داهم څه كارنامه ده؟) بل شيطان ګوتې كارګزارى بيانولوسره وائى چه ما يوشان په فلانكى باندې محنت اوكړو نوهغه د خپل مور پلار نافرمانى اوكړه. شيطان وائى نوڅه چل اوشو؟ بيا به فرمانبردار شى (لكه دا څه لويه خبره نه ده). دريم وائى ما فلانكې په شرابو څكلو باندې اخته كړو ابليس هغه ته شاباش وركوى. څلورم په خپل كارګزارنى باندې رڼا اچولو سره وائى چه ما په فلانكى باندې زنا اوكړه. ابليس هغه ته هم شاباش وائى. پنځم راځى او وائى چه ما يوشان كوشش كولو ترڅو چه د فلانكى د لاس نه مې قتل اوكړو. ابليس بنه خوشحاله شى اوهغه ته بنه شاباش وركړى.

دغه شان په مسلم شريف كښې د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه حديث دې چه ابليس خپل تخت په سمندر باندې خوركړى بيا خپل لښكر مختلف طرفونوته روانه وى چه بنيادم په فتنه كښې واچونى اود خپل هريو شاګرد نه كارګزارى اخلى......، آخر يو شيطان ګوتې راشى او وائى چه ما نن د فلانكى اودهغه د ښځې په مينځ كښې جګړه پيدا كړه چه د طلاق سبب جوړشو نو ابليس دغه خپل شاګرد ته خپل خان ته نيزدې كړى او ورته وائى چه "نعم أنت" ته خوډير كامياب او شاندار پاتې شوې. [3]

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه د ابليس د اولاد تعداد ډيرزيات دې. خو په هغوى كښې صرف په پنځو باندې هغه يقين كوى چه دهغه پوره ابليسى نظام چلوى. يعنى ثبر، اعور، مسوط، داسم او زلنبور. أعاذنا الله من جميعهم. [4]

---

[1]) فتح البارى: ۳۳۹/۶عمدة القارى: ۱۶۸/۱۵.

[2]) رواه ابن أبى الدنيا فى مكايدالشيطان:۳۶ومجمع الزوائد: ۱۱۴/۱الحاكم فى المستدرك: ۳۵۰/۴رقم: ۸۰۲۷وصححه الذهبى فى تلخيصه المطبوع بذيل المستدرك.وابن حبان فى صحيحه: ۲۸/۱۴ كتاب التاريخ باب بدء الخلق...... ذكر الأخبار عن وضع إبليس التاج..... رقم: ۶۱۸۹.

[3]) صحيح مسلم كتاب التوبة باب تحريش الشيطان رقم: ۲۸۱۳ ومسند أحمد: ۳۱۴/۳ مسندجابر بن عبدالله رضي الله عنه رقم: ۱۴۴۳۰.

[4]) مكائدالشيطان: ۵۴إبليس وذريته رقم: ۳۵عمدة القارى: ۱۶۸/۱۵.وقال الغزالى الإمام فى الإحياء نقلا عن مجاهد: لإبليس خمسة من الأولاد، قد جعل كل واحد منهم على شيء من أمره: ثبر، والأعور، ومسوط، وداسم، وزلنبور، فأما ثبر: فهو صاحب لمصائب، الذى يأمر بالثبور، وشق الجيوب، ولطم الخدود، ودعوى الجاهلية، وأما الأعور: فإنه صاحب الزنى، يأمر به ويزينه، وأما مسوط: فهو صاحب الكذب، واما داسم: فإنه يدخل مع الرجل إلى أهله، يرميهم بالعيب عنده، وغضبه عليهم، وأما زلنبور: فهو

وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿يُقْذَفُونَ﴾/الصافات: ٨/: يُرْمَوْنَ. ﴿دُحُورًا﴾/الصافات: ٩/: مَطْرُودِينَ. ﴿وَاصِبٌ﴾/الصافات: ٩/: دَائِمٌ
په دې عبارت کښې د قرآن کريم آيات ﴿وَيُقْذَفُونَ مِن كُلِّ جَانِبٍ ۝ دُحُورًا وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ﴾ (١) طرف ته اشاره کړې شوې ده او په دې کښې وارد بعض کلماتو د حضرت مجاهد رحمه الله تفسير ذکر کړې شوې دې. چنانچه اوفرمائيلې شو چه ﴿يُقْذَفُونَ﴾ معنى يرمون ده. يعنى هغوى به غورزولې شى. او ﴿دُحُورًا﴾ معنى مطرودين ده يعنى رټلې شوې. لکه چه دحورا کوم چه مصدر دې د مفعول په معنى کښې دې. بل ﴿وَاصِبٌ﴾ معنى دائم يعنى د هميشه دپاره جارى پاتې کيدونکو ده. (٢)

**دمذکوره تعليق مقصد:** د دې آياتونو تعلق چونکه شياطين يعنى جنود ابليس سره دې په دې وجه دا دلته د باب لاندې ذکر کړې شو. هم دغه تفسيرى کلمات کتاب التفسير کښې هم راغلى. (٣)

په دې آياتونو کښې د شيطانانو دهغه کوشش او دهغې د انجام ذکر دې چه په جاهليت کښې د نبى کريم ﷺ د بعثت نه وړاندې به دا شيطانان اوجنات د غيبى خبرونو په لټون کښې آسمان ته تلل او په پټه به ئې د فرښتو د خبرو اوريدو کوشش کولو. خو روستو په دوى باندې د هر قسم پابندى اولګولې شوه اود دغه حرکت نه د منع کولو دپاره بې مثاله انتظامات اوکړې شو. نو چه کوم يو به هم دهغه ځائى د رسيدو کوشش کولو تباه کولې به شو په هغوى به شهاب راغورزولې شو چه هغه شيطان به ئې سوزولو سره ايره کړو. دا خوئى دنياوى سزا شوه او په آخرت کښې دهميشه عذاب د دې نه علاوه دې.

**دمذکوره تعليق موصولاً تخريج:** د حضرت مجاهد رحمه الله دا تفسيرى جملې «روح، عن شبل، عن ابن أبى نجيح، عن مجاهد» په طريق سره عبد بن حميد رحمه الله په خپل تفسير کښې موصولاً ذکر کړې دى. (٤)

**ترجمة الباب سره مناسبت:** د حضرت مجاهد رحمه الله د دې تعليق مناسبت د ترجمې الفاظ جنوده سره دې چه په دې کښې د شياطين ذکر دې هم دغه جنود ابليس دى.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿مَدْحُورًا﴾/الأعراف: ١٨/: مَطْرُودًا. يُقَالُ: ﴿مَرِيدًا﴾/النساء: ١١٧/: مُتَمَرِّدًا. بَتَّكَهُ قَطَّعَهُ. ﴿وَاسْتَفْزِزْ﴾ /اسْتَخِفَّ ﴿بِخَيْلِكَ﴾/الإسراء: ٦٤/: الْفُرْسَانُ، وَالرَّجْلُ الرَّجَّالَةُ، وَاحِدُهَا رَاجِلٌ، مِثْلُ صَاحِبٍ وَصَحْبٍ وَتَاجِرٍ وَتَجْرٍ. ﴿لَأَحْتَنِكَنَّ﴾/الإسراء: ٦٢/: لَأَسْتَأْصِلَنَّ. ﴿قَرِينٌ﴾ /الزخرف: ٣٦/: شَيْطَانٌ.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﴿مَدْحُورًا﴾: مَطْرُودًا: په دې تعليق کښې آيت مبارک ﴿قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا﴾ (٥) طرف ته اشاره ده. په کوم کښې چه د شيطان د دوو منفى صفتونو ذکر دې. يومذموم اوبل مدحور.

---

صاحب السوق، فبسببه لا يزالون منظلمين. وشيطان الصلاة يسمى خنزب [صحيح مسلم رقم: ٢٢٠٣ من حديث عثمان بن أبى العاص] وشيطان الوضوء يسمى الولهان [الجامع للترمذى رقم: ٥٧ من حديث أبى]" إحياء علوم الدين: ٩٥٤-٩٥٣ كتاب شرح عجائب القلب، ربع المهلكات. وفى تفسير الجوزى: قسم إبليس جنده فريقين ، فبعث فريقا منهم إلى الإنس، وفريقا إلى الجن، فكلهم أعداء لرسول الله صلى الله عليه وسلم. التوضيح: ١٩٥/١٩.

(١) سورة الصافات: ٩-٨
(٢) عمدة القارى: ١٦٨/١٥ فتح البارى: ٣٤٠/٦.
(٣) كشف البارى كتاب التفسير سورة الصافات ص: ٥٤٨.
(٤) عمدة القارى: ١٦٨/١٥ فتح البارى: ٣٤٠/٦ تغليق التعليق: ٥١١/٣ والدر المنثور: ٢٧١/٥.
(٥) سورة الاعراف: ١٨.

د دويم لفظ معنى دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دا نقل كړې شوې دى چه ددې معنى مطرود ده يعنى رټلى شوى.[1]. مدحور د حرنه صيغه اسم مفعول ده ددې معنى دفع كول رټل او لرې كولو ده.[2]

**د مذكوره تعليق موصولاً تخريج:** دحضرت ابن عباس پورته ذكرشوې تفسيرى قول امام طبرى رحمه الله د على بن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً په خپل تفسير كښې نقل كړې دې.[3]

**يقال: (مَّرِيدًا): مُتَمَرِّدًا:** آيت مبارك ﴿وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا﴾ [4] طرف ته اشاره كړې ده چه مريد دميم فتحه سره په معنى د متمرد يعنى سركش دې. دا تفسير د ابوعبيده رحمه الله نه نقل ده.[5]

**بَتَّكَهُ: قَطَّعَهُ:** دا تفسير هم د ابوعبيده رحمه الله نه نقل دې. هغوى آيت مبارك ﴿وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ الْأَنْعَامِ﴾ [6] تفسير فليقطعن سره كړې دې. بتكه معنى ده قطعه. اوس دآيت معنى دا شوه: (شيطان اووئيل چه) اوزه به هغوى ته حكم وركوم نوهغوى به د څناورو غوږونه څيرى كوى.

حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه د دغه څناور نه مراد بحيره ده. يعنى هغه اوښه چه د بچى راوړو دعمل نه پنځه ځل تيره شوې وى او پنځم بچې دهغې نر وى نو اهل جاهليت به د دغه اوښې غوږ اوڅيرلو او د بتانو په نوم به ئى آزادې پريخودلې. اودهغې نه به ئى فائده نه اخستله.[7] په دې كار باندې په ظاهره دوى هم شيطان لګولې وو. چنانچه ترجمة الباب سره مناسبت هم اوشو.

**(وَاسْتَفْزِزْ): اِسْتَخِفَّ (بِخَيْلِكَ): الْفُرْسَانُ، وَالرَّجْلُ الرَّجَّالَةُ، وَاحِدُهَا رَاجِلٌ، مِثْلُ صَاحِبٍ وَصَحْبٍ وَتَاجِرٍ وَتَجْرٍ:** په دې عبارت كښې آيت مبارك ﴿وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُم بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِم بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ﴾ [8] طرف ته مصنف رحمه الله اشاره فرمائيلې ده. په دې آيت مبارك كښې الله رب العزت شيطان ته خطاب كولوسره فرمائى چه دهغه انسانانونه په كومو چه ستا طاقت وى خپل آواز (وسوسې) سره هغه دحق لارې نه اخوا كړه ګمراه ئى كړه او په هغوى باندې خپل سواره او پياده راوله راشه.

ددې ځائى نه علاوه امام بخارى رحمه الله د ابوعبيده رحمه الله په حواله سره دا تفسيرى كلام كتاب التفسير

---

[1] علامه عينى رحمه الله او حافظ دلته دا ليكلى دى چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دې اثر كښې آيت مبارك ﴿فَتُلْقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا﴾ [الإسراء: ٣٩] طرف ته اشاره ده. بل دا دې آيت د ترجمة الباب الفاظ ابليس او جنود دواړوسره څه تعلق نشته دې. پورته چونكه ﴿دُحُورًا﴾ لفظ راغلى وو هم ددې په مناسبت سره استطراداً ﴿مَّدْحُورًا﴾ لفظ هم ذكركړې شوې دې [عمدة القارى:١٦٨/١٥ فتح البارى: ٣٤٠/٦] مګر زمونږ په خيال ددې حضراتو نه سهو شوې ده. غالباً ددې حضراتو توجو د سورة الاعراف پورته ذكركړې شوې آيت طرف ته به نه وى تللې. والله اعلم بالصواب

[2] عمدة القارى: ١٦٨/١٥ وتاج العروس: ٣٠٣/٣ باب فصل الدال من باب الراء.

[3] عمدة القارى: ١٦٨/١٥ فتح البارى: ٣٤٠/٦ وتغليق التعليق: ٥١١/٣

[4] سورة النساء: ١١٧.

[5] فتح البارى: ٣٤٠/٦ ومجاز القرآن: ١٤٠/١ وقال ابن المنظور الإفريقى: والمريد: من شياطين الإنس والجن. وقد تمرد علينا أي: عتا. مرد على الشر وتمرد أي: عتا وطغى. والمريد: الخبيث المتمرد الشرير..... لسان العرب ٧٠/١٣ مادة: مرد.

[6] سورة النساء: ١١٩.

[7] عمدة القارى: ١٦٩/١٥ والتوضيح: ١٩١/١٩.

[8] سورة الإسراء: ٦٤

كښې هم ذكر كړې دې.[1] دا آيت په صراحت سره د ابليس اودهغه شيطانى اولاد په وجود باندې دلالت كوى. دغه شان ترجمة الباب سره د آيت مناسبت واضح دې.

﴿لَأَحْتَنِكَنَّ﴾: لأستأصلنّ: په دې آيت مبارك كښې ﴿لَئِنْ أَخَّرْتَنِ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَأَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [2] توضيح كړې شوې ده چه د احتناك معنى استيصال يعنى د بيخه نه ويستل او غورزول دى. دا د شيطان كلام دې په كوم كښې چه هغه پوره انسانيت ته چيلنج وركوى. په دې آيت سره د شيطان وجود ثابتيږى. دغه شان ترجمة الباب سره د آيت مناسبت موجود دې.

﴿قَرِينٌ﴾: شَيْطَانٌ: لكه څنګه چه تاسو وينئ زمونږ د پاكستانى نسخې بين السطور كښې لفظ قرين لاندې أي ﴿فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ﴾ الفاظ ثبت دى كوم چه د سورة زخرف د آيت حصه ده.[3] دلته په آيت كښې قرين په معنى د مصاحب او ملګرى دې. چه د اهل علم نه پټ نه دې د شيطان په معنى كښې نه دې. خوحافظ رحمه الله فرمائيلى دى چه په دې كښې د سورت صافات آيت ﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ﴾ [4] طرف ته اشاره ده.[5]

خو حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه زما په نيز د ټولو نه بهتر توجيه داده چه په دې كښې امام بخارى رحمه الله د سورت ق آيت ﴿قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ﴾ [6] طرف ته اشاره كړې ده. چونكه امام بخارى رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله مذكوره بالا تفسير سورة الصافات اوسورة ق كښې خو ذكر كړې دې مګر په سورة زخرف كښې نه دې. چنانچه دهغوى دا صنيع هم په دې باندې دال دې چه د سورت زخرف والا آيت دلته هيڅ كله مراد نه دې. والله اعلم بالصواب.[7]

**د مذكوره تعليق تخريج او مطابقت:** د حضرت مجاهد رحمه الله پورته ذكرشوې تفسير د ابن ابى نجيح رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.[8] او د دغه تفسيرى تعليق مناسبت هم ترجمة الباب سره واضح دې چه په دې كښې د شيطان ذكر دې چه دهغه په وجود باندې دال دې.

ددې نه پس داسې اوګڼرئى چه دلته د باب لاندې امام بخارى رحمه الله اوويشت (٢٧) احاديث ذكر كړى دى. په كوم كښې چه اولنې حديث د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې كوم چه په صورت د تعليق دې.

## الحديث الاول

٣٠٩٥- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: سُحِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ اللَّيْثُ: كَتَبَ إِلَيَّ هِشَامٌ أَنَّهُ سَمِعَهُ وَوَعَاهُ

---

[1] فتح البارى: ٣٤٠/٦ كشف البارى كتاب التفسير: ٣٦٣.

[2] سورة الإسراء: ٦٢ بل اوګورئ: كشف البارى كتاب التفسير: ٣٦٤.

[3] الزخرف: ٣٦. داراى د علامه عينى رحمه الله ده. عمدة القارى: ١٦٩/١٥.

[4] سورة الصافات: ٥١.

[5] فتح البارى: ٣٤٠/٦ صحيح البخارى قديمى: ٤٦٢/١.

[6] سورة ق: ٢٧.

[7] الأبواب والتراجم: ٢١١/١ الكنز المتوارى: ١٨٩/١٣.

[8] حواله جات بالا وفتح البارى: ٣٤٠/٦.

عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سُحِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَتَّى كَانَ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَفْعَلُ الشَّيْءَ وَمَا يَفْعَلُهُ، حَتَّى كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ دَعَا وَدَعَا، ثُمَّ قَالَ: "أَشَعَرْتِ أَنَّ اللَّهَ أَفْتَانِي فِيمَا فِيهِ شِفَائِي، أَتَانِي رَجُلَانِ: فَقَعَدَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِي وَالآخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ، فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِلآخَرِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ؟ قَالَ: مَطْبُوبٌ، قَالَ: وَمَنْ طَبَّهُ؟ قَالَ لَبِيدُ بْنُ الأَعْصَمِ، قَالَ: فِيمَاذَا، قَالَ: فِي مُشُطٍ وَمُشَاقَةٍ وَجُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ، قَالَ فَأَيْنَ هُوَ؟ قَالَ: فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ" فَخَرَجَ إِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لِعَائِشَةَ حِينَ رَجَعَ: «نَخْلُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ» فَقُلْتُ اسْتَخْرَجْتَهُ؟ فَقَالَ: «لَا، أَمَّا أَنَا فَقَدْ شَفَانِي اللَّهُ، وَخَشِيتُ أَنْ يُثِيرَ ذَلِكَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا» ثُمَّ دُفِنَتِ البِئْرُ [ر ۳۰۰٤]

## تراجم رجال

**ابراهيم بن موسي:** دا ابراهيم بن موسى الفراء رازى تميمى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها.... كښې تيره شوې ده.[۱]

**عيسي:** دا عيسىٰ بن يونس بن ابى اسحاق سبيعى كوفى رحمه الله دې.[۲]

**هشام:** دا هشام بن عروه بن زبير بن عوام اسدى رحمه الله دې.

(**أبيه**)**عروه:** دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحى دويم حديث كښې او اجمالى په كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوې ده.[۳]

**عائشة** رضي الله عنها: د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې راغلى دى[۴] عائشه رضي الله عنها نه روايت شوې دا مشهور حديث په شروع د كتاب بدء الوحى كښې تير شوې دې.[۵]

**قوله: قالت: سحر النبي صلى الله عليه وسلم:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه په حضورپاك عليه السلام باندې جادو اوكړې شو. ددې حديث تول تشريحات خمس وجزيه او طب كښې تيرشوى دى.[۶]

**دتعليق تخريج:** په دې روايت كښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سحر كيدو د واقعې تفصيلات ذكركړې شوى دى. د حضرت ليث بن سعد رحمه الله دا روايت دلته تعليقاً راغلې دې. دا موصولاً امام ابوبكر بن عبدالله بن ابى داود رحمه الله د عيسى بن حماد، عن الليث په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.[۷]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** حافظ رحمه الله او عينى رحمه الله فرمائى چه د حضرت عائشه رضي الله عنها ددې روايت

---

[۱]) كشف البارى كتاب الحيض: ۱۹۹.

[۲]) ددوى دحالاتودپاره اوګورئى كتاب الإذان باب من صلى بالناس فذكر حاجة.......

[۳]) كشف البارى: ۲۹۱/۱، ۴۳۶/۲-۴۳۲.

[۴]) كشف البارى: ۲۹۱/۱.

[۵]) صحيح البخارى حديث نمبر ۲ كشف البارى: ۳۲۱/۲۹۵/۱.

[۶]) كشف البارى كتاب الخمس والجزيه: ۶۳۸-۶۳۶باب هل يعفى عن الذمى...؟ كشف البارى كتاب الطب: ۱۲۱-۱۰۴.

[۷]) عمدة القارى: ۱۶۹/۱۵فتح البارى: ۳۴۰/۶تغليق التعليق: ۵۱۲/۳.

ترجمة الباب سره مناسبت په دې معنى دې چه سحر او جادو د شيطاني استعانت او امداد نه بغير مكمل كيدې نه شي. (١)خو ددې روايت مطابقت په قول د علامه سندهي رحمه الله د حديث دې جملې «كأنه رؤوس الشياطين» سره دې. چنانچه دا جمله دلالت كوي چه شيطانان بدن لري اود دغه بدنونو سرونه وي. ددوي شكلونه ويرونكي او قبيح وي اوهغه كريه المنظر وي كوم چه طبائع سليمه ناخوښه وي. زياته بهتر خبره هم دغه ده. هم دغه راجح معلوميږي. حضرت رحمه الله ليكي: «قوله: (كأنه رؤوس الشياطين)، هذا هو محل الترجمة، حيث يدل على أن الشياطين أجسام، لها رؤوس، تنفر عنها الطباع السليمة، يعبر بها الشيء الكريه المنظر» (٢)

دباب دويم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.

## الحديث الثاني

٣٠٩٦- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَخِي، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلاَلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ المُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلاَثَ عُقَدٍ، يَضْرِبُ كُلَّ عُقْدَةٍ مَكَانَهَا: عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ فَارْقُدْ، فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللَّهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِنْ صَلَّى انْحَلَّتْ عُقَدُهُ كُلُّهَا، فَأَصْبَحَ نَشِيطًا طَيِّبَ النَّفْسِ، وَإِلَّا أَصْبَحَ خَبِيثَ النَّفْسِ كَسْلاَنَ" (٣)[ر ١٠٩١]

## تراجم رجال

**اسماعيل بن ابي اويس:** دا اسماعيل بن ابى اويس مدنى اصبحى رحمه الله دي. ددوى تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر.... كښې تيرشوى دى.(٤)

**اخي:** دا د اسماعيل بن ابى اويس رور عبدالحميد بن ابى اويس رحمه الله دي. ددوى تفصيلي تذكره كتاب العلم باب حفظ العلم په ضمن كښې تيره شوې ده.(٥)

**سليمان بن بلال:** دا ابومحمد سليمان بن بلال تيمى قرشى رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.(٦)

**يحيي بن سعيد:** دا يحيى بن سعيد بن فروخ قطان ابوسعيد احول بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب...... په ذيل كښې تيره شوې ده.(١)

---

١) عمدة القاري: ١٦٩/١٥ فتح الباري: ٣٤٠/٦.

٢) الكنز المتواري: ١٨٩/١٣ وحاشية السندي على البخاري: ٤٦٢/١ قديمي.

٣) قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، مر تخريجه كتاب التهجد باب عقد الشيطان على قافية الرأس إذا لم يصل بالليل.

٤) كشف الباري: ١١٣/٢.

٥) كشف الباري: ٤٦١/٤.

٦) كشف الباري ١/٦٥٨.

**سعیدبن المسیب**: دا مشهور تابعی بزرگ سعید بن مسیب بن حزن قرشی رحمه الله دي. ددوی حالات کتاب الإیمان باب من قال: إن الإیمان هو العمل..... په ذیل کښې راغلی دی. (۲)

**ابوهریره**: دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دي. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیرشوی دی. (۳)

دحضرت ابوهریره رضی الله عنه داحدیث د خپل تفصیلات سره کتاب التهجد کښې تیرشوې دې. (۴) په کوم کښې چه دا مضمون بیان کړې شوې دې چه کله بنده اوده شي نو شیطان دهغه په سر کښې شانته درې غوټې لګوی ورته وائی روره دیره اوږده شپه ده اوده شه. او کله چه پاسی اود الله تعالی ذکرکوی نویوه غوټه کولاؤ شي. کله چه اودس اوکړی دویمه کولاؤشي اوچه کله د سحر مونځ اداکوی نودریمه غوټه هم کولاؤ شي او بنده بنه تازه شي. ګنی په داسې حال کښې سحر کړی چه نفس خبیث او بدن ستړې ستومانه وی مخ ئې سپیره وی. أعاذنا الله منه.

**ترجمة الباب سره مطابقت**: ددې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې «یعقد الشیطان علی قافیة أحدکم» په کوم کښې چه د شیطان تول حرکات شنیعه او افعال قبیحه نه یوصفت بیان شوې دې. (۵)

دباب دریم حدیث د ابن مسعود رضی الله عنه دې.

## الحدیث الثالث

۳۰۹۷- حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ نَامَ لَيْلَهُ حَتَّى أَصْبَحَ، قَالَ: "ذَاكَ رَجُلٌ بَالَ الشَّيْطَانُ فِي أُذُنَيْهِ، أَوْ قَالَ: فِي أُذُنِهِ" (۶)- [ر ۱۰۹۳]

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه درسول الله صلی الله علیه وسلم په دربار کښې د یوسړی تذکره اوشوه چه د شپې اوده شو اوترسحره ناوخته پورې اوده پاتې شو اومونځ ترې لاړو. نوحضورپاك اوفرمائیل چه دا هغه بنده دې د چا په دوارو غوږونو یا په یو غوږ کښې چه شیطان متیازې کړی وی.

## تراجم رجال

**عثمان بن ابي شیبه**: دا عثمان بن محمدبن ابی شیبه عبسی کوفی رحمه الله دي.

**جریر**: دا جریر بن عبدالحمید ضبی کوفی رحمه الله دي.

---

(۱) کشف الباري: ۲/۲.
(۲) کشف الباري: ۱۵۹/۲.
(۳) کشف الباري: ۶۵۹/۱
(۴) صحیح البخاری کتاب التهجد باب عقد الشیاطین علی قافیة الرأس.
(۵) عمدة القاري: ۱۷۰/۱۵.
(۶) قوله: عن عبدالله رضی الله عنه: الحدیث مرتخریجه کتاب التهجد باب إذا نام ولم یصل بال الشیطان.

**منصور:** دامنصور بن معتمر سلمی ابوعتاب کوفی رحمه الله دې. ددې د ریوارو محدثینو حضراتو تفصیلی تذکره کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أياما معلومة لاندې تیره شوې ده.[1]

**ابووائل:** دا ابووائل شقیق بن سلمه کوفی اسدی رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب الإیمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله.....لاندې ذکرکړې شوی دی.[2]

**عبدالله:** دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعو رضي الله عنه دې. دَ دوې تفصیلی تذکره کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم کښې راغلې.[3]

داحدیث شریف هم په کتاب التهجد کښې تیرشوې دې.

**ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې حدیث مطابقت هم ترجمة الباب سره ښکاره دې چه په دې کښې د شیطان د یو قبیح صفت بیان کړې شوې دې. بل د شیطان وجود هم ثابتیږی.[4]

دباب څلورم حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې.

## الحدیث الرابع

۳۰۹۸- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَمَا إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ، وَقَالَ: بِسْمِ اللَّهِ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا، فَرُزِقَا وَلَدًا لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ " [5]-[ر ۱۴۱]

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعیل:** دا موسى بن اسمٰعیل تمیمی تبوذکی رحمه الله دې. د دوی حالات اجمالاً بدء الوحی او تفصیلاً کتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة الید.....، په ضمن کښې راغلی دی.[6]

**همام:** دا همام بن یحیی بن دینار عوذی بصری رحمه الله دې.[7]

**منصور:** دامنصور بن معتمر سلمی ابوعتاب کوفی رحمه الله دې. دَ دوې تفصیلی تذکره کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أياما معلومة لاندې تیره شوې ده.[8]

---

[1] کشف الباري: ۳/ ۲۷۰-۲۶۶.

[2] کشف الباري: ۲/ ۵۵۹.

[3] کشف الباري: ۲/ ۲۵۷.

[4] عمدة القاري: ۱۵/ ۱۷۱.

[5] قوله: عن ابن عباس رضي الله عنهما: الحدیث مرتخریجه کتاب الوضوء کشف الباري: ۵/ ۲۳۶.

[6] کشف الباري: ۱/ ۴۳۳ الحدیث الرابع: ۳/ ۳۷۷.

[7] دَدوی دَ حالاتو دپاره اوګورئی کتاب مواقیت الصلاة باب من نسی صلاة تحت رقم: ۵۹۷

[8] کشف الباري: ۳/ ۲۷۰-۲۶۶.

**سالم بن ابي الجعد**: دا سالم بن ابی الجعد رافع غطفانی کوفی رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب الوضوء باب التسمية علی کل حال..... په ضمن کښې بیان شوی دی.[1]

**کريب**: دا مولی ابن عباس کریب بن ابی مسلم هاشمی مدنی رحمه الله دي. ددوی تذکره کتاب الوضوء باب التخفيف في الوضوء کښې تیره شوې ده.[2]

**ابن عباس** رضي الله عنهما: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. د دوی اجمالی تذکره بدء الوحی او تفصیلی کتاب الإيمان باب کفران العشير وکفر... کښې شوې ده.[3]

**(تنبيه) اوڈ حديث خلاصه**: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما داحدیث کتاب الوضوء کښې تیرشوې دې.[4] په کوم کښې چه خودلی شوی دی چه کله یومسلمان خپل کور والوسره خلوت کوی اودا دعا وائی «اللهم جنبنا الشيطان، وجنب الشيطان مارزقتنا» بیا د خلوت په نتیجه کښې چه کله الله تعالی دې دوارو ته د اولاد نعمت ورکوی نوشیطان دغه ماشوم ته هیڅ کله نقصان نه شی رسولې.

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت**: ددې حدیث مطابقت ترجمة الباب سره واضح دې چه د شیطانی صفاتو نه داهم دی چه هغه هروخت هرمسلمان ته نقصان رسولو کښې او تکلیف ورکولو کښې تیار وی.[5]

دباب پنځم حدیث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه دې.

## الحديث الخامس

٣٠٩٩- حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَبْرُزَ، وَإِذَا غَابَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلَاةَ حَتَّى تَغِيبَ، وَلَا تَحَيَّنُوا بِصَلَاتِكُمْ طُلُوعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوبَهَا، فَإِنَّهَا [ص: ١٢٣] تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ، أَوِ الشَّيْطَانِ» لَا أَدْرِي أَيَّ ذَلِكَ، قَالَ هِشَامٌ.[6] [ر ٥٥٨]

## تراجم رجال

**محمد**: دا محمدبن سلام بیکندی رحمه الله دي. ددوی تذکره کتاب الإيمان باب قول النبي صلی الله عليه وسلم:

---

[1] کشف الباری: ٢٣٧/٥.

[2] کشف الباری: ١٥٤/٥.

[3] کشف الباری: ٤٣٥/١و٢٠٥/٢.

[4] کشف الباری کتاب الوضوء باب التسمية على كل حال......:٢٤٤/٥-٢٣٦.

[5] عمدة القاری: ١٧١/١٥.

[6] قوله: عن ابن عمر رضی الله عنهما: الحدیث، مرتخریجه کتاب مواقیت الصلاة باب الصلاة بعدالفجر رقم: ٥٨٣

أنا أعلمكم بالله......، كښې تيره شوې ده.[1]

عبدة: دا عبدة بن سليمان كوفي رحمه الله دې. ددوی تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: أنا أعلمكم بالله...... لاندې درج كړې شوی دی.[2]

هشام: دا هشام بن عروه بن زبير بن عوام اسدي رحمه الله دې.

عروه: دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحی دويم حديث كښې او اجمالي په كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوې ده.[3]

ابن عمر: دامشهور صحابي حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې. دد وی تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام على خمس.... لاندې تيرشوی دی.[4]

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما داحديث هم وړاندې تيرشوې دې.[5] په هغې كښې دهغه ممنوع وختونو نه د دوو بيان دې په كوم كښې چه دمونځ كولو ممانعت دې. يعني طلوع شمس او غروب شمس ځكه چه دا د شيطان د عبادت وختونه دی. په دې دوو وختونو كښې د شيطان منونكي د هغه عبادت كوی. د كوم تعبير چه په حديث كښې د شيطان د دوو ښكرو په مينځ كښې دنمر د راختوسره كړې شوې دې په حقيقت كښې دا دهغه د عبادت وخت وی.

قوله: :لا أدري أي ذلك قال هشام؟: دا د راوی حديث عبده بن سليمان رحمه الله قول دې چه دا فرمائي چه حضرت هشام بن عروه رحمه الله شيطان فرمائيلي دې يا الشيطان؟ دا ماته ياد نه دی.[6] شيطان غير معرف باللام دې نو هرشيطان مراد كيدې شي او كه چرې معرف باللام دې نومعهود يعني ابليس به متعين وي هم دغه راجح معلوميږی.

ترجمة الباب سره د حديث مطابقت: ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله كښې دې «فإنها تطلع بين قرني الشيطان» چه په دې سره د شيطان وجود او دهغه د پاره ښكرې ثابتيږی.[7] دباب شپږم حديث دحضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه دې.

## الحديث السادس

۳۱۰۰- حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا مَرَّ بَيْنَ يَدَيْ أَحَدِكُمْ شَيْءٌ وَهُوَ يُصَلِّي فَلْيَمْنَعْهُ، فَإِنْ أَبَى فَلْيَمْنَعْهُ، فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ»[8]- [ر ٤٨٧]

---

[1] كشف الباري: ۹۳/۲.

[2] كشف الباري: ۹٤/۲-۹۳.

[3] كشف الباري: ۲۹۱/۱، ٤۳٦/۲-٤۳۲.

[4] كشف الباري: ٦۳۷/۱

[5] صحيح البخاري كتاب مواقيت الصلاة باب الصلاة بعد الفجر.

[6] عمدة القاري: ۱۷۱/۱۵فتح الباري: ۳٤۰/٦إرشادالساري: ۲۹۲/۵.

[7] عمدة القاري: ۱۷۱/۱۵.

[8] قوله: عن أبي سعيد: الحديث، مرتخريجه كتاب الصلاة باب يردالمصلي من مربين يديه.

## تراجم رجال

**ابومعمر**: دا ابومعمر عبدالله بن عمرو منقرى رحمه الله دي.

**عبدالوارث**: دا عبدالوارث بن سعيد بن ذكوان تميمى رحمه الله دي. ددې حضر اتو تفصيلى حالات كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب لاندې راغلى دى.[1]

**يونس**: دا ابوعبدالله يونس بن عبيد عبدى بصرى رحمه الله دي. د دوى تذكره كتاب الإيمان باب المعاصى من أمر الجاهلية..... ضمن كښې تيره شوې ده.[2]

**حميدبن هلال**: دا ابوالنصر حميدبن هلال بن هبيره عدوى بصرى رحمه الله دي.[3]

**ابوصالح**: دا ابو صالح عبدالله بن ذكوان سمان زيات رحمه الله دي. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.[4]

**ابوسعيد**: دا مشهور صحابى حضرت ابوسعيد بن مالك بن سنان خدرى رضى الله عنه دي. ددوى تفصيلى تذكره كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن كښې شوې ده.[5]

دحضرت ابوسعيد خدرى رضى الله عنه دا حديث كتاب الصلاة كښې راغلې دي.[6]

**خلاصه حديث**: په دې حديث كښې دمونځ ګذار مخې ته دتيريدونه منع كړې شوې ده. او په دې باندې اصرار كونكې شيطان ګرځولې شوې دې. يعنى هغه د انسانو دقسم نه شيطان دې. يا دامطلب دې چه په دې كارباندې چونكه شيطان آماده كول كوى چه د مونځ ګذار مخې ته تير شه په دې وجه هغه ته شيطان اووئيلې شو (فإنما هو شيطان) په تشريح كښې علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى (أي معه شيطان، أوهو شيطان الإنس، أو إنما حمله على ذلك الشيطان، أو إنما فعل فعل الشيطان، أو المراد قرين الإنسان، فيكون شيطانه هو الحامل له على ذلك).[7]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې: ((فإنما هو شيطان)).[8]

**يواهم تنبيه**: دكرمانى او قسطلانى په نسخه كښې داحديث مسند ابى هريره رضى الله عنه ظاهر كړې شوې دې. چنانچه په ځائى د عن ابى سعيد، عن ابى هريره ذكر دې. خو په نسخه هنديه، عينى اوفتح كښې عن ابى سعيد دې او هم دغه صحيح دې. ځكه چه دا حديث هم په دې سندسره كتاب الصلاة كښې

[1] كشف البارى: ۳/۳۵۸-۳۵۶.
[2] كشف البارى: ۲/۲۱۸.
[3] دوى دحالاتودپاره اوګورئى كتاب الصلاة باب يرد المصلى.....
[4] كشف البارى: ۱/۶۵۸
[5] كشف البارى: ۲/۸۲
[6] صحيح البخارى كتاب الصلاة باب يرد المصلى من مربين يديه.
[7] شرح القسطلانى: ۵/۲۹۳.
[8] عمدة القارى: ۱۵/۱۷۱.

تيرشوې دې هلته هم عن ابى سعيد دې. پخپله قسطلانى رحمه الله هم ددې تصريح كړې ده او فرمائيلى دي: «ولأبى ذر: عن أبى سعيد، أي الخدري، وضبب فى الفرع على أبى هريرة»[1]
دباب اووم حديث په شكل دتعليق دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.

## الحديث السابع

٣١٠١- وَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: وَكَّلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ فَأَتَانِي آتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ، فَقُلْتُ لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَ الْحَدِيثَ - فَقَالَ: إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ، لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللَّهِ حَافِظٌ، وَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ ذَاكَ شَيْطَانٌ».[ر ٢١٨٧]

## تراجم رجال

**عثمان بن الهيثم:** داعثمان بن الهيثم بن الجهم ابوعمرو بصرى رحمه الله دي.

**عوف:** دا عوف بن ابى جميله عبدى ابوسهل بصرى رحمه الله دي.

**محمدبن سيرين:** دا مشهور محدث محمدبن سيرين انصارى رحمه الله دي. ددې دريوارو حضراتو محدثينو تفصيلى حالات **كتاب الإيمان باب اتباع الجنائز من الإيمان** په ضمن كښې راغلى دى.[2]

**ابوهريره:** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. ددوى حالات **كتاب الإيمان باب أمور الإيمان** كښې تيرشوى دى.[3]

**دمذكوره تعليق موصولاً تخريج:** حضرت مصنف رحمه الله دا روايت بخارى شريف كښې په دريومقاماتو باندې ذكركړې دې. په دې باب كښې، كتاب الوكالة كښې[4] او كتب فضائل القرآن كښې[5] چرته مختصر اوچرته مطول مگر په هر ځائې كښې په شكل د تعليق. دتحديث تصريح چرته هم نشته دې. هم ددې په رڼا كښې ابن العربى رحمه الله دې تعليق ته منقطع وئيلې دې. خو حافظ ابن حجر رحمه الله په تغليق التعليق كښې دا روايت په مختلف طرق سره ذكركړې دې. په كوم كښې چه يو طريق دهلال بن بشر صواف رحمه الله هم دې چه دحضرت مصنف رحمه الله په شيوخ كښې دې. «جزء القراءة خلف الإمام»[6] كښې دهغوى روايت موجود دې. په دې وجه حافظ رحمه الله فرمائى چه هيڅ لرې نه ده چه دا روايت باب هم امام

---

[1] عمدة القارى: ١٧١/١٥ فتح البارى: ٣٣٥/٦ إرشادالسارى: ٢٩٣/٥ شرح الكرمانى: ١٩٩/٣ الكنز المتوارى: ١٩٣/١٣ صحيح البخارى، طبع قديمى: ٦٤/١

[2] كشف البارى: ٥٣٥/٢-٥٢٢.

[3] كشف البارى: ٤٥٩/١.

[4] صحيح بخارى كتاب الوكالة باب إذا وكل رجلا فترك..... رقم: ٢٣١١.

[5] صحيح البخارى كتاب فضائل القرآن باب فضل سورة البقرة رقم: ٥٠١٠.

[6] جزء القراءة خلف الإمام ص: ٥ رقم: ١٥ المكتبة السلفية.

بخارى رحمه الله د هلال بن بشر رحمه الله نه اوريدلى وى دغه شان به د روايت انقطاع ختمه شى.[1]

بهرحال دا تعليق ابوذر رحمه الله په خپل طريق سره بل ابونعيم رحمه الله نسائى رحمه الله او اسماعيلى رحمه الله تولو په خپل طريق سره خپلو تاليفاتو كښې موصولاً ذكر كړې دې.[2] دې نه علاوه دا روايت امام بيهقى رحمه الله د امام حاكم رحمه الله په طريق سره دلائل كښې درج كړې دې.[3]

**دحديث خلاصه**: په دې تعليق كښې حضرت ابوهريره رضي الله عنه سره پېښېدونكې يوه مشهوره واقعه مختصراً ذكر كړې ده دكوم تفصيل چه كتاب الوكالة[4] كښې راغلې دې. يوسړې د صدقاتو مال پټولو دپاره راغلې وو كوم چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه نيولې وو اوهغه ته ئې دركه او زورنه وركړې وه چه زه به تا د حضورپاك په خدمت اقدس كښې پيش كړم. په كوم چه هغه حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته د آيت الكرسى د حفاظت والاعمل اوخودلو چه د شپې اوده كېدوپه وخت آيت الكرسى لوله بوره شپه به يو دالله تعالى ساتندونكې ستا حفاظت كوى او شيطان به درنيزدې كيدې هم نه شى. رسول الله ﷺ پوره واقعه اوريدو سره اوفرمائيل «صدقك، وهوكذوب، ذاك شيطان» چه سره ددروغژن كيدو تاته ريښتيا خبره خودلې. واقعې په آيت الكرسى كښې داخاصيت دې. راتلونكې سړې شيطان وو.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**: ددې تعليق ترجمة الباب سره مناسبت په دې جمله كښې دې «ذاك شيطان»[5] په دې سره د شيطان وجود ثابتيږى.

ددې باب اتم حديث هم دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث الثامن

٣١٠٢-حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَأْتِي الشَّيْطَانُ أَحَدَكُمْ فَيَقُولُ: مَنْ خَلَقَ كَذَا، مَنْ خَلَقَ كَذَا، حَتَّى يَقُولَ: مَنْ خَلَقَ رَبَّكَ؟ فَإِذَا بَلَغَهُ فَلْيَسْتَعِذْ بِاللَّهِ وَلْيَنْتَهِ"[6]

## تراجم رجال

**يحيى بن بكير**: دا يحيى بن عبدالله بن بكير مخزومى مصرى رحمه الله دې.

---

[1] تغليق التعليق: ٢٩٦/٣فتح البارى: ٤٨٨/٤-٤٨٧.

[2] حواله جات بالا والسنن الكبرى للنسائى: ٥٣٦/١كتاب عمل اليوم والليلة رقم: ٩٥٩، ٢٣٨/٦ رقم:١٠٧٩٥صحيح ابـن حزيمة: ١١٦٢/٢كتاب الزكاة باب الرخصة فى تاخير الإمام ..... رقم: ٢٤٢٤والدعوات الكبير للبيهقى: ٥٢١/١رقم: ٤٠٦.

[3] دلائل النبوة: ١٠٧/٧باب ماجاء فى الشيطان الذى أخذ من الزكاة..... وأيضاً للاستزادة انظر: عمدة القارى:١٤٥/١٠.

[4] صحيح البخارى كتاب الوكالة باب إذا وكل رجلا فترك..... رقم: ٢٣١١.

[5] عمدة القارى: ١٧١/١٥.

[6] قوله: قال أبوهريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب الإيمان باب بيـان الوسوسة فـى الإيمـان..... رقم: ٣٤٦-٣٤٣وأبوداؤد فى سننه كتاب السنة باب فى الجهمية رقم: ٤٧٢٢-٤٧٢١.

**الليث** دا ليث بن سعد فهمى بصرى رحمه الله دی.

**عقيل** دا عقيل بن خالد بن عقيل رحمه الله دی.[1]

**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دی. ددې څلورو وارو حضراتو محدثينو مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.[2]

**عروة بن الزبير**: داحضرت عروه بن زبير بن عوام مدنى رحمه الله دی. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى اوتفصيلى حالات كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې بيان كړې شوى دى.[3]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دی. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.[4]

**قوله:: قال أبوهريرة رضي الله عنه: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يأتي الشيطان أحدكم، فيقول: من خلق كذا؟ من خلق كذا؟**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چه شيطان تاسو كښې چاته راځى او وسوسه اچولوسره وائى چه فلانكې شئ چا پيدا كړې دې؟ او فلانكې شئ چا پيدا كړې دې؟ د مسلم شريف د يو طريق الفاظ دادى: «لايزال الناس يتساءلون حتى يقال: هذا خلق الله الخلق، فمن خلق الله؟»[5]

**قوله:: حتى يقول: من خلق ربك؟ فإذا بلغه فليستعذ بالله، ولينته**: تردې چه وائى ستاسو رب چا پيدا كړې دې؟ كله چه وسوسه دې درجې ته اورسى نو دالله تعالى پناه دې اوغواړى او منع دې شى.

**شيطاني وسوسې اود هغې علاج**: ددې حديث شريف مدعى او مقصود دادې چه شيطان د انسانانو ددهوكه كولود پاره مختلف طريقې استعمالوى. په كوم كښې چه يوه دا ده چه د سړى په ذهن كښې دا سوال راؤچتوى: زه چا پيدا كړم؟ جواب واضح دې چه الله. دغه شان په سوچ سوچ كښې ډير وړاندې اوځى. تردې چه دا سوال ئى په ذهن كښې په ټوپونو شى چه الله تعالى (نعوذبالله) چا پيدا كړې دې؟ تقريبا هريوبنده سره كيږى دا په اصل كښې شيطانى وسوسه ده په دې حديث كښې ددې علاج خودلې شوې دې چه كله هم داسې وى نودالله تعالى په پناه كښې راځه تعوذ لوله اومنع كيږه. نور ددې باره كښې سوچ مه كوه. علامه عينى رحمه الله د علامه مازرى رحمه الله په حواله سره ليكلى دى چه د خواطر اوخيالاتو دوه قسمونه دى: اول قسم كښې هغه خيالات داخل دى كوم ته چه قرار اوهميشه والې نه وى. ددې په نتيجه كښې څه لويه شبهه نه متاثر كوى. دحديث باب تعلق هم دې سره دې. هم ددغه نه د اعراض اوارخ كولو ونيلى شوى دى. هم په دې باندې د وسوسې اطلاق كيږى. په دويم قسم كښې

---

[1] ددې ټولو تفصيلى حالات كشف الباري كتاب العلم باب فضل العلم: ٣/٤٥٥ كښې تيرشوى دى.

[2] كشف البارى: ١/٣٢٦-٣٢٣.

[3] كشف البارى: ١/٢٩١، ٢/٤٣٦.

[4] كشف البارى: ١/٦٥٩.

[5] صحيح مسلم كتاب الإيمان باب بيان الوسوسة فى الإيمان رقم: ٣٤٣.

هغه خیالات داخل دی کوم ته چه قرار او همیشه والې حاصل وی چه د څه شك پیداوار وی ددې د لرې کولو دپاره د نظر او استدلال نه علاوه بل څه لار نه وی [۱] علامه طیبی رحمه الله فرمائی. مطلب دادې چه د دې فضول شك اوشبهاتو باره کښې سوچ کول ترك کړی او د شیطانی وسوسې نه دالله تعالی په پناه کښې راشی. خو که په دغه استعاذې سره هم فرق پرینوځی نو پاسه چرته په بل کار کښې مشغول شه دغه شان به ذهن بل طرف ته منتقل شی. حضورپاك د دې استعاذې او په دې وسوسو کښې د سوچ نه کولو حکم ورکړې. په دې باره کښې ئې د غور فکر اوتامل حکم نه دې ورکړې. ځکه چه په دې حساس موضوع باندې شیطان سره مناظره د هرسړی د طاقت کار نه دې. چرته یو لوئی عالم هغه سره د مناظره همت کولې شی. دعامو خلقو معامله بله ده. لهذا که هر سړې په دې کښې غور اوفکر کوی نوګمراه به شی. چنانچه د الله تعالی پناه اود هغه د طاقت د لټهون نه علاوه ددې بل څه حل اوعلاج نشته دې. هم الله تعالی ئې د دغه وسوسو نه بچ کولې شی. [۲] هم دې حدیث شریف کښې د أبوداؤد په طریق کښې دا اضافه هم نقل ده چه خپل ګس طرف ته درې خل اوتوکه او تعوذ اولوله [۳]

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې. [۴] چه په دې کښې د شیطان او دهغه د مختلف تصرفاتو ذکر دې

دباب نهم حدیث هم د ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحدیث التاسع

۳۱۰۳- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي أَنَسٍ، مَوْلَى التَّيْمِيِّينَ أَنَّ أَبَاهُ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ فُتِّحَتْ أَبْوَابُ الجَنَّةِ، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ جَهَنَّمَ وَسُلْسِلَتِ الشَّيَاطِينُ» [۵] [ر: ۱۸۰۰]

**ترجمه:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله د رمضان میاشت راځی نود جنت دروازې کولاوولې شی د جهنم دروازې بندولې شی او شیطانان په زنځیرونو کښې تړلې شی.

## تراجم رجال

① **یحیی بن بکیر** ② **لیث** ③ **عقیل** او ④ **ابن شهاب** رحمهم الله دپاره سابقه سند اوګورئی.

**ابن ابی انس:** دا ابوسهیل نافع بن مالك بن ابی عامر رحمه الله دې.

---

[۱] الکنزالمتواری: ۱۳/۱۹۴عمدة القاری: ۱۵/۱۷۲فتح الباری: ۶/۳٤۱.

[۲] شرح الطیبی: ۱/۲۰۲باب الوسوسة من کتاب الإیمان رقم: ۶۵الکنزالمتواری: ۱۳/۱۹۴عمدة القاری: ۱۵/۱۷۲ فتح الباری: ۶/۳٤۱ وقال الإمام الکرمانی رحمه الله: قوله: فلیستعذبالله: بالإعراض عن الشبهات الواهیة الشیطانیة ولیثبته بإثبات البراهین القطعیة الحقانیة علی أن لا خالق له بإبطال التسلسل ونحوه.... شرح الکرمانی: ۱۳/۲۰۰.

[۳] سنن أبی داؤد کتاب السنة باب فی الجهمیة رقم: ٤۷۲۲.

[۴] عمدة القاری: ۱۵/۱۷۲.

[۵] قوله: سمع أباهریرة رضی الله عنه: الحدیث، مرتخریجه کتاب الصوم باب هل یقال: رمضان أو شهر......؟

**اباه** دا مالك بن ابى عامر اصبحى رحمه الله دي. ددي دواړو بزرګانو حالات كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم په ضمن كښې بيان شوى دى.[1]

**ابوهريره** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[2]

**ترجمة الباب سره دَ حديث مطابقت** داحديث كتاب الصوم كښې تيرشوې دې[3] دلته دباب په مناسبت سره دوباره ذكركړې شوې دې كوم چه په دې جمله كښې دې: «وسلسلت الشياطين»[4] په دې سره د شيطان دهغه د اولاد اود هغه د لښكرو اثبات كيږى.

د باب لسم حديث د ابن عباس رضي الله عنهما دې.

## الحديث العاشر

٣١٠٣-حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا عَمْرٌو، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَالَ: حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ مُوسَى قَالَ لِفَتَاهُ: آتِنَا غَدَاءَنَا، (قَالَ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ)، وَلَمْ يَجِدْ مُوسَى النَّصَبَ حَتَّى جَاوَزَ الْمَكَانَ الَّذِي أَمَرَ اللَّهُ بِهِ"[5] [ر ٧٤]

## تراجم رجال

**الحميدي:** دا ابوبكر بن عبدالله بن زبير قرشى اسدى حميدى مكى رحمه الله دې. د دوى تذكره بدء الوحى اول حديث كښې تيره شوې ده.[6]

**سفيان:** دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى كښې او تفصيلى حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا..... لاندې بيان كړې شوى دى.[7]

**عمرو:** دا عمرو بن دينار جمحى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم كښې تيره شوې ده.[8]

---

[1] كشف البارى: ٢/٢٧٢-٢٧١.

[2] كشف البارى: ١/٤٥٩.

[3] كتاب الصوم باب هل يقال: رمضان أو شهر رمضان؟

[4] عمدة القارى: ١٥/١٧٢.

[5] قوله: قلت لابن عباس رضى الله عنهما: الحديث، مرتخريجه فى كتاب العلم باب ذهاب موسى عليه الصلاة والسلام فى البحر... كشف البارى: ٣/٣٢٩.

[6] كشف البارى: ١/٢٣٧.

[7] اوګورئ كشف البارى: ١/٢٣٨ الحديث الأول: ٣/١٠٢.

[8] كشف البارى: ٤/٣٠٩.

**سعيدبن جبير**: دا مشهور تابعي بزرګ حضرت سعيد بن جبير کوفي رحمه الله دې. ددوی مختصر ذکر بدء الوحي کښې او مفصل تذکره كتاب العلم باب السمر فی العلم په ضمن کښې راغلی.[1]

**ابن عباس**: دا مشهور صحابي حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. ددوی اجمالي ذکر بدء الوحي او تفصيلي ذکر كتاب الإيمان باب كفران العشير وكفر.... کښې تيرشوې دې.[2]

**ابي بن كعب** رضي الله عنه: دا مشهور انصاري صحابي حضرت ابي بن کعب بن قيس رضي الله عنه دې. ددوی حالات كتاب العلم باب ماذكر في ذهاب موسى... په ذيل کښې بيان کړې شوی دی.[3]

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما داحديث په کوم کښې چه د حضرت موسى عليه السلام اوحضرت خضر عليه السلام د ملاقات ذکر دې. په تفصيل سره كتاب العلم کښې تيرشوې دې.[4]

**ترجمة الباب سره دّحديث مناسبت**: د دې حديث مناسبت هم ترجمة الباب سره بالکل واضح دې کوم چه په دې جمله کښې دې: «وما أنسانيه إلا الشيطان».[5]

دباب يولسم حديث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دی.

## الحديث الحادي عشر

٣١٠٥- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشِيرُ إِلَى المَشْرِقِ فَقَالَ: «هَا إِنَّ الفِتْنَةَ هَا هُنَا، إِنَّ الفِتْنَةَ هَا هُنَا مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ».[6] [ر ٢٩٣٧]

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمه**: دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبي مدني رحمه الله دې. ددوی تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن په ذيل کښې تيرشوی دی.[7]

**مالک**: دا امام دارالهجرة امام مالک بن انس اصبحي مدني رحمه الله دې. ددوی اجمالي حالات بدء الوحي او تفصيلي حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان کړې شوی دی.[8]

**عبدالله بن دينار**: دا عبدالله بن دينار مولی ابن عمر رحمه الله دې

---

[1] کشف الباری: ۴۳۵/۱ الحدیث الرابع: ۴۱۸/۴.
[2] کشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[3] کشف الباری: ۳۳۷/۳.
[4] کشف الباری کتاب العلم: ۳۵۳/۳-۳۴۱.
[5] عمدة القاري: ۱۷۲/۱۵.
[6] قوله: عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما: الحديث، مرتخريجه في كتاب فرض الخمس، كشف البارى كتاب الخمس والجزية: ۱۲۳.
[7] کشف الباری: ۸۰/۲.
[8] کشف الباری: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

**ابن عمر:** دامشهور صحابى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. ددې دواړو تفصيلى حالات كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام على خمس... لاندې تيرشوى دى.[1]

دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دحديث دا مضمون د نورو صحابه كرام رضي الله عنهم نه هم نقل دي. ددې شرح هم په مختلف ځايونو كښې شوې ده. [2]په دې كښې د هاء كلمې استعمال حضورپاك دتنبيه په توګه كړې دې. دلته غالبا د حضورپاك اشاره د بصره طرف ته ده چه فارس (ايران) سره ملاؤ شوې دې. بصره پخپله هم د اعتزال مركز پاتې دې. چنانچه حضورپاك دمشرق طرف ته اشاره كولوسره اوفرمائيل چه دا د فتنې مركزدې. اود حضورپاك دا پيشنګوئى حرف په حرف پوره شوه. د تاريخ اسلام نه خبر حضراتو نه داخبره پټه نه ده چه دا علاقې هميشه د فتنې اوفساد مركز اومنبع پاتې دى.

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** په دې حديث كښې د شيطان دښكر ذكر راغلې دې چه د هغه ښكرې هم وى چنانچه مطابقت بالترجمه واضح دې.[3]

دباب دولسم حديث دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما دې.

## الحديث الثاني عشر

٣١٠٦- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا اسْتَجْنَحَ اللَّيْلُ، أَوْ قَالَ: جُنْحُ اللَّيْلِ، فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ [ص: ١٢٣]، فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ، فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنَ العِشَاءِ فَخَلُّوهُمْ، وَأَغْلِقْ بَابَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَأَطْفِئْ مِصْبَاحَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَأَوْكِ سِقَاءَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَخَمِّرْ إِنَاءَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، وَلَوْ تَعْرُضُ عَلَيْهِ شَيْئًا"[4] [٣١٢٨، ٣١٣٨، ٥٣٠٠، ٥٣٠١، ٥٩٣٧، ٥٩٣٨]

**ترجمه:** د حضرت جابر رضي الله عنه ددې حديث دا مضمون وړاندې هم راغلى او په اشربه كښې هم داحديث راغلې دې.[5] په دې وجه دلته صرف دحديث په ترجمه باندې اكتفاء كولې شى.

حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما روايت كوى چه حضورپاك فرمائيلى كله چه شپه خپلې متې كولاؤ كړى يا د شپې تياره خوره شى نوخپل بچى (د بهر وتلونه) منع كړئى ځكه چه دغه وخت شيطانان اخوا

---

[1] كشف البارى: ٦٣٧/١.

[2] عمدة القارى: ١٧٣/١٥إرشادالسارى: ٢٩٥/٥كشف البارى كتاب الخمس والجزيه: ١٣٢-١٢٤.

[3] عمدة القارى: ١٧٣/١٥.

[4] قوله: عن جابر رضى الله عنه: الحديث. أخرجه البخارى أيضاً، فى بدء الخلق باب خير مال المسلم غنم يتبع بها شعف الجبال رقم: ٣٣٠٤وفى باب خمس من الدواب فواسق يقتلن فى الحرم، رقم: ٣٣١٦وفى الأشربة باب تغطية الإناء رقم: ٥٦٢٤-٥٦٢٣ وفى الاستئذان باب لا تترك النار فى البيت عندالنوم رقم: ٦٢٩٥وباب إغلاق الأبواب بالليل رقم: ٦٢٩٦ومسلم رقم: ٥٢٥٢-٥٢٤٦وفى الأشربة باب الأمر بتغطية الإناء وإيكاء السقاء، وأبوداؤد رقم: ٣٧٣٤-٣٧٣١وفى الأدب باب فى أطفاء النار بالليل والترمذى فى الأطعمة باب ماجاء فى تخمير الإناء وإطفاء السراج والنار عندالمنام رقم: ١٨١٢وابن ماجه فى الأشربة باب تخمير الإناء رقم: ٣٤٥٣وفى الأدب باب إطفاء النار عندالمبيت رقم: ٣٨١٦.

[5] كشف البارى كتاب الاشربه: ٤٣٧باب تغط ية الإناء وكتاب بدء الخلق باب خير مال المسلم غنم.......وباب خمس من الدواب.

ديخوا خوريږى. كله چه د ماسخوتن څه وخت تير شى نوبيا ماشومان پريږدئى خپله دروازه بنده كړئى اود الله تعالى نوم واخلئى اوخپله ډيوه مړه كړئى اود الله تعالى نوم واخلئى اود مشكيزې خله بنده كړئى او د الله تعالى نوم واخلئى لوښى پټ كړئى اود الله تعالى نوم واخلئى......

## تراجم رجال

**يحيي بن جعفر**: دا ابوزكرياء يحيى بن جعفر ازدى بخارى بيكندى رحمه الله دى.[1]

**محمدبن عبدالله الانصاري**: دامحمد بن عبدالله بن مثنى بن عبدالله انصارى رحمه الله دى.[2]

**ابن جريج**: دا ابوالوليد عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج اموى رحمه الله دى. ددوى تذكره **كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها**... كښې راغلې.[3]

**عطاء**: دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح قرشى يمانى رحمه الله دى. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب عظة الإمام النساء**...كښې تيرشوى دى.[4]

**جابر**: دا مشهور صحابى رسول حضرت جابر بن عبدالله انصارى رضى الله عنه دى.[5]

**قوله: :ولوتعرض عليه شيئاً**: په پلنوالى كښې څه لرګې كيږدئى.

**د رواياتو اختلاف او په هغې كښې تطبيق**: تعرض كښې راء مهمله باندې ضمه اوكسره دواړه لوستلې شى. دباب كرم او ضرب دواړو نه مستعمل دې. ددې مصدر عرضا وعراضة دې. دكوم معنى چه ده يوڅيز په پلنوالى كښې كيخودل.[6]

په دې روايت كښې شيئا دې. خو په مسلم شريف كښې دحضرت ابوحميد ساعدى رضى الله عنه په حديث كښې عودا دى.[7] يعنى لرګې. چنانچه دواړه روايات راجمع كولوسره دا مطلب حاصل شو چه د خوراك څښاك لوښى د سر يا كپړې وغيره په ذريعه سره د اوده كيدو په وخت پټ ساتئى دې دپاره چه د شيطانانو نه د ګندګئى نه د چينجو وغيره نه په حفاظت كښې وى. اوكه د پټولو دپاره څه څيز ملاؤ نه شى نو كم نه كم د كولاؤ لوښى په خله باندې په پلنوالى كښې څه لرګې كيږدئى.

علامه عينى رحمه الله ليكلى دى:

«ومعناه: إن لم تقدر أن تغطى فلا أقل من أن تعرض عليه عودا، أي تعرضه عليه بالعرض، وتمده عليه عرضا أي خلاف

---

[1]) د دوى د حالاتودپاره اوګورئى كتاب صلاة الخوف باب الصلاة عند مناهضة الحصون ولقاء....

[2]) د دوى د حالاتودپاره اوګورئى كتاب الاستسقاء باب سؤال الناس الامام..... رقم ١٠١٠.

[3]) كشف البارى كتاب الحيض: ٢٠٤.

[4]) كشف البارى: ٣٧/٤.

[5]) كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين إلا من القبل والدبر.

[6]) القاموس الوحيد مادة: عرض. والنهاية فى غريب الحديث: ١٩٤/٣ باب العين مع الراء مادة: عرض.

[7]) قال أبوحميد الساعدى رضى الله عنه: أتيت النبى صلى الله عليه وسلم بقدح لبن من النقيع، ليس مخمرا، قال: ألا خمرته؟ ولو تعرض عليه عودا. صحيح مسلم كتاب الأشربه باب فى شرب النبيذ وتخمير الإناء رقم: ٢٠١٠.

الطول....،وهذا مطلق فى الآنية التى فيها شراب أو طعام»[1]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دحديث مناسبت په دې جمله كښې دې «فإن الشياطين تنتشر حينئذٍ»[2] په دې كښې د شيطان د وجود اود هغه د اولاد اثبات دې

دباب ديارلسم حديث د ام المؤمنين حضرت صفيه رضي الله عنها دې.

## الحديث الثالث عشر

٣١٠٧- حَدَّثَنِي مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعْتَكِفًا فَأَتَيْتُهُ أَزُورُهُ لَيْلًا، فَحَدَّثْتُهُ ثُمَّ قُمْتُ فَانْقَلَبْتُ، فَقَامَ مَعِي لِيَقْلِبَنِي، وَكَانَ مَسْكَنُهَا فِي دَارِ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، فَمَرَّ رَجُلَانِ مِنَ الأَنْصَارِ، فَلَمَّا رَأَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْرَعَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَى رِسْلِكُمَا إِنَّهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ» فَقَالَا سُبْحَانَ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ، وَإِنِّي خَشِيتُ أَنْ يَقْذِفَ فِي قُلُوبِكُمَا سُوءًا، أَوْ قَالَ: شَيْئًا"[3]-[ر ١٩٣٠]

## تراجم رجال

**محمودبن غيلان:** دا محمود بن غيلان مروزى رحمه الله دې.[4]

**عبدالرازق:** دا امام عبدالرازق بن همام بن نافع يمانى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب حسن إسلام المرء تركه مالا يعنيه په ضمن كښې راغلى دى.[5]

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره بدء الوحى اوكتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده.[6]

**الزهري:** دامحمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. ددوى مختصر تذكره بدء الوحى په دريم حديث كښې اوتفصيلى كتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته كښې راغلې ده.[7]

**علي بن الحسين:** دا امام زين العابدين حضرت على بن الحسين رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه كښې تيرشوى دى.[1]

---

[1]) عمدة القارى: ١٧٤/١٥ وكذا انظر الكنز المتوارى: ١٩٧/١٣ وإرشاد السارى: ٢٩٦/٥ وأعلام الحديث للخطابى: ١٥١٥/٣.

[2]) عمدة القارى: ١٧٣/١٥.

[3]) قوله: عن صفية بنت حيى: الحديث، مر تخريجه فى كتاب الاعتكاف باب هل يخرج المعتكف لحوائجه إلى.....؟

[4]) ددوى د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلوة باب النوم قبل العشاء.....

[5]) كشف البارى: ٤٢١/٢.

[6]) كشف البارى: ٤٦٥/١، ٣٢١/٤.

[7]) كشف البارى: ٣٢٦/١ الحديث الثالث كتاب الغسل: ١٩٤.

**صفيه بنت حيي:** دا ام المؤمنين حضرت صفيه بنت حيي بن اخطب رضي الله عنها ده. د دې تفصيلي حالات كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الإفاضة لاندې ذكركړې شوي دي.[2]

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** د حضرت صفيه رضي الله عنها داحديث كتاب الاعتكاف وغيره كښې تيرشوى دې.[3] دلته د باب مناسبت سره بيا ذكركړې شوې دې. د كوم چه ترجمه سره مطابقت په دې جمله كښې دې: ((إن الشيطان يجري من الإنسان مجري الدم))[4] دا چه شيطان په انسان كښې د وينې په شان دننه ګردش كوى كوم چه دهغه يوخاص صفت دې.[5]

**انبياء كرام سره بدګماني دهلاكت موجب ده:** امت سره د رسول الله ﷺ چه كومه مينه وه. اوكوم شفقت وو په هغې باندې داحديث ښه دلالت كوى. حضورپاك ته دا خطره پيدا شوه چه چرته شيطان ددې دواړو صحابه كرامو په زړه كښې بدګماني پيدا نه كړى دغه شان به هغوى د هلاكت خلې ته اورسيږى نو صورت حال ئې واضح كړو چه دا ماسره حضرت صفيه رضي الله عنها ده. خكه چه انبياء كرام سره بدګماني كفر دې كومه چه د هلاكت اوتباهئ موجب ده.[6]

دباب څوارلسم حديث دحضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه دې.

## الحديث الرابع عشر

٣١٠٨-حَدَّثَنَا عَبْدَانُ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ، قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجُلاَنِ يَسْتَبَّانِ، فَأَحَدُهُمَا احْمَرَّ وَجْهُهُ، وَانْتَفَخَتْ أَوْدَاجُهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا ذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ، لَوْ قَالَ: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ، ذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ" فَقَالُوا لَهُ: إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: تَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَقَالَ: وَهَلْ بِي جُنُونٌ[7] [٥٧٠١، ٥٧٦٤]

**ترجمه:** حضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه فرمائي چه زه نبي كريم ﷺ سره ناست ووم اودوو كسانو په خپلو كښې كنځلې بدې ردې كولې. په دوى كښې د يومخ د جذبات نه سور شو اود سټ رګونه ئې

---

[1] كشف البارى كتاب الغسل: ٢٧٨.

[2] كشف البارى كتاب الحيض: ٥٩١.

[3] صحيح البخارى كتاب الاعتكاف باب هل يخرج المعتكف لحوائجه.... كشف البارى كتاب الخمس والجزية: ١٢٠-١١٩باب ماجاء فى بيوت أزواج......

[4] عمدة القارى: ١٧٤/١٥.

[5] قال البدر العينى فى العمدة: ١٧٥/١٥ فى شرح هذه الجملة: قيل: هوعلى ظاهره، إن الله جعل له قوة وقدرة على الجرى فى باطن الإنسان مجرى الدم، وقيل: استعارة لكثرة وسوسته، فكأنه لا يفارقه كما لا يفارق دمه، وقيل: إنه يلقى وسوسته فى مسام لطيفة من البدن، بحيث يصل إلى القلب.

[6] عمدة القارى: ١٧٥/١٥.

[7] قوله: عن سليمان بن صرد رضى الله عنه: الحديث، رواه البخارى أيضاً فى الأدب باب الحذر من الغضب رقم: ٦٠٤٨ وباب ماينهى من السباب واللعن رقم: ٦١١٥ورواه مسلم رقم: ٦٦٤٨-٦٦٤٦فى البر والصلة باب فضل من يملك نفسه عند الغضب وأبوداؤد رقم: ٤٧٨١فى الأدب باب مايقال عند الغضب.

اوپرسیدل. حضورپاك اوفرمائیل چه زه یوه خبره باندې پوهیږم که چرې دې هغه اووائی نودده داغصه به ختمه شی اوجذبات به ئې یخ شی. که چرې دې اعوذبالله من الشیطان الرجیم اولولی نودده غصه به ختمه شی. خلقو دحضورپاك دا ارشاد دهغه سړی په وړاندې پیش کړو نوهغه د جاهلانو په اندازکښې اووئیل ولې زه لیونې یم څه؟

ددې حدیث شرح کتاب الادب کښې راغلې ده. (١)

## تراجم رجال

**عبدان:** داعبدان بن عثمان بن جبله مروزی دې. ددوی مختصر تذکره بدء الوحی کښې راغلې ده. (٢)

**ابوحمزه:** دا ابوحمزه محمدبن میمون سکری مروزی رحمه الله دې. (٣)

**الاعمش:** دامشهورمحدث ابومحمدسلیمان بن مهران اسدی الاعمش رحمه الله دې. ددوی حالات «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیرشوی دی. (٤)

**عدي بن ثابت:** دا مشهور تابعی حضرت عدی بن ثابت انصاری کوفی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة لاندې راغلې ده. (٥)

**سلیمان بن صرد:** دا صحابی رسول حضرت سلیمان بن صرد رضی الله عنه دې. ددوی تذکره تفصیلاً کتاب الغسل باب من أفاض علی رأسه ثلاثاً په ذیل کښې تیره شوې ده. (٦)

**ترجمة الباب سره دَحدیث مناسبت:** دحدیث مناسبت ترجمة الباب سره واضح دې. (٧) په کوم کښې چه غصه شیطانی اثر خودلې شوې دې اوددې علاج ئې اعوذ بالله خودلې دې.

**د غصې ختمولو دپاره دَ استعاذه افادیت:** حقیقت دادې چه څنګه شیطانی اثرات ختمولودپاره استعاذه مفید ده دغه شان د غصې دَ ختمولودپاره استعاذه مفید ده. کله چه سړی له غصه راځی نو شیطان هغه وخت نور افسوس کوی اودا غواړی چه د ده غصه د اعتدال دحد نه اوځی. اودا سړې د شریعت د حدود نه بهر شی. نو په دې کښې استعاذه مفید وی.

بل دحضرت عطیه سعدی رضی الله عنه نه یوحدیث نقل دې: «الغضب من الشیطان، فإن الشیطان خلق من النار، وإنما تطفأ النار بالماء، فإذا غضب أحدکم فلیتوضأ» یعنی غصه د شیطان دطرف نه وی اودهغه پیدائش د اور نه دې او اور په اوبو سره مړ کولې شی. په دې وجه چه په تاسو کښې چاته غصه درشی نو اودس دې کوی. دباب پنځلسم حدیث د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې.

---

(١) کشف الباری کتاب الادب: ٤٢٧باب ماینهی من السباب واللعان.

(٢) کشف الباری: ٤٦١/١.

(٣) دَدوی دَحالات دَ پاره اوګورئی کتاب الغسل باب نفض الیدین من الغسل عند الجنابة.

(٤) اوګورئی: کشف الباری: ٢٥١/٢.

(٥) کشف الباری: ٧٤٥/٢.

(٦) کشف الباری کتاب الغسل: ٣٣٠.

(٧) عمدة القاری: ١٧٥/١٥.

## الحديث الخامس عشر

۳۱۰۹-حَدَّثَنَا آدَمُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: "لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ قَالَ: جَنِّبْنِي الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنِي، فَإِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ، وَلَمْ يُسَلَّطْ عَلَيْهِ" قَالَ: وَحَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مِثْلَهُ [۱]

## تراجم رجال

**ادم**: دا آدم بن اياس ابوالحسن عبدالرحمن عسقلانی رحمه الله دي.

**شعبه**: دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو حالات **کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده** لاندې ذکرکړې شوې دی. [۲]

**منصور**: دامنصور بن معتمر سلمی ابوعتاب کوفی رحمه الله دي. د دوي تفصیلی تذکره **کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أیاما معلومة** لاندې تیره شوې ده. [۳]

**سالم بن ابي الجعد**: دا سالم بن ابی الجعد رافع غطفانی کوفی رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات **کتاب الوضوء باب التسمیة علی کل حال....** په ضمن کښې بیان شوی دی. [۴]

**کريب**: دا مولی ابن عباس کریب بن ابی مسلم هاشمی مدنی رحمه الله دي. ددوی تذکره **کتاب الوضوء باب التخفیف فی الوضوء** کښې تیره شوې ده. [۵]

**ابن عباس** رضي الله عنهما: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. د دوی اجمالی تذکره بدء الوحي اوتفصیلی **کتاب الإیمان باب کفران العشیروکفر...** کښې شوې ده. [۶] داحدیث هم په دې باب کښې اوس تیرشوې دې. هلته دامام بخاری رحمه الله شیخ موسی بن اسماعیل تبوذکی رحمه الله وو. بل کتاب الوضوء کښې ددې شرح تیره شوې ده. [۷] دحدیث مناسبت بالباب هم واضح دې.

**قوله: قال: وحدثنا الأعمش.....**: دقال قائل حضرت شعبه رحمه الله دي اوددې عبارت مقصد دا بیانول دی چه په دې روایت کښې د حضرت شعبه دوه شیخان دی. یو منصور رحمه الله او دویم اعمش رحمه الله یعنی سلیمان بن مهران رحمه الله. [۸]

---

[۱] قوله: عن ابن عباس رضی الله عنهما: الحدیث مر تخریجه آنفا.

[۲] کشف الباری: ۱/٦٧٨.

[۳] کشف الباری: ۳/۲۷۰-۲٦٦.

[۴] کشف الباری: ۵/۲۳۷.

[۵] کشف الباری: ۵/۱۵٤.

[۶] کشف الباری: ۱/٤۳۵و۲/۲۰۵.

[۷] کشف الباری: کتاب الوضوء: ۵/۲٤٤-۲۳٦باب التسمیة علی کل حال وعندالوقاع.

[۸] عمدة القاري: ۱۵/۱۷۵فتح الباري: ٦/۳٤۲وشرح القسطلاني: ۵/۲۹۷.

د باب شپاړلسم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دی.

## الحديث السادس عشر

۳۱۱۰- حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ صَلَّى صَلاَةً، فَقَالَ «إِنَّ الشَّيْطَانَ عَرَضَ لِي، فَشَدَّ عَلَيَّ يَقْطَعُ الصَّلاَةَ عَلَيَّ فَأَمْكَنَنِي اللَّهُ مِنْهُ، فَذَكَرَهُ» [1] [ر ٤٤٩]

## تراجم رجال

**محمود:** دامحمود بن غيلان مروزی رحمه الله دی. [2]

**شبابة:** دا شبابة بن سوار مروزی فزاری رحمه الله دی. ددوی تفصيلی حالات **كتاب الحيض باب الصلاة على النفساء....** كښې تيرشوی دی [3]

**شعبه:** دا اميرالمؤمنين فی الحديث شعبه بن حجاج عتكی رحمه الله دی. ددې دواړو حضراتو حالات **كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده** لاندې ذكر كړې شوې دی. [4]

**محمدبن زياد:** دا ابوالحارث محمدبن زياد جمحی مدنی رحمه الله دی. [5]

**ابوهريره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهريره رضي الله عنه دی. ددوی حالات **كتاب الايمان باب أمور الايمان** كښې تيرشوی دی. [6] داحديث هم په دې سند سره كتاب العمل في الصلاة كښې تيرشوې دې. [7]

**ايا جنات دهغوي په خپل اصل شكل كښې ليدل ممكن دی؟** علامه بيهقی رحمه الله په خپل سند سره دامام شافعی رحمه الله نه نقل كړی دی چه كوم سړې دا دعوی اوكړی چه هغه جنات ليدلی دی يا هغه ته هغه خلق ښكاری نومونږ به د داسې سړی ګواهی باطل اومردود ګرځوو. ځكه چه هغه دروغژن دې اوكه يونبی دا خبره اوكړی نو صحيح ده. [8]

حافظ صاحب رحمه الله فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله دا ارشاد مبارك په هغه صورت باندې محمول دې چه كله يو سړې دا دعوی اوكړی چه هغه جنات دهغوی په خپل اصل شكل اوصورت سره ليدلی دی يعنی هغه شكل په كوم كښې چه دهغوی تخليق شوې دې. او كه څوك دا دعوی اوكړی چه هغه يو جن د فلانكی حيوان (يا انسان) په شكل كښې ليدلې دې نو په دې كښې هيڅ قباحت نشته دې. چنانچه په دې معامله كښې روايات او آثار دتواتر درجې ته رسيدلې دی چه جنات خپل شكلونه او صورتونه

---

[1] قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب الصلاة باب الأسير أو الغريم يربط فی المسجد.

[2] ددوی حالات دپاره اوګورئی كتاب مواقيت الصلاة باب النوم قبل العشاء.

[3] كشف الباری: ۶۲۲.

[4] كشف الباری: ۶۷۸/۱.

[5] ددوی حالات دپاره اوګورئی كتاب الوضوء باب غسل الاعقاب.

[6] كشف الباری: ۶۵۹/۱.

[7] صحيح البخاری كتاب العمل فی الصلاة باب مايجوز من العمل فی الصلاة رقم: ۱۲۱۰.

[8] فتح الباری: ۳۴۵/۶ وآكام المرجان: ۳۴ الباب السادس فی بيان تطون الجن، فصل ثان.

بدلولې شي. (١)

**د جنات مختلف شكلونو اختيارولوحقيقت**: بياپه دې كښې دعلماء علم كلام (٢) اختلاف پيدا شوې دې چه جنات چه نورو ځناورو وغيره په شكل كښې ښكارى ددې څه حقيقت دې؟

① بعض حضرات فرمائى چه دا صرف تخيل دې په حقيقت كښې ددې هيڅ اعتبار نشته دې ځكه چه هيڅ يو سرې خپل صورت اصليه نه منتقل كيدې نه شى.

② دبعض نور حضراتو موقف دې چه جنات دخپل اصلى صورت نه منتقل كيدې شى داسې په حقيقت كښې كيږى مګر په خپل اختيار سره نه بلكه څه عمل هغوى سره وى كله چه هغه كوى نو په بل شكل كښې وربدليږى لكه جادو (سحر) كښې چه كيږى.

خو په دواړو اقوالو كښې څه زيات فرق نشته دې ځكه چه د نورو حضراتو د موقف مآل هم هغه دې د كوم دعوى چه اول فريق كړې ده. ځكه چه په سحر كښې هم عموماً هم تخيل كارفرما وى. په دې مسئله كښې د حضرت عمر رضي الله عنه نه يواثر هم نقل دې كوم چه امام ابن ابى شيبه په صحيح سند سره روايت كړې دې. يسير بن عمرو تابعى رحمه الله فرمائى: «ذكرت الغيلان عند عمر، فقال: إنه ليس من شيء يستطيع أن يتغير عن خلق الله الذي خلقه، ولكن لهم سحرة كسحرتكم، فإذا رأيتم من ذلك شيئاً فأذنوا. [اللفظ لابن أبي شيبة]» (٣)

يعنى ما دحضرت عمر رضي الله عنه په وړاندې غول (بهوت) (١) ذكراوكړو نوهغوى رضي الله عنه اوفرمائيل چه هيڅ يو شئ خپل هغه شكل نه شى بدلولې په كوم چه الله تعالى هغه پيدا كړې وى البته دهغوى هم جادوګر وى لكه چه ستاسو دى. نوچه كله تاسو خلق هغوى اووينئى نو اذان كوئى (په كوم سره چه به هغوى

---

(١) قال الإمام بدر الدين الشبلي رحمه الله: لا شك أن الجن يطورون ويتشكلون في صور الإنس والبهائم، فيتصورون في صور الحيات والعقارب، وفي صور الإبل والبقر والغنم والخيل والبغال والحمير، وفي صور الطير، وفي صور بني آدم. كما أتى الشيطان قريشاً في صورة سراقة بن مالك بن جعشم، لما أراد الخروج إلى بدر، قال الله تعالى: ﴿وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَكُمْ فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَى عَقِبَيْهِ وَقَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكُمْ إِنِّي أَرَى مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾[الأنفال: ٤٨] وكما روى أنه تصور في شيخ نجدي لما اجتمعوا بدار الندوة للتشاور في أمر الرسول صلى الله عليه وسلم، هل يقتلوه أو يحبسوه أو يخرجوه، كما قال الله تعالى ﴿وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللَّهُ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ﴾ [الأنفال: ٣٠] آكام المرجان: ٣٢الباب السادس، في بيان تطور الجن......"

(٢) قال القاضي أبويعلى بن الفراء رحمه الله: ولا قدرة للشيطان على تغيير خلقهم، والانتقال في الصور، وإنما يجوز أن يعلمهم الله تعالى كلمات وضربا من ضروب الأفعال إذا فعله وتكلم به نقله الله تعالى في صورة إلى صورة، فيقال: إنه قادر على التصوير والتخييل على معنى أنه قادر على قول إذا قاله وفعله نقله الله تعالى عن صورته إلى صورة أخرى بجري العادة، وأما أنه يصور نفسه فذلك محال، لأن انتقالها عن صورة إلى صورة أنما يكون بنقض البنية وتفريق الأجزاء، وإذا نقضت بطلت الحياة واستحال وقوع الفعل من الجملة، وكيف تنقل نفسها، والقول في تشكيل الملائكة مثل ذلك.

قال: والذي روى أن إبليس تصور في صورة سراقة بن مالك، وأن جبرايل تمثل في صورة دحية، وقوله تعالى ﴿فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا﴾ [مريم:١٧] محمول على ما ذكرنا، وهو أنه أقدره الله تعالى على قول قاله، فنقله الله تعالى في صورته إلى صورة أخرى" [آكام المرجان ٣٣-٣٢الباب السادس، وعمدة القاري: ١٥/ ١٨٣].

(٣) المصنف لابن أبي شيبة: ١٥/ ٣٥٦-٣٦٦كتاب الدعاء باب الغيلان إذا رئيت ما يقول الرجل، رقم: ٣٠٣٦١وآكام المرجان: ٣٣، وفتح الباري ٦/ ٣٤٤ النهاية ٣/ ٣٥٥باب الغين مع الواو، مادة الغول.

تختی).
**ترجمة الباب سره دَحدیث مطابقت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت «إن الشیطان عرض لی» کښې دې: ددې نه لګه چه د شیطان وجود ثابتیږی. دغه شان د هغه مختلف تصرفات اوصفات هم ثابتیږی. والله اعلم
د باب اوولسم حدیث دحضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحدیث السابع عشر

۳۱۱۱- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا نُودِيَ بِالصَّلاَةِ أَدْبَرَ الشَّيْطَانُ وَلَهُ ضُرَاطٌ، فَإِذَا قُضِيَ أَقْبَلَ، فَإِذَا ثُوِّبَ بِهَا أَدْبَرَ، فَإِذَا قُضِيَ أَقْبَلَ، حَتَّى يَخْطِرَ بَيْنَ الإِنْسَانِ وَقَلْبِهِ، فَيَقُولُ: اذْكُرْ كَذَا وَكَذَا، حَتَّى لاَ يَدْرِيَ أَثَلاَثًا صَلَّى أَمْ أَرْبَعًا، فَإِذَا لَمْ يَدْرِ ثَلاَثًا صَلَّى أَوْ أَرْبَعًا، سَجَدَ سَجْدَتَيِ [ص: ۱۲۵] السَّهْوِ" (۲)-[ر ۵۸۳]

## تراجم رجال

**محمدبن یوسف:** دا محمدبن یوسف بن واقد فریابی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی تذکره کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم..... په ضمن کښې تیره شوې ده. (۳)
**الاوزاعي:** دا ابوعمر عبدالرحمن بن عمرو اوزاعی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم کښې بیان کړې شوی دی. (۴)
**یحیي بن ابي کثیر:** دا یحیی بن ابی کثیر طائی یمانی رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب کتابة العلم کښې راغلی دی. (۵)
**ابوسلمه بن عبدالرحمن:** دا مشهور تابعی حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف مدنی رحمه الله دې ددوی مفصل حالات کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابا من الایمان کښې راغلی دی. (۶)

---

(۱) الغول – بضم الغین المعجمة – جن بهوت (په مختلف شکلونو کښې ښکاره کیدونکی). غول بیابانی د عربود نظریه مطابق د شیطانانو یوقسم چه په بیابان کښې په مختلف شکلونوسره راځي اوخلق دهوکه کوی یا هلاک کوی. القاموس الوحید: ۱۱۹۱، مادة. غ، و، ل.
(۲) قوله: عن أبی هریرة رضی الله عنه: الحدیث، مرتخریجه کتاب الاذان باب فضل التأذین.
(۳) کشف الباری: ۲۵۲/۳.
(۴) کشف الباری: ۴۰۸/۳.
(۵) کشف الباری: ۲۶۷/۴.
(۶) کشف الباری: ۳۲۳/۲.

**ابوهريره:** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى. (١)

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** دابوهريره رضي الله عنه ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چه په دې كښې د شيطان په نفس انسانى كښې دمونځ په وخت د وسوسې اچولو ذكر دې ابليس بنده په اخوا ديخوا خيالاتو كښې اخته كوى تردې چه بنده د مانځه ركعتونه هير كړى.
داحديث د سجده سهو په بيان كښې تيرشوى دى. (٢)
دباب اتلسم حديث هم دابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث الثامن عشر

٣٢١٣- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ «كُلُّ بَنِي آدَمَ يَطْعُنُ الشَّيْطَانُ فِي جَنْبَيْهِ بِإِصْبَعِهِ حِينَ يُولَدُ غَيْرَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ، ذَهَبَ يَطْعُنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ» (٣)[٣٢٤٨، ٤٢٧٤]

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان الحكم بن نافع مصرى رحمه الله دې.

**شعيب:** دا شعيب بن ابى حمزه قرشى اموى رحمه الله دې. ددې دواړوحضراتو مختصر حالات بدء الوحى الحديث السادس كښې راغلى دى. (٤)

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا مشهومحدث عبدالرحمن بن هرمز قرشى رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذكره كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان كښې راغلې ده. (٥)

**ابوهريره** رضي الله عنه: د صحابى رسول ابوهريره رضي الله عنه حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تير شوى دى. (٦)

**قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال النبي صلى الله عليه وسلم: كل بني آدم يطعن الشيطان في جنبيه بإصبعه حين يولد:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك

---

(١) كشف البارى: ١/٦٥٩

(٢) صحيح البخارى كتاب السهو باب إذا لم يدر كم صلى: ثلاثا أو أربعا....؟

(٣) قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، رواه البخارى كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ رقم: ٣٤٣١ وكتاب التفسير تفسير سورة آل عمران باب قول الله تعالى ﴿وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ رقم: ٤٥٤٨ ومسلم كتاب الفضائل باب فضل عيسى عليه السلام رقم: ٦١٣٥-٦١٣٣ وكتاب القدر باب معنى كل مولود يولد على الفطرة.... "رقم: ٢٧٦١-٢٧٥٥.

(٤) كشف البارى: ١/٤٨٠-٤٧٩.

(٥) كشف البارى: ٢/١١-١٠.

(٦) كشف البارى: ١/٦٥٩

فرمائيلي دي هر انسان چه كله پيدا كيږي نوشيطان د هغه په دواړو اړخونو كښې په خپلو ګوتو سره نوكارې لګوي.

**دحديث لغوي اوصرفي تحليل: طعن**: دباب نصر اوفتح دواړو نه مستعمل دې ددې معنى نه سكونډاري لګول نوكارې لګول عزت باندې داغ لګول وغيره. (۱)

**جنبيه**: د صيغه تثنيه سره صرف د ابوذر رحمه الله اوجرجاني رحمه الله په روايت كښې دې. خو اكثر حضراتو جنبه مفرد نقل كړې دې. قاضي عياض رحمه الله ليكلي دي هغه سره چه كومه نسخه موجود ده اود اصيلي په روايت سره ده په دغې كښې جنيه دې. يعنى د باء موحده په ځاني ياء مثناة ده. داتصحيف دې پخپله قاضي رحمه الله ددې تصريح كړې ده. (۲)

**باصبعه**: كښې هم دوه روايتونه دي اكثر مفرد روايت كړې دې. خو ابوذر رحمه الله اوجرجاني رحمه الله تثنيه سره يعني ګوته. (۳)

**قوله: غير عيسى ابن مريم، ذهب ليطعن، فطعن في الحجاب**: سواد حضرت عيسى بن مريم عليه السلام هلته هم هغه د نوكارې لګولوپاره تلې وو مګر د جنين په پرده باندې اولګولې شوه. د حجاب نه مراد د ابن جوزي رحمه الله په قول مشيمه ده. يعنى هغه جهلئى په كوم كښې چه بچې د مور په رحم كښې انغښتې شوې وى اود پيداكيدو په وخت بچى سره راوځى. (۴)

**دحديث شريف شرح**: دلته داخودلې شوې دى چه شيطان دخپل عادت موافق حضرت عيسى عليه السلام باندې هم سكونډاره لګولو له تلې وو ليكن په حجاب كښې دهغه د نوكارې لګولو اثر اونه شو. په دې روايت كښې صرف د حضرت عيسى عليه السلام استثناء كړې شوې ده ليكن په نيزدې صفحه باندې روايت راځي هلته د «غير مريم وابنها» الفاظ راغلي دى چه په دې استثناء كښې دحضرت عيسى عليه السلام مور حضرت بى بى مريم رضي الله عنها هم داخل ده. (۵)

**د عيسى عليه السلام او مريم رضي الله عنها فضيلت**: په دې حديث سره د عيسى عليه السلام او مريم رضي الله عنها فضيلت معلوميږي علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه شيطان په حضرت مريم عليها السلام باندې هم خپل تسلط كينولو كوشش كړې وو مګر دهغې مور بى بى حضرت حنه دمقبول دعا په بركت سره هغه محفوظ پاتې شوه. قرآن كريم كښې راغلي دى ﴿وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ﴾ (۶) چه اې ربه زه دا مريم او ددې اولاد د شيطان مردود نه ستا په پناه كښې وركوم. (۷)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۷۶/۱۵ولسان العرب مادة: طعن.

(۲) عمدة القاري: ۱۷۶/۱۵وفتح الباري: ۳۴۲/۶.

(۳) عمدة القاري: ۱۷۶/۱۵.

(۴) كشف المشكل من حديث الصحيحين: ۳۲۵/۳ رقم: ۲۷۱۵مسند أبي هريرة وعمدة القاري: ۱۷۶/۱۵والتوضيح: ۲۱۰/۱۹ والقاموس الوحيد: ۹۰۵مادة: شيم. يوقول دا دې چه دې نه هغه كېړه مراد ده كوم كښې چه نوې راپيدا شوې ماشوم انغښتلې شي عمدة القاري: ۱۷۶/۱۵.

(۵) صحيح البخاري: ۴۸۸/۱قديمى كتاب أحاديث الأنبياء باب قوله الله تعالى ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَٰبِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ رقم: ۳۴۳۱.

(۶) سورة آل عمران: ۳۶.

(۷) المفهم: ۱۷۷/۲والتوضيح: ۲۱۰/۱۹.

**د نن نه د بتانود عبادت نه نااميده شئي:** امام عبدالرزاق رحمه الله په خپل تفسير كښې په سند متصل سره د وهب بن منبه رحمه الله نه نقل كړې دى چه كله د عيسى عليه السلام ښكلې پيدائش اوشو نوشيطانان ابليس له راغلل اوونې ونيل ټول بتان پرمخې پراته دى. دې اوريدو سره ابليس اوونيل ضرور څه نوې خبره پيښه شوې ده. تاسو ټول په خپل خپل ځائې كيننئ زه ګورم راځم بيا هغه والوتو اود زمكې دواړو سرونو مشرق اومغرب ته لاړو مګر هيڅ ورته ملاؤ نه شو بيا سمندرونوته لاړو خو هلته ورته هم څه لاز معلومه نه شوه. بيا والوتو چه وئې كتل نوعيسى عليه السلام پيدا شوې وو اوملائكو هغه په خپل حفاظتي تحويل كښې اخستې وو. نو په نااميدئې سره خپل بچو له راغلو او ورته ئې اوونيل د شپې يو نبي پيدا شوې دې ترننه پورې داسې نه دى شوى چه يوه ښځه حامله شوې وى يا يوې ښځې بچې راوړې وى اوزه هلته موجود نه يم. مګر دا ښځه (حضرت مريم رضي الله عنها). د نن نه په دې ښار كښې د بتانو د عبادت نه نااميده شئى. (۱)ددې حديث نوره شرح به ان شاء الله كتاب احاديث الأنبياء كښې راځى.

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې. په دې حديث كښې هم د شيطان اودهغه د مختلف تصرفات ذكر دې.

دباب نورلسم حديث دحضرت ابوالدرداء رضي الله عنه دې.

## الحديث التاسع عشر

۳۱۳-حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَدِمْتُ الشَّأْمَ، فَقُلْتُ: مَنْ هَاهُنَا؟ قَالُوا أَبُو الدَّرْدَاءِ، قَالَ: «أَفِيكُمُ الَّذِي أَجَارَهُ اللَّهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟» حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُغِيرَةَ، وَقَالَ: الَّذِي أَجَارَهُ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي عَمَّارًا (۲)[۳۵۳۲، ۳۵۳۳، ۳۵۵۰، ۵۹۲۲]

## تراجم رجال

**مالک بن اسماعيل:** دا مالک بن اسماعيل بن زياد نهدى كوفى رحمه الله دې (۳)

**اسرائيل:** دا ابويوسف اسرائيل بن يونس بن سبيعى همدانى كوفى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم

---

(۱) تفسير عبدالرزاق: ۱۲۶/۱التوضيح: ۲۱۰/۱۹ عمدة القارى: ۱۷۶/۱۵واحياء علوم الدين:۹۴۷ كتاب شرح عجائب القلب، ربع المهلكات.

(۲) قوله أبوالدرداء رضى الله عنه: الحديث، أخرجه البخارى فى تفسير سورة الليل. باب ﴿وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى﴾ رقم: ۴۹۴۳وباب ﴿وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى﴾ رقم: ۴۹۴۴فى فضائل الصحابة، باب مناقب عمار وحذيفة رضى الله عنهما رقم: ۳۷۴۳-۳۷۴۲وباب مناقب عبدالله بن مسعود رضى الله عنه رقم: ۳۷۶۱وفى الاستئذان باب من ألقى له وسادة رقم: ۶۲۷۸ومسلم رقم: ۱۸۸۶-۱۸۸۹فى فضائل القرآن وما يتعلق به، باب ما يتعلق بالقراءات والترمذى رقم: ۲۹۳۹ فى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الليل.

(۳) ددوى دحالاتودپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعر الإنسان.

باب من ترك بعض الاختيار مخافة...، لاندې بيان كړې شوى دى.[1]

**مغيرة:** دامغيره بن مقسم ضبى كوفى رحمه الله دې.[2]

**ابراهيم:** دا مشهور فقيه ابوعمران ابراهيم بن يزيد نخعى كوفى رحمه الله دې.

**علقمه:** دا مشهور فقيه علقمه بن قيس نخعى كوفى رحمه الله دې. ددې دواړو بزرګانو تفصيلى حالات كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم كښې راغلى دى.[3]

**ابوالدرداء:** دا مشهور صحابى حضرت ابوالدرداء عويمر بن مالك خزرجى رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الوضوء باب من حمل معه الماء..... كښې بيان كړې شوى دى.[4]

**قوله: قال: قدمت الشام، فقلت: مَن ههنا؟** حضرت علقمه رحمه الله فرمائى چه د شام ملك ته راغلم اوتپوس مې اوكړو (داكابر نه) چه دلته څوك څوك دى؟

**تفصيلي روايت اودهغې ترجمه:** په دې روايت كښې مشهور تابعى بزرګ حضرت علقمه بن قيس نخعى كوفى رحمه الله د شام د سفر په ډير مختصر انداز كښې ذكر كړې شوې دې. چرته چه دهغوى ملاقات مشهور صحابى رسول حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه سره شوې وو. فضائل صحابه كښې دا روايت په دې سندسره تفصيلاً راغلې. دكوم الفاظ چه دا دى: ((عن علقمة قال: قدمت الشام، فصليت ركعتين، ثم قلت: اللهم يسر لي جليساً صالحاً، فأتيت قوماً، فجلست إليهم، فإذا شيخ قد جاء، حتى جلس إلى جنبي، قلت: من هذا؟ قالوا: أبوالدرداء. فقلت: إني دعوت الله أن ييسر لي جليساً صالحاً، فيسرك لي، قال: ممن أنت؟ قلت: من أهل الكوفة. قال: أوليس عندكم ابن أم عبد، صاحب النعلين والوسادة والمطهرة؟ وفيكم الذي أجاره الله من الشيطان)) يعنى حضرت علقمه رحمه الله فرمائى زه شام ته راغلم دوه ركعته مې اداكړه بيامې دعا اوغوښتله يا الله يوصالح دناستې ملګرې راكړه. بيا يوجماعت له راغلم اوهغوى سره كيناستم. ناڅاپه يو بزرګ راغلو اوزما په اړخ كښې كيناستو. ما ونيل دا بزرګ څوك دې؟ نوملګرو اوونيل دا حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه دې. چنانچه ما هغه ته اوونيل چه ما دالله تعالى نه دعاكړې وه چه ما چرته يونيك د ناستې ملګرى نه اورسوى نو الله تعالى ماته ستاسو صحبت راكړو. حضرت مانه تپوس اوكړو دكوم ځائې يئې؟ ما ونيل د أهل كوفه نه يم. ونى فرمائيل چه ولې تاسو سره د نبى پاك عليه السلام نعلين مبارك، تكيه او لوټه لرونكې ذمه دار حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نشته دې؟ ستاسو په دغه ښاركوفه كښې هغه شخصيت هم موجود دې څوك چه الله تعالى د شيطان نه محفوظ كړې دى.

حديث باب كښې ((وأفيكم الذي أجاره الله من الشيطان)) نه مراد مشهور صحابى حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنهما دې.[5] د كوم صراحت چه پخپله امام بخارى رحمه الله په وړاندې روايت كښې كوى

---

[1]) كشف البارى: ٥٤٦/٤.

[2]) دَدوى دَحالاتودَپاره اوګورئى كتاب الصوم باب صوم يوم وإفطار يوم.

[3]) كشف البارى: ٢٥٦/٢-٢٥٣.

[4]) كشف البارى: ٣٩٠/٥.

[5]) عمدة القارى: ١٧٧/١٥ ددې حديث تفصيلى شرح كتو دپاره اوګورئى كشف البارى كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم: ٧١٨-٧١٠باب مناقب عمار وحذيفه....

**قوله: حدثنا سليمان بن حرب، حدثنا شعبة، عن مغيرة، وقال: الذي أجاره الله على لسان نبيه، صلى الله عليه وسلم، يعني: عمارا.**

## تراجم رجال

**سليمان بن حرب:** دا سليمان بن حرب ازدي بصري رحمه الله دي. ددوی تفصیلی تذکره کتاب الایمان باب من کره أن یعود... کښې تیره شوې ده.[1]

**شعبه:** دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې ذکر کړې شوې دی.[2]

**مغيرة:** دامغیره بن مقسم ضبی کوفی رحمه الله دي.[3]

اوګورئ په دې حدیث کښې صراحت راغلو چه «الذي أجاره الله على لسان نبيه» نه مراد حضرت عمار بن یاسر رضی الله عنه دي. چه د سابقین اولین نه دي. د چامتعلق چه د ابودرداء رضی الله عنه دا ارشاد دې چه الله تعالی هغه د شیطان د اثراتو نه محفوظ فرمانیلې وو.

**حضرت علي رضی الله عنه په حق باندې وو:** د مشاجرات صحابه کرامو په معامله کښې د علماء حق یوه طبقه د توقف او سکون قائل ده خو د اهل حق غالب اکثریتي مسلك هم دغه دې چه په دې جنګونو کښې حضرت علي رضی الله عنه په حق باندې وو. دکوم چه ډیرزیات دلیلونه دی. د کوم نه چه یودلیل حدیث باب دې. چونکه حضرت عمار رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه د ملګرونه وو او د شیطانی اثراتو نه محفوظ مطلب دا دې چه د ناحق ملګرتیا کول دهغوی نه ممکن نه وو. والله اعلم بالصواب.

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** دحضرت ابوالدرداء رضی الله عنه ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې کوم چه په دې جمله کښې دې «الذي أجاره الله من الشيطان» کوم چه دحضرت عمار رضی الله عنه په خصوصیت باندې دال دې اود شیطان په شیطانی اثراتو باندې هم چه کوم بنده د الله تعالی په پناه کښې نه وی په هغه باندې شیطان خپل تسلط کینولې شی.[4]

دباب شلم حدیث دحضرت عائشه رضی الله عنها دې کوم چه د تعلیق په شکل کښې دې

## الحديث العشرون

٣١١٣- قَالَ: وَقَالَ اللَّيْثُ: حَدَّثَنِي خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، أَنَّ أَبَا الأَسْوَدِ أَخْبَرَهُ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمَلَائِكَةُ تَتَحَدَّثُ فِي الْعَنَانِ - وَالْعَنَانُ: الْغَمَامُ -، بِالأَمْرِ يَكُونُ فِي الأَرْضِ، فَتَسْمَعُ

---

[1] كشف الباري: ٢/١٠٥.

[2] كشف الباري: ١/٦٧٨

[3] ددوی دحالاتو دپاره اوګورئ کتاب الصوم باب صوم یوم وإفطار یوم.

[4] فتح الباري: ٦/٣٤٢.

الشَّيَاطِينُ الكَلِمَةَ، فَتَقُرُّهَا فِي أُذُنِ الكَاهِنِ كَمَا تُقَرُّ القَارُورَةُ، فَيَزِيدُونَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ" [ر ۳۰۳۸]

## تراجم رجال

**الليث**: دا مشهور امام ليث بن سعد فهمى رحمه الله دي. ددوى مختصر ذكر بدء الوحى دريم حديث كښې راغلې دې. (١)

**خالدبن يزيد**: داخالد بن يزيد جمحى مصرى رحمه الله دي.

**سعيدبن ابي هلال**: دا ابوالعلاء سعيد بن ابى هلال ليثى مدنى بصرى رحمه الله دې. د دې دواړو بزرگانو تفصيلى تذكره **كتاب الوضوء باب فضل الوضوء والغر المحجلون**... لاندې راغلې ده. (٢)

**ابوالاسود**: دا ابوالاسود محمدبن عبدالرحمن بن نوفل رحمه الله دي. (٣)

**عروة**: داحضرت عروه بن زبير بن عوام مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى دريم حديث حديث اوتفصيلى حالات **كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومة** لاندې بيان كړې شوى دى. (٤)

**عائشه** رضي الله عنها: دحضرت عائشه رضي الله عنها حالات بدء الوحى ددريم حديث لاندې راغلى دى. (٥)

**دَ مذكوره تعليق تخريج**: دحضرت عائشه رضي الله عنها داتعليق امام بخارى رحمه الله شاته «**باب ذكر الملائكة**» كښې موصولاً نقل كړې دې. (٦)

دې نه علاوه امام ابونعيم اصفهانى رحمه الله نه هم مستخرج كښې د ابوحاتم رازى رحمه الله په واسطه سره دا روايت موصولاً ذكركړې دې. (٧)

**قوله: عن عائشة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: الملائكة تتحدث في العنان- والعنان: الغمام- بالأمر يكون في الأرض**

دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمانيلى دى فرښتې په اوريخوكښې دهغه امورو باره كښې خبرې اترې كوى چه په زمكه باندې په راتلونكى وخت كښې كيدونكې وى.

د **بالأمر** تعلق **تتحدث** سره دې. په مينځ كښې **والعنان: الغمام** جمله معترضه ده چه دمتعلق او متعلق په مينځ كښې حائل شوې ده. په دې جمله كښې د **العنان** معنى خودلې شوې ده چه اوريخو ته وائى او**يكون في الأرض**، **الأمر** نه حال واقع كيږى. (٨)

---

(١) كشف البارى: ۳۲٤/۱.

(٢) كشف البارى: ۱۰۸/۵-۱۰۶.

(٣) دَدوى دَحالتودپاره اوګورئى كتاب الغسل باب الجنب يتوضأ.....

(٤) كشف البارى: ۲۹۱/۱، ٤۳۲/۲.

(٥) كشف البارى: ۲۹۱/۱.

(٦) دَمذكوره باب حديث نمبر٤ تخريج رقم: ۳۰۳۸.

(٧) عمدة القارى: ۱۷۷/۱۵ فتح البارى: ۳٤۲/۶ تغليق التعليق: ۵۱۳/۳ إرشاد السارى: ۲۹۹/۵.

(٨) عمدة القارى: ۱۷۷/۱۵ وأرشاد السارى: ۲۹۹/۵.

**قوله: فتسمع الشیطان الکلمة فتقرها فی أذن الکاهن. کما تقر القارورة، فیزیدون معها مائة کذبة** «دا شیطانان څه اوریخو ته ځی اوڅه خبری اوری، «چه واپس راشی» دخپل کاهن په غوږ کښې اچوی لکه څنګه چه په شیشه کښې یوڅیز اچولې شی. نو دا کاهنان خلق هغې سره سل دروغ نور یوځائی کوی.
دلته دا خودلی شی چه دا شیطانان هلته اوریخو ته ورځی اوڅه کلمات اوری بیا هغه د خپلو کاهنانو په غوږونو کښې راوړی وراچوی لکه چه په شیشه کښې چه یوڅیز وی نوچه په بله شیشه کښې هغه کله اچولې شی نو دهغې خله دبلې شیشې سره یوځائی کوی. دغه شان هغه شیطانان د خپل کاهن غوږ سره خپله خله یوځائی کړی اود هغه خبرې د کاهن په غوږ کښې وراچوی. بیا په دې کښې کاهن دخپل طرف نه سل قسم دروغ یوځائی کړی اوخلقو ته ئی بنائی. دغه شان څه خبرې رښتیا راؤځی او څه دروغ.
ددې حدیث تفصیلې شرح کتاب الطب اوکتاب الادب کښې راغلې ده.[1]
**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت:** ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت واضح دې او په دې کښې شیطانی تصرفات او د شیطانی کارندو ذکر دې. ښکاره خبره ده چه کاهن دهغه کارنده وی.
دباب یوویشتم حدیث دحضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحدیث الحادي وعشرون

۳۱۱۵- حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "التَّثَاؤُبُ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَالَ: هَا، ضَحِكَ الشَّيْطَانُ"[2]
[۵۸۶۹، ۵۸۷۲]

### تراجم رجال

**عاصم بن علي:** دا عاصم بن علی بن عاصم بن صهیب واسطی رحمه الله دې.[3]
**ابن ابي ذئب:** دامحمدبن عبدالرحمن بن مغیره الشهیر بابن ابی ذئب رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات **کتاب العلم باب حفظ العلم** کښې راغلی دی.[4]

---

[1] کشف الباری کتاب الطب: ۹۶-۹۴ کتاب الادب: ۶۳۶-۶۳۵. نور اوګورئ التوضیح: ۲۱۳/۱۹-۲۱۲.
[2] قوله: عن أبي هريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه البخاری فی الأدب باب ما يستحب من العطاس ويكره من التثاؤب رقم: ۶۲۲۳وباب ما إذا تثاءب فليضع يده على فيه رقم: ۶۲۲۶ومسلم رقم: ۷۴۹۰فی الزهد باب تشميت العاطس وكراهة التثاؤب وأبوداؤد رقم: ۵۰۲۸ فی الأدب باب ماجاء فی التثاؤب والترمذی رقم: ۳۷۰فی الصلاة باب ماجاء فی كراهية التثاؤب فی الصلاة وأبواب الأدب باب ماجاء أن الله يحب العطاس، ويكره التثاؤب رقم: ۲۷۴۸-۲۷۴۷.
[3] ددوی دحالاتودپاره اوګورئ کتاب الصلاة باب الصلاة فی القمیص.....
[4] کشف الباری: ۴۴۲/۴.

**سعيد**: دا سعيدبن ابى سعيد مقبرى مدنى رحمه الله دى. ددوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب الدين يسر كښې راغلى دى. (۱)

**كيسان**: دا كيسان بن سعيد المقبرى المدنى رحمه الله دى. (۲)

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دى. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى. (۳)

**قوله: : قال: التثاؤب من الشيطان**: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه اسويلى د شيطان د طرف نه وى. چنانچه كله په تاسو كښې چاته اسويلى راشى نو چه څومره كيدې شى دا بندونى ځكه چه كله تاسو كښې څوك اسويلې كوى نو "ها" وائى نوشيطان خوشحاليدوسره خاندى.

**اسويلې دَ شيطان دَ خوشحالئې سبب**: دلته د تثاؤب دپاره وئيلى شوى دى چه كله سړى ته اسويلى راځى نو شيطان دا خوښوى او په دې باندې خوشحاليږىَ ځكه چه تثاؤب عموماً هله كيږى چه كله بخارات د معده اوخيتې نه اوچت شى او دماغو ته اورسى. اود دماغوطرف ته ددې بخاراتو تلل په عام توګه هله كيږى كوم وخت چه د امتلاء بطن كيفيت وى او ښه ډكه خيټه ئې خوراك كړې وى. چنانچه شيطان په دې خبره باندې خوشحاليږى چه په ښه ډكه خيټه خوره او په دې سره بيان داسې كيږى چه دمعدې نه بخارات اوچتيدو سره د دماغوطرف ته لاړشى او په دې سره په سړى كښې سستى راپيداكيږى. په دې وجه ددې نسبت د شيطان طرف ته كړې شوې. (۴) باقى دا خبره په ذهن كښې ساتنى چه د كارد زياتوالى د وجې نه چه كوم سترپوالې وى په هغې سره چه كوم اسويلې راځى هغه د شيطان طرف ته نه منسوب كيږى. ددې حديث نوره شرح كتاب الادب كښې راغلې ده. (۵)

**ترجمة الباب سره دَحديث مطابقت**: ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې كوم چه ((التثاؤب من الشيطان)) كښې دې. ځكه چه په اسويلو سره غفلت پيدا كيږى بنده سست شى اود نيكو اعمالو نه لرې شى او شيطان خوشحاليږى. په دې وجه علامه خطابى رحمه الله ليكلى دى چه په انبياء كرام عليهم السلام ته به اسويلى بالكل نه راتلل چه دا د غفلت دليل دې. (۶)

دباب دوه ويشتم حديث د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث الثاني وعشرون

۳۱۱۶- حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَ: هِشَامٌ أَخْبَرَنَا، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "لَمَّا كَانَ يَوْمَ أُحُدٍ هُزِمَ الْمُشْرِكُونَ، فَصَاحَ إِبْلِيسُ: أَيْ عِبَادَ اللَّهِ

---

(۱) كشف البارى: ۳۳۶/۲.

(۲) دَدوى دَحالاتودَپاره اوګورئى كتاب الإذان باب وجوب القراءة للإمام والمأموم.

(۳) كشف البارى: ۶۵۹/۱.

(۴) عمدة القارى: ۱۷۸/۱۵شرح الطيبى: ۴۰۰/۲رقم:۹۸۶ومعالم السنن للخطابى: ۳۳/۷تحت رقم:۴۸۶۱.

(۵) كشف البارى كتاب الادب: ۶۶۷-۶۶۵

(۶) عمدة القارى: ۱۷۸/۱۵شرح القسطلانى: ۲۹۹/۵وأعلام الحديث للخطابى: ۲۲۳۶/۳فيض القدير للمناوى: ۴۰۵/۱رقم: ۵۷۱

أُخْرَاكُمْ، فَرَجَعَتْ أُولاَهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِيَ وَأُخْرَاهُمْ، فَنَظَرَ حُذَيْفَةُ فَإِذَا هُوَ بِأَبِيهِ الْيَمَانِ، فَقَالَ: أَيْ عِبَادَ اللَّهِ أَبِي أَبِي، فَوَاللَّهِ مَا احْتَجَزُوا حَتَّى قَتَلُوهُ، فَقَالَ: حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللَّهُ لَكُمْ، قَالَ عُرْوَةُ فَمَا زَالَتْ فِي حُذَيْفَةَ مِنْهُ بَقِيَّةُ خَيْرٍ حَتَّى لَحِقَ بِاللَّهِ" [۳۲۹۰، ۳۸۲۴، ۴۰۶۵، ۶۶۶۸، ۶۸۸۳، ۶۸۹۰] (۱)

## تراجم رجال

**زکریاء بن یحیی:** دا زکریا بن یحیٰی ابوالسکین طائی رحمه الله دي. ددوی حالات کتاب التیمم باب التیمم فی الحضر إذا لم یجد الماء کښې راغلی دی. (۲)

**ابواسامه:** دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زید کوفی رحمه الله دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب فضل من علم وعلم کښې تیرشو. (۳)

**هشام:** دا هشام بن عروه بن زبیربن عوام اسدی رحمه الله دي.

**عروه:** دا عروه بن زبیربن عوام رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو تذکره بدء الوحی دویم حدیث کښې اجمالاً او کتاب الإیمان باب أحب الدین إلی الله أدومه کښې تفصیلاً تیرشوی دی. (۴)

**عائشه:** دام المؤمنین عائشه صدیقه رضی الله عنها حالات بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (۵)

**قوله: :قالت: لما كان يوم أحد هزم المشركون، فصاح أبليس** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه په غزوه احد کښې کوم په شروع کښې مشرکینو ته ماتې اوشوه نو ابلیس چغې کړې.

**قوله: :أي عباد الله، أخراكم:** اې د الله بندیګانو خپل شاته خبر واخلئ.

**دغزوه احد خلاصه:** په غزوه احد کښې چه کله کافرانوته په انفرادی مقابلو کښې ماتې اوشو او دهغې کافې بهادران د تیغونو او نیزونه اووتل او صحابه کرام رضی الله عنهم ډیر په بهادرئ سره اوجنګیدل نو کافرانو میدان پریخودو په تیخته باندې مجبور شو او مسلمانانو دغنیمت مال جمع کول شروع کړه او د احد په وروکی غرباندې چه کوم تولې حضورپاک علیه السلام د مسلمانانو د شا طرف د حفاظت په غرض باندې مقرر کړې وو هغوی هم په ناپوهئ کښې هغه خپل ځائی پریخودو. او هغه خلق هم په مال غنیمت راجمع کولو کښې مشغول شو.

---

(۱) قوله: عن عائشة رضی الله عنها. الحدیث: أخرجه البخاری فی المغازی باب ﴿إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ رقم: ۴۰۶۵ وفی فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم باب ذکر حذیفة بن الیمان رضی الله عنه. رقم: ۳۸۲۴ وفی الأیمان والنذور باب إذا حنث ناسیاً فی الأیمان رقم: ۶۶۶۸ وفی الدیات باب العفو فی الخطاء بعد الموت رقم: ۶۸۸۳ وباب إذا مات فی الزحام أو قتل رقم: ۶۸۹۰

(۲) کشف الباری کتاب التیمم: ۱۲۹.

(۳) کشف الباری: ۳/۴۱۴.

(۴) کشف الباری: ۱/۲۹۱، ۲/۴۳۶-۴۳۲.

(۵) کشف الباری: ۱/۲۹۱.

حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه چه هغه وخت د کافرانود لښکر مشر وو هغه د احد کنده خالي ليدلوسره په هغه طرف باندې حمله اوکړه. هلته د مسلمانانود ټولی چه کوم يو څوکسان پاتې شوي وو هغه ټول ئې شهيدان کړل اود شانه ئې په مسلمانانو باندې حمله اوکړه. دا حمله دومره ناڅاپي وه چه په دې سره د جنګ نقشه بدله شوه اود کافرانو کوم لښکر چه تيختـه کړې وه هغـه هـم واپس راغلل. اوس مسلمانانو دواړه طرف ته دکافرانو په نښه کښې راغلل او د دوست اودښمن فرق ختم شو.
نتيجه دا شوه چه بعض مسلمانان هم پخپله دمسلمانانود لاس نه شهيدان شو. دحضرت حذيفه رضي الله عنه پلار حضرت يمان رضي الله عنه هم دمسلمانانو د لاسه شهيد شو دکوم ذکرچه په حديث باب کښې راځي.[1]
ابليس هم هلته موجود وو هغه دمسلمانانودګمراه کولودپاره دا جمله اووئيله: «أي عباد الله أخراكم» يعنې خپل شاته خبرواخلئ دې دپاره چه مسلمانان په خپل مينځ کښې اوجنګيږي. چنانچه هم دغه شان اوشو چه هغوی خپل شاته موجود مسلمانان مشرکان ګنړلوسره په هغوی حمله اوکړه. دغه شان مسلمانان خپل مينځ کښې اونختل. ابليس په خپل چال کښې کامياب شو. قسطلاني رحمه الله فرمائي: «ومراده (أي إبليس) -عليه اللعنة- تغليطهم ليقاتل المسلمون بعضهم بعضاً، فرجعت أولاهم لقتال أخراهم، ظانين أنهم من المشركين»[2] او حافظ رحمه الله ددې جملې تشريح فرمائيلو سره ليکي: «أي احترزوا من جهة أخراكم، وهي كلمة تقال لمن يخشى أن يؤتى عند القتال من ورائه، وكان ذلك لما ترك الرماة مكانهم، ودخلوا ينتهبون عسكر المشركين»[3]
يعنې د شاته خلقو نه بچ شئ. دا جمله هغه سړی ته هغه وخت وئيلی شي چاته چه د شانه دحملې خطره وي. دا هغه وخت اوشو کله چه په غرباندې موجود غشي ويشتونکو خپل خپل ځائي پريخودې وو اود مشرکانو په لښکرکښې دمال غنيمت د راجمع کولودپاره ورغلي وو.

**قوله: فرجعت أولاهم، فاجتلدت هي وأخراهم:** چنانچه اولنۍ جماعت راتاؤ شو نوهغوی او هغه دويم جماعت په خپل مينځ کښې غيږ په غيږ شو. مطلب دا چه ابليس لعين په خپل سازش کښې کامياب شو او مسلمانان هم په خپل مينځ کښې په جنګ شو. ددوست اودښمن فرق ختم شو. د ابن عباس رضي الله عنهما په حديث کښې دي: «وقد التقت صفوف أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم، فهم هكذا، وشبك بين أصابع يديه، والتبسوا، فلما أخل الرماة تلك الخلة التي كانوا فيها، دخلت الخيل من ذلك الموضع، على أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم، فضرب بعضهم بعضاً، والتبسوا، وقتل من المسلمين ناس كثير» [اللفظ لأحمد][4]

**قوله: فنظر حذيفة، فإذا هو بأبيه اليمان، فقال: أي عباد الله، أبي، أبي، فوالله ما احتجزوا حتى قتلوه، فقال حذيفة: غفر الله لكم:** حضرت حذيفه رضي الله عنه[5] اوکتل نو ناڅاپي دهغه نظر په

---

[1] كشف البارى كتاب المغازى: ۲۰۹-۲۰۸.

[2] شرح القسطلانى: ۲۹۹/۵ عمدة القارى: ۱۷۹/۱۵.

[3] فتح البارى: ۳۶۲/۷ كتاب المغازى رقم: ۴۰۶۵ والكنز المتوارى: ۲۰۳/۱۳ والكوثر الجارى: ۲۱۲/۶.

[4] رواه أحمد فى مسنده: ۱/۲۸۸-۲۸۷ رقم: ۲۶۰۹ مسند ابن عباس رضى الله عنهما. والحاكم فى مستدركه: ۳۲۴/۲ كتاب التفسير، تفسير سورة آل عمران رقم: ۳۱۶۳ وفتح البارى: ۳۶۳/۷.

[5] دحضرت حذيفه رضي الله عنه تفصيلى حالات كتاب العلم: ۱۰۹/۳ کښې تيرشوى دى.

خپل (بوډا) پلار يمان باندې پريوتلو نوهغوی ﷺ آواز اوکړو اې د الله تعالى بنديګانو زما پلار، زما پلار. مګر هغه خلق منع نه شو تردې چه حضرت يمان ﷺ نې قتل کړو. حضرت حذيفه ﷺ اوفرمائيل الله تعالى دې ستاسو خلقو مغفرت اوکړي.

**حضرت يمان ﷺ (حسيل بن جابر)**: داحُسيل يا حسل بن جابر بن ربيعه عبسى قُطعي دې. د يمان په لقب باندې مشهور وو. دعربو مشهورې قبيلې بنوعبس سره دهغه تعلق وو. دا مشهور صحابي د حضرت حذيفه بن يمان ﷺ پلار وو.[1] په اصل کښې يمان دهغوی د يوجداعلى جروه بن قطيعه لقب دې. دغه شان دهغه يو بل جداعلى جروه بن حارث ته هم يمان وئيلې شو. دغه د دويم ذکر شوی دلاسه دخپلې علاقې د يوکس قتل شوې وو. نوهغه تختيدو سره مدينې منورې ته راغلو. هلته د انصارو قبيله بنوعبدالاشهل حليف جوړشو او هم په هغوی کښې نې واده اوکړو. انصار اصلاً چونکه د يمن دی په دې وجه هغوی ته يمان وئيلې شوې دي. چنانچه جروه بن حارث مکى هم وو اويثربى (مدنى) هم. دقتل معامله ختميدو سره جروه مکې مکرمې ته واپس راغلو مګر د سخرګنتې رشتې د وجې نه د مدينې منورې سره دهغه تعلق په ځانې پاتې شو اوتګ راتګ به هم کيدلو.[2] يمان د قبيله عبس هغه اول وفدکښې شامل وو چه داسلام قبلولوپه غرض سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو. په هغه وفدکښې ټول لس کسان وو. دغه شان يمان ﷺ د هجرت نه مخکښې مسلمان شوې وو.[3]

**دَ وعدې دَ پوره کولو يوعظيم مثال**: دوی دخپل ځونې حضرت حذيفه ﷺ سره د څه کارد پاره دمدينې منورې نه بهر تلې وو. په واپسئ کښې ابوجهل هغه ګرفتار کړو اود دواړو نه نې دا قسم واخستو چه په غزوه بدرکښې به د حضرت نبى کريم ﷺ سره اعانت او امداد نه کوئى نوبيائې هغوی پريخودل دا دواړه حضرات د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ټوله قصه نې ورته بيان کړه او په غزوه بدر کښې د شرکت خواهش ښکاره کړو. حضورپاك اوفرمائيل. ((انصرفا، نفى لهم بعهدهم، ونستعين الله عليهم)) [4] يعنى تاسو دواړه واپس لاړشئى مونږ به هغوی سره کړې شوې وعده پوره کوو او په هغوی باندې به د الله تعالى نه د امداد طلبګار يو.

چونکه دا حادثاتى مرګ وو په دې وجه نبى کريم ﷺ دبيت المال نه دهغوی ديت حضرت حذيفه ﷺ ته ورکول غوښتل نوهغوی ﷺ دغه قبول نه کړو او په بيت المال باندې نې صدقه کړو. دکوم په وجه چه د نبى کريم په نظر کښې دهغوی منزلت اودرجه نوره هم زياته شوه رضى الله عنهم وأرضاهم [5]

**قوله: قال عروة: فما زالت فى حذيفة منه بقية خير حتى لحق بالله**. حضرت عروه بن زبير رحمه الله

---

[1] الإصابة: ۳۳۱/۱حرف الحاء القسم الأول، والاستيعاب: ۲۱۰/۱.

[2] الإصابة: ۳۱۸/۱تهذيب الكمال: ۳۹۷/۵سير أعلام النبلاء: ۳۶۲/۲ والاستيعاب: ۲۰۰/۱باب حذيفه.

[3] صور من حياة الصحابة: ۲۹۳ترجمة حذيفة بن اليمان رضى الله عنه.

[4] صحيح مسلم: ۱۰۶/۲کتاب الجهاد والسير،باب الوفاء بالعهدرقم: ۱۷۸۷ومسند أحمد: ۳۹۵/۵رقم:۲۳۴۶مسندحذيفه بن اليمان ﷺ

[5] الإصابة: ۳۳۲/۱-۳۳۱عمدة القاري: ۱۷۹/۱۵شرح القسطلاني: ۳۰۰/۵نوراوګورئى هداية رابع: ۵۶۷کتاب الجنايات باب مايوجب القصاص ومالا يوجبه.

فرمائى چه حضرت حذيفه رضي الله عنه تر مرګه پورې (دخپل پلار) قاتل خاطى دپاره د خير دعا او مغفرت كولو.

**ددې جملې دوه مطلبه:** رواياتو كښې راځى چه يمان رضي الله عنه دعقبه بن مسعود رضي الله عنه د لاسه په خطا شهيد شوې وو. دناخبرتيا او ناواقفيت په حالت كښې هغه دې قتل كړې وو نوحضرت حذيفه رضي الله عنه به دهغه دپاره د خير دعا اومغفرت كولو. خو ددې جملې دويم مطلب علامه تيمى رحمه الله دا ليكلې دې چه حضرت حذيفه رضي الله عنه دژوند آخرى وخته پورې په دې خبره باندې غمګين او خفه وو [1] چه دهغه د پلار شهادت دمسلمانانو د لاسه شوې. والله أعلم بالصواب [2]

**ترجمة الباب سره دَحديث مطابقت:** ترجمة الباب سره دَ حديث مطابقت واضح دې چه شيطان مسلمانان په خپل كښې اوجنګول. دَ څه په نتيجه كښې چه دَ مسلمانانو واضحه فتح په ظاهرى ماتې كښې بدله شوه.

دباب درويشتم حديث راويه هم حضرت عائشه رضي الله عنها ده:

## الحديث الثالث وعشرون

٣١١٧-حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ: رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْتِفَاتِ الرَّجُلِ فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: «هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ أَحَدِكُمْ» [ر٧١٨] [3]

## تراجم رجال

**الحسن بن الربيع:** دا الحسن بن الربيع رحمه الله دې. ددوى حالات شاته په ذكر الملائكه كښې مونږ بيان كړى دى.

**اشعث:** دا اشعث بن سليم محاربى كوفى رحمه الله دې.

**ابيه:** دا سليم بن اسودبن حنظله محاربى كوفى رحمه الله دې. [4]

**مسروق:** دا مشهور محدث مسروق بن اجدع كوفى همدانى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى ذكر **كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم** كښې راغلې دې. [5]

**عائشه:** دام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحى دويم حديث لاندې تير شوى دى [6]

---

[1] دَدوى دَحالاتودپاره اوګورئى كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه: ٤٣٦/٢.

[2] غالبًا دامعنى دَ هغه روايت په اعتبارسره ده دكوم طرف ته چه علامه كورانى حنفى اشاره كړې ده. په كوم كښې چه بقية خبر په ځائى باندې بقية حزن دې ((ويروى بقية حزن)) الكوثر الجارى: ٢١٢/٦ ليكن حافظ صاحب رحمه الله دا وهم ګرځولې دې اوګورئى فتح البارى: ٥٥٣/١ رقم:٦٢٩.

[3] قوله: قالت عائشة رضي الله عنها: الحديث، مرتخريجه فى صفة الصلاة باب الالتفات فى......

[4] ددې دوارو حضراتو دَحالاتودپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب التيمن فى الوضوء، والغسل.

[5] كشف البارى: ٢٨١/٢.

[6] كشف البارى: ٢٩١/١.

دام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها داحديث خپل تول تفصيلاتوسره کتاب الصلاة کښې راغلې دې.[1]

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** دلته هم مناسبت بالباب واضح دې چه په دې کښې د شيطان د اختلاس اود منومن مونځ خرابول او په هغې کښې د وسوسې اچولو ذکر دې کوم چه د شيطان د مختلف تصرفات نه يو تصرف دې.

علامه قسطلانی رحمه الله ليکلی دی: «لأن الالتفات لما كان فيه ذهاب الخشوع استعير لذهابه اختلاس الشيطان تصوير القبح ذلك بالمختلس، لأن المصلى مستغرق فى مناجاة مولاه، وهو مقبل عليه، والشيطان مراصد له، منتظر لفوات ذلك، فإذا التفت المصلى اغتنم الشيطان الفرصة، فيختلسها منه»[2]

دباب څلېريشتم حديث د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه دې.

## الحديث الرابع وعشرون

۳۱۱۸- حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وحَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللَّهِ، وَالْحُلُمُ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِذَا حَلَمَ أَحَدُكُمْ [ص:۱۲۶] حُلُمًا يَخَافُهُ فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ، وَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ شَرِّهَا، فَإِنَّهَا لاَ تَضُرُّهُ» [۵۳۱۵، ۶۵۸۳، ۶۵۸۵، ۶۵۹۴، ۶۵۹۵، ۶۶۰۳، ۷۰۴۴][3]

**تراجم ابوالمغيرة:** دا ابوالمغيرة عبدالقدوس بن الحجاج خولانی رحمه الله دې.[4]

**الاوزاعي:** دا ابوعمر عبدالرحمن بن عمرو اوزاعی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم کښې بيان کړې شوی دی.[5]

**يحيي بن ابي كثير:** دا يحيى بن ابی کثير طائی يمانی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات کتاب العلم باب کتابة العلم کښې راغلی دی.[6]

---

[1]) كتاب الصلاة باب الالتفات فى الصلاة رقم: ۷۵۱.

[2]) شرح القسطلاني: ۳۰۰/۵.

[3]) قوله: عن أبيه (أبى قتادة رضي الله عنه): الحديث، أخرجه البخارى فى الطب باب النفث فى الرقية رقم: ۵۷۴۷وفى التعبير باب الرؤيا من الله رقم: ۶۹۸۴وباب الرؤيا الصالحة جزء من ستة وأربعين جزء ا من النبوة: ۶۹۸۶وباب من رأى النبى ﷺ فى المنام رقم:۶۹۹۶-۶۹۹۵وباب الحلم من الشيطان فإذاحلم فليبصق عن يساره، رقم: ۷۰۰۵وباب إذا رأى مايكره فلا يخبر بها ولا يذكرها رقم: ۷۰۴۴ومسلم رقم: ۵۹۰۸-۵۹۰۵ فى الرؤيا باب ماجاء إذا رأى فى المنام ما يكره وأبوداؤد رقم: ۵۲۱۰فى الأدب باب ماجاء فى الرؤيا، وابن ماجه فى تعبير الرؤيا باب من رأى رؤيا ما يكرهها رقم: ۳۹۵۵.

[4]) ددوی دحالاتودپاره اوګورئی کتاب جزاء الصيدباب تزويج المحرم.

[5]) کشف الباري: ۴۰۸/۳.

[6]) کشف الباري: ۲۶۷/۴.

**عبدالله بن ابي قتاده:** داعبدالله بن ابى قتاده سلمى رحمه‌الله دى.

**ابيه (ابوقتاده):** دا ابوقتاده حارث بن ربعى انصارى بدرى رضی‌الله‌عنه دى.

ددې دواړو بزرګانو تفصيلى تذكره **كتاب الوضوء باب النهى عن الاستنجاء باليمين** لاندې راغلې ده [1]

**سليمان بن عبدالرحمن:** دا محدث دمشق ابوايوب سليمان بن عبدالرحمن بن عيسى بن ميمون تميمى دمشقى رحمه‌الله دى. دى دمشهور تابعى محدث شرحبيل بن مسلم خولانى رحمه‌الله نوسى وو [2]

دى د يحيى بن حمزه حضرمى، وليد بن مسلم، مروان بن معاويه، خالد بن يزيدبن ابى مالك، معدان بن يحيى لخمى، عبدالملك بن محمدصنعانى، محمدبن شعيب بن شابور، محمد بن حميرحمصى، بقية، حاتم بن اسماعيل مدنى، عثمان بن فائد، ابن عيينه، ضمره بن ربيعه، ابن وهب، عيسى بن يونس، معروف الخياط رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كوى.

ددوى نه يو لوئى جماعت روايت كوى لكه بخارى، ابوداؤد، يزيد بن محمدبن عبدالصمد، احمدبن الحسن ترمذى، احمدبن معلى بن يزيد القاضى، خالد بن روح، عثمان بن خرزاذ، محمود بن خالد سلمى، محمد بن يحيى ذهلى، ابوحاتم رازى، ابوزرعه رازى، ابوعبيد قاسم بن سلام رحمهم الله وغيره[3]

امام يحيى بن معين رحمه‌الله فرمائى ((**ليس به بأس**)) [4] امام ابوحاتم رازى رحمه‌الله فرمائى: ((**صدوق، مستقيم الحديث، ولكنه أروي الناس عن الضعفاء والمجهولين، وكان عندي في حد: لو أن رجلا وضع له حديثا لم يفهم. وكان لا يميز**)) [5] يعنى رښتونې اود صحيح حديثونو والا دې مګر د ضعفاء اومجاهيل نه روايت كولوكښې د ټولو نه وړاندې دې. زما په خيال كه يوبنده د هغه د پاره څه حديث د خان نه جوړكړى نو په دې باندې نه پوهيږى او په صحيح او غير صحيح كښې به ئې فرق نه شو كولې.

امام يعقوب بن سفيان رحمه‌الله فرمائى: ((**كان صحيح الكتاب، إلا أنه كان يحول، فإن وقع فيه شيء فمن النقل، وسليمان ثقة**)) [6] امام صالح بن محمد بغدادى رحمه‌الله فرمائى: ((**لابأس به، ولكنه يحدث عن الضعفى**)) [7] حافظ ذهبى رحمه‌الله فرمائى ((**الإمام الكبير.... وكان محدث دمشق ومفتيها**)) [8] نور فرمائى: ((**وكان من أوعية العلم**)) [9] ابوزرعه دمشقى رحمه‌الله خپل كتاب **ذكر أهل الفتوي بدمشق**، كښې سليمان بن عبدالرحمن ذكركړې دې [10] يوبل

---

[1] كشف البارى: ٥/٤١٤-٤١١.

[2] تهذيب الكمال: ١٢/٢٦رقم الترجمة: ٢٥٤٤سير أعلام النبلاء: ٤/١٣٦.

[3] شيوخ اوتلامذه دپاره اوګورئ تهذيب الكمال:١٢/٢٨-٢٦سير أعلام النبلاء: ٤/١٣٧-١٣٦.

[4] تهذيب الكمال: ١٢/٢٩سير أعلام النبلاء: ٤/١٣٧.

[5] الجرح والتعديل: ٤/١٢٤رقم الترجمة:٥٥٩.

[6] المعرفة والتاريخ: ٢/٤٠٦، ٢/٤٥٣تهذيب الكمال: ١٢/٣٠سير أعلام النبلاء: ٤/١٣٨-١٣٧.

[7] تهذيب الكمال: ١٢/٢٩تهذيب التهذيب: ٢٠٨/. امام نسائى رحمه‌الله فرمائى ثقة.تهذيب الكمال: ١٢/٣٠تهذيب التهذيب: ٢٠٨

[8] تذكرة الحفاظ: ٢/٤٣٨.

[9] ميزان الاعتدال: ٢/٢١٢.

[10] تهذيب الكمال: ١٢/٣١تهذيب التهذيب: ٢٠٨/.

خانی فرمائی ((حدثنی سلمان بن عبدالرحمن: فقیه أهل دمشق)) بیا ئی دهغوی روایت بیان کړو.[1]

**اعتراض اودهغې جوابات:** سلیمان بن عبدالرحمن هم د بخاری شریف په هغه رواة کښې شامل دې د کوم د وجې نه چه امام بخاری ته مطعون ونیلې شوې دې او په هغوی باندې تنقید کړې شوې دې. چه بخپل صحیح کښې هغوی د یو داسې مختلف فیه راوی مرویات څنګه درج کړی دی؟

خو بیا هم پورته ذکر کړې شوې د ائمه جرح او تعدیل د اقوالو په رنړا کښې دا خبره واضح کیږی چه سلیمان رحمه الله بخپله ثقه او صدوق وو په هغوی چه کوم کلام دې هغه د هغه د دغه ضعیف شیوخ د وجې نه دې د چانه چه هغه روایت کوی چه دهغوی د وجې نه دهغوی په مرویاتو کښې منکر روایتونه راغلی په دې وجه حافظ ذهبی فرمائی ((هوفی نفسه صدوق، لکنه لهج بروایة الغرائب عن المجاهیل والضعفاء)).[2]

هم د دې خبرې اعتراف امام دارقطنی رحمه الله ته هم دې. حاکم ابوعبدالله نیسابوری رحمه الله فرمائی ((قلت للدارقطنی: سلمان بن عبدالرحمن؟ قال: ثقة. قلت: ألیس عنده مناکیر؟ قال: حدث بها عن قوم ضعفی، فأما هوفثقة))[3] لکه چه مسئله د سلمیان بن عبدالرحمن رحمه الله د طرف نه نه ده بلکه دهغه شیوخ د طرف نه ده څوك چه مناکیر روایت کوی.

حافظ ذهبی رحمه الله میزان الاعتدال کښې د سلیمان بن عبدالرحمن رحمه الله تذکره هم لیکلې ده حالانکه هغوی په حفاظ حدیث کښې شمیر کولوسره تذکرة الحفاظ کښې هم ذهبی رحمه الله د هغه ذکر کړې دې. د دې وجه بیانولوسره فرمائی: ((لولم یذکره العقیلی فی کتاب الضعفاء[4] لما ذکرته، فإنه ثقة مطلقا، قاله أبوداؤد: یخطیء کما یخطیء الناس، وهوخیر من هشام بن عمار)).[5]

که چرې عقیلی رحمه الله په خپل کتاب الضعفاء کښې دهغه تذکره نه وه کړې نوما به هم دلته (میزان کښې) د هغه ذکر نه کولو ځکه چه هغه مطلقا ثقه دې. دغه شان امام ابوداؤد رحمه الله فرمائیلی دی چه څنګه نور خلق غلطی کوی سلیمان هم کوی (نو په دې کښې دحیرانتیا څه خبره ده؟) اوهغه د هشام بن عمار رحمه الله نه بهتر دې. لکه چه د هغوی باره کښې خلاصه دا ده کوم چه حافظ ابن حبان رحمه الله فرمائی: ((یعتبر حدیثه إذا روی عن الثقات المشاهیر، فأما إذا روی عن المجاهیل ففیها مناکیر کثیرة، لا اعتبار بها)).[6] یعنی چه د ثقات نه روایت کوی نو دهغه مرویات معتبر دی اوکه چرې دمجاهیل نه روایت کوی نو په هغې کښې منکر روایتونه وی.

ترکومې چه دامام بخاری رحمه الله تعلق دې نو په هغه باندې اعتراض په دې وجه نه شی کیدې لکه څنګه چه اوس تیر شو سلیمان ثقه دې. بل هغوی د سلیمان رحمه الله نه یوڅو روایتونه نقل کړی دی. په کوم

[1]) تهذیب الکمال: ۳۱/۱۲تهذیب التهذیب: ۲۰۸/.

[2]) سیر أعلام النبلاء: ۱۳۸/٤.

[3]) سؤالات الحاکم للدارقطنی رقم: ۳۳۹ وتهذیب الکمال: ۳۱/۱۲سیر أعلام النبلاء: ۱۳۸/٤.

[4]) الضعفاء الکبیر: ۱۳۲/۲رقم الترجمة:۶۱۸.

[5]) میزان الاعتدال: ۲۱۳/۲رقم: ۳٤۸۷.

[6]) کتاب الثقات لابن حبان: ۲۷۸/۸باب السین رقم: ۱۳٤۳۵.

كښې چه دهغوی شيخ وليد بن مسلم رحمه الله دې څوك چه مشهور محدث او ثقه راوی دې. عجلی رحمه الله وغيره دهغوی توثيق كړې دې. (١)

**پيدائش اووفات:** عمرو بن دحيم رحمه الله فرمائی ۱۵۲هجری كښې د سليمان بن عبدالرحمن رحمه الله پيدائش شوې. (٢)خويعقوب بن سفيان رحمه الله او ابن حبان رحمه الله د پيدائش كال ۱۵۳هجری خودلې دې (٣) دويم قول حافظ ذهبی رحمه الله اختيار كړې دې. (٤)ابوزرعه دمشقی، عمرو بن دحيم اويعقوب بن سفيان رحمهم الله وغيره ډيرو حضراتو د وفات كال ۲۳۳هجری گرځولې دې. عمرو رحمه الله نوره اضافه كولوسره چه د صفر دمياشت آخری تاريخ وو اود چارشنبه ورځ وه.

ابوزرعه رحمه الله فرمائی چه زه دهغوی په جنازه كښې موجود ووم. د جنازې مونځ مالك بن طوق رحمه الله وركړو چا چه د رحبه ښار بنياد ايخودې وو. (٥)ائمه ستة كښې دامام مسلم رحمه الله نه علاوه باقی ټولو حضراتو دهغوی مرويات قبول كړی دی.رحمه الله تعالى رحمة واسعة.(٦)

**الوليد:** دا وليد بن مسلم دمشقی اموی ابوالعباس رحمه الله دې. (٧)

**حديث په دوو طرق سره دَ روايت كولووجه:** لكه څنګه چه تاسو ګورئ چه امام بخاری رحمه الله دحضرت قتاده رضی الله عنه حديث په دوو طرق سره روايت كړې دې. په دې كښې اول طريق په تصريح د شراح د دويم طريق نه اعلیٰ او اولیٰ دې. ددې نه باوجود د طريق ذكر كولو وجه صرف داده چه په دې كښې د يحيی بن ابی كثير رحمه الله دَ عبدالله بن ابی قتاده رحمه الله نه دتحديث صراحت دې خو رومبې طريق معنعن وو.(٨)

**ښه اوبد خوبونه:** حضرت ابوقتاده رضی الله عنه د نبی كريم ارشاد نقل كوی چه ښه خوبونه دالله تعالى د طرف نه وی اوخراب خوبونه د شيطان دطرف نه په دې معنی چه زړه دهغې په كتلوسره خوشحالیږی انقباض د انبساط سره بدليږی بنده ترو تازه شی يا د هغې تعبير ښه وی حاصل اوانجام ئې ښه وی. دې ته روياصادقه هم وائی. اوخراب خوبونه دشيطان د طرف نه وی دهغې په كتوسره انسان ويريږی ويرونكی شكلونه ورته ښكاری يا په طبعيت كښې انقباض پيداكيږی يا درب كريم باره كښې د بنده ګمان خرابيږی يا دهغې تعبير اومآل ښه نه وی. دغه روياكاذبه سره هم تعبيركولې شی.(٩)

**دَخرابوخوبونو علاج:** په دې حديث كښې نبی كريم دخرابو خوبونو ليدلو اودهغې نه په ويريدلو سره د بيداريدو په صورت كښې دا علاج خودلې دې چه خپل ګس طرف ته دې توكې لكه چه شيطان رټلې شی اود دغه خرابوخوبونو د شر نه دې د الله تعالى پناه اوغواړی. دغه شان به بنده د دې خرابوخوبونو

---

(١) هدى السارى: ٥٧٨حرف السين من الفصل التاسع فی سياق أسماء من طعن فيه......
(٢) تهذيب الكمال: ٣١/١٢.
(٣) المعرفة: ٢٠٩/١والثقات لابن حبان: ٢٧٨/٨.
(٤) تذكرة الحفاظ: ٤٣٨/٢.
(٥) تهذيب الكمال:٣٢/١٢-٣١ سيرأعلام النبلاء: ١٣٩/٤ تهذيب التهذيب ابن حجر: ٢٠٨/.
(٦) تهذيب الكمال: ٣٢/١٢ سيرأعلام النبلاء: ١٣٦/٤ تهذيب التهذيب ابن حجر: ٢٠٧/.
(٧) دَ دوی دَحالاتودَپاره اوګورئ كتاب مواقيت الصلاة باب وقت المغرب.
(٨) شرح القسطلانی: ٣٠٠/٥عمدة القاری: ١٧٩/١٥فتح البارى: ٣٤٢/٦.
(٩) شرح القسطلانی: ٣٠٠/٥عمدة القاری: ١٨٠/١٥شرح الطيبی: ٣٤٤/٨كتاب الرؤيا رقم:٤٦١٢.

د نقصان او ضرر نه بچ شی. (۱)دحضرت ابوسلمه رضی الله عنه په طریق کښې د دریو څلو توکلو ذکر راغلې دې. يعنى اعوذ باللہ ونيلو سره درې ځل ګس طرف ته توکه. (۲)

**ټول خوبونه دَالله تعالی دَطرف نه وي:** دا خبره د نمر په شان ښکاره ده چه هرقسم خوبونه هم دالله تعالی د طرف نه وی که ښه وی اوکه خراب. داسې هيڅ کله نه ده چه ښه خوبونه خودې دالله تعالی د طرف نه وی او خراب د شيطان د طرف نه. د هرقسم خوبونو خالق الله تعالی دې. د ښه خوب نسبت د الله تعالی دتکريم او تشريف دپاره اوکړې شو اود خراب خوب نسبت د شيطان طرف ته ځکه چه هغه په دې باندې خوشحاليږی اوراضی کيږی. (۳)

**ترجمة الباب سره دَحديث مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت واضح دې چه په دې سره د شيطان وجود اود هغه مختلف تصرفات ثابتيږی.

د باب پنځيشتم حديث د حضرت ابوهريره رضی الله عنه دې.

## الحديث الخامس وعشرون

۳۱۱۹- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ سُمَيٍّ، مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ: لاَ إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ المُلْكُ وَلَهُ الحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ، كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ، وَكُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ، وَمُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ، وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذَلِكَ حَتَّى يُمْسِيَ، وَلَمْ يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ، إِلَّا أَحَدٌ عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ" [۶۰۴۰] (۴)

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلی چه کوم سړې چه د دې کلماتو ورد د ورځې سل ځل کوی نوهغه ته به د لس غلامانود آزادولو په شان ثواب ملاويږی. د هغه دپاره به سل نيکئی ليکلې کيږی. د هغه به سل ګناهونه معاف کيږی. دا کلمات به د ماښامه پورې د شيطان نه دهغه د حفاظت ذريعه جوړيږی. په هغه ورځ به د هغه نه افضل په اعمال صالحه کښې بل څوک نه وی. سوا دهغه نه چاچه د ده نه زيات د دې ورد کړې وی. هغه د غيرمعمولی ثواب حامل کلمات دادی: «لا إله إلا الله وحده، لا شريك له، له الملك، وله الحمد، وهو على كل شيء قدير»

---

(۱) حواله جات بالا. نور اوګورئی کشف البارى كتاب الطب: ۸۰-۷۹.

(۲) انظر صحيح البخارى كتاب الطب باب النفث فى الرقية رقم: ۵۷۴۷.

(۳) عمدة القارى: ۲۷۰/۲۱قال العلامة الكورانى الحنفى رحمه الله: فان قلت: الكل بخلق الله، فما معنى قوله: ((من الشيطان))؟ قلت: الرؤيا الصالحة توجب سرور الراى، ولذلك نسبت إلى الله تعالى، والكاذبة توقع الحزن والوسوسة فى قلب الرائى، ولذلك أمر بأن يتفل عن يسار. الكوثر الجارى: ۲۱۳/۶..

(۴) قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث. رواه البخارى فى الدعوات باب فضل التهليل رقم: ۶۴۰۳ومسلم رقم: ۶۸۴۲ فى الذكر باب فضل التهليل والتسبيح والترمذى رقم: ۳۴۶۴فى الدعوات باب رقم: ۶۱وابن ماجه فى الأدب باب فضل لاإله إلا الله رقم: ۳۸۴۳.

# تراجم رجال

**عبدالله بن یوسف**: دا عبدالله بن یوسف تنیسی دمشقي رحمه الله دي. ددوی اجمالي حالات بدء الوحی او تفصیلي حالات کتاب العلم باب لیبلغ الشاهد الغائب لاندې تیرشوي دي.[1]

**مالک**. دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس اصبحي مدني رحمه الله دي. ددوی اجمالي حالات بدء الوحي او تفصیلي حالات کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن لاندې بیان کړې شوي دي.[2]

**سمي**: دا ابوعبدالله سمي مولی ابي بکر بن عبدالرحمن رحمه الله دي.[3]

**ابوصالح**: دا ابو صالح عبدالله بن ذکوان سمان زیات رحمه الله دي.

**ابوهریره**: دا مشهور صحابي حضرت ابوهریره رضي الله عنه دي. ددوی دواړو بزرگانو حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیرشوي دي.[4]

داحدیث کتاب الدعوات کښې هم راغلې دې کلمه لااله الاالله د فضیلت د بیانولو دپاره امام بخاري رحمه الله دا حدیث ذکر کړې دې.[5]

**دَ حدیث دَ بعض کلماتو توضیح**: عدل: دعین مهمله په فتحه اوکسره سره. د یوشي مثال، مثیل اودهغې مساوي.[6] خو بعض حضراتو دافرق بیان کړې دې چه دعین فتحه سره دعدل معنی هم جنس، مثیل او نظیر ده. اوکسره سره د غیر جنس سره مساوي کیدلو باندې د دې اطلاق کیږي اوبعض حضراتو ددې عکس بیان کړې دې.[7]

**حرز-بکسر الحاء المهملة-**: محفوظ ځائې چرته چه قیمتي څیزونه محفوظ کیخودې شي. تعویذ ته هم حرز ونیلی شي.[8]

داحدیث مسلم شریف ترمذي شریف او نسائي کښې هم راغلې دې. هلته ددې کلماتو اضافه هم ده: «سبحان الله وبحمده» چه څوك ددې کلماتو ورد په ورځ کښې سل ځل کوي دهغه ټول ګناهونه به ختم شي اګرکه هغه د سمندر د ځګ برابر وي.[9]

---

[1]) کشف الباري: ۱/۲۸۹و ۱۱۳/٤.

[2]) کشف الباري: ۱/۲۹۰، ۲/۸۰.

[3]) ددوی د حالاتودپاره اوګورئ کتاب الأذان باب الاستهام فی الأذان.

[4]) کشف الباري: ۱/۶۵۹-۶۵۸.

[5]) کشف الباري کتاب الدعوات باب فضل التهلیل ص: ۳۱۱.

[6]) النهایة في غریب الحدیث والأثر: ۱۷۳/۳باب العین مع الدال. مادة: عدل. والکوثر الجاري: ۲۱۳/۶.

[7]) حواله جات بالا.

[8]) عمدة القاري: ۱۸۰/۱۵والکوثر الجاري: ۲۱۳/۶.

[9]) صحیح مسلم کتاب الذکر والدعاء...... باب فضل التهلیل والتسبیح.....رقم: ۲۶۹۱والسنن الکبری للنسائي:۲۰۷/۶کتاب عمل الیوم واللیلة. باب ثواب من قال: سبحان الله وبحمده. رقم: ۱۰۶۶۲وسنن الترمذي أبواب الدعوات باب (بلاترجمة) رقم: ۳٤۶۹.

**ترجمة الباب سره د حديث مطابقت:** داحديث دلته د ذکرکولومقصد دشيطان نه خپل خان محفوظ کولوطر يقه خودل دی. ښکاره خبره ده چه که هغه ته په مختلف تصرفاتو باندې قدرت نه وی نودهغه نه دبچاو د طريقو تلقين به ولې کولې شو. چنانچه ثابته شوه چه شيطان ته د الله تعالی په حکم باندې په مختلف تصرفاتو باندې قدرت حاصل وی. دهغه په جال کښې د اينختونه هم دغه کلمات محفوظ ساتلې شی. ابن الملقن رحمه الله فرمائی: «وجه إيراده للحرز من الشيطان بذلك»[1]

د باب شپږيشتم حديث دحضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه دی.

## الحديث السادس وعشرون

۳۱۲۰- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الحَمِيدِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَاهُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: اسْتَأْذَنَ عُمَرُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ نِسَاءٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ، عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ، فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ قُمْنَ يَبْتَدِرْنَ الحِجَابَ، فَأَذِنَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ، فَقَالَ عُمَرُ: أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: «عَجِبْتُ مِنْ هَؤُلاَءِ اللَّاتِي كُنَّ عِنْدِي، فَلَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الحِجَابَ» قَالَ عُمَرُ: فَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ كُنْتَ أَحَقَّ أَنْ يَهَبْنَ، ثُمَّ قَالَ: أَيْ عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ، أَتَهَبْنَنِي وَلاَ تَهَبْنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قُلْنَ: نَعَمْ، أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ قَطُّ سَالِكًا فَجًّا إِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ» [۳۶۸۰، ۵۷۳۵] [2]

**ترجمه:** حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی یوځل حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې د حاضريدو اجازت طلب کړو. هغه وخت حضورپاك سره څه ښځې (ازواج مطهرات رضی الله عنهن) خبرې اترې کولې او په اوچت آواز سره ښه په زوره زوره خبرې کيدلې. نو چه کله حضرت عمر رضی الله عنه اجازت اوغوښتلو نوهغه بيبيانې زر پاسيدې اود پردې نه شاته شوې. رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت عمر رضی الله عنه ته په مسکی کيدو سره د راتلو اجازت ورکړو. حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل يارسول الله ! الله تعالی دې اوکړی چه تاسو هميشه دغه شان مسکې ئی (دې وخت کښې د مسکی کيدو سبب څه دې؟) حضورپاك اوفرمائيل ماته په دې بيبيانو باندې حيرانتيا ده کومې چه ماسره وې کله چه هغوی ستا آواز واوريدو نو زر په پرده کښې ورننه وتلې. حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل يارسول الله ! (په نسبت زما) هغوی له تاسو نه زيات ويريدل پکارو. بيا حضرت عمر رضی الله عنه (بيبيانو ته مخاطب کيدو سره) اووئيل دخپل خان دښمنانو تاسو زما نه ويريږئ اود الله تعالی د رسول صلی الله علیه وسلم نه نه ويريږئ؟ بيبيانو اووئيل بالکل. ځکه چه تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نسبت زيات سخت ئی. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل

[1]) التوضيح: ۱۹/۲۱۷.

[2]) قوله: أن أباه سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه: الحديث، رواه البخاری فی فضائل أصحاب النبی ﷺ باب مناقب عمر بن الخطاب رضی الله عنه رقم: ۳۶۸۳ وفی الأدب باب التبسم والضحک رقم: ۶۰۸۵ ومسلم رقم: ۶۲۰۲ فی فضائل الصحابة باب من فضائل عمر بن الخطاب رضی الله عنه

قسم دې دهغه ذات د چا په قبضه کښې چه زما ځان دې کله چه شیطان تا په یوه لار باندې تلونکې وینی نو ستا لار پرېږدی په بله لار کیږی.
داحدیث فضائل اصحاب النبی ﷺ کښې هم راغلې دې. هلته ددې تفصیلی شرح شوې ده.[1]

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله**: دا مشهور محدث علی بن عبدالله المدینی رحمه الله دې. ددوی تذکره **كتاب العلم باب الفهم فی العلم** لاندې تیره شوې ده.[2]

**يعقوب بن ابراهيم**: دا یعقوب بن ابراهیم بن سعد مدنی رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب العلم باب ماذکر فی ذهاب موسی صلی الله علیه وسلم...** لاندې په تفصیل سره راغلی دی.[3]

**ابي**: دا ابراهیم بن سعد بن ابراهیم رحمه الله دې.

**صالح**: دا صالح بن کیسان المؤدب مدنی رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تفصیلی تذکره **كتاب الايمان باب من كره أن يعود فی الكفر...** لاندې راغلې ده.[4]

**ابن شهاب**: دامشهور محدث امام محمد بن مسلم ابن شهاب زهری دې. ددوې حالات مختصر بدء الوحی دریم حدیث کښې اوتفصیلی تذکره **كتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته** کښې تیره شوې ده.[5]

**عبدالحميدبن عبدالرحمن بن زيد**: دا جلیل القدر تابعی ابوعمر عبدالحمید بن عبدالرحمن بن زید بن الخطاب قرشی عدوی مدنی رحمه الله دې. دا دمشهور صحابی رسول حضرت زید بن الخطاب رضی الله عنه نمسې دې.[6] ددوی مور بی بی میمونه بنت بشر بن معاویه ده. د چاتعلق چه بنوبکاء بن عامر سره وو.[7] دا خلیفه راشد حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د طرف نه د یوې مودې پورې دکوفې گورنر هم پاتې دې.[8]

دې د خپل پلار عبدالرحمن بن زید نه علاوه ابن عباس، محمدبن سعدبن ابی وقاص، عبدالله بن عبدالله بن حارث بن نوفل، مسلم بن یسار جهنی، مقسم مولی ابن عباس اومکحول شامی رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کوی. بل د ام المؤمنین حضرت حفصه بنت عمر رضی الله عنهما او حضرت عون بن مالك اشجعی رضی الله عنه نه مرسلاً روایت کوی.

ددوی نه درې ځامن عبدالکبیر بن عبدالحمید، زید بن عبدالحمید او عمر بن عبدالحمید نه علاوه امام ابن شهاب زهری، قتاده، زید بن ابی انیسه اوحکم بن عتیبه رحمهم الله وغیره د حدیث روایت کوی.

---

[1] كشف البارى كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم: ۳۹۲-۳۸۲.
[2] كشف البارى: ۲۹۷/۳.
[3] كشف البارى: ۳۳۱/۳.
[4] كشف البارى: ۲/۲۱۲-۱۲۰.
[5] كشف البارى: ۳۲۶/۱ الحديث الثالث وكتاب الغسل: ۱۹٤.
[6] تهذيب الكمال: ٤٤٩/١٦رقم الترجمة: ۳۷۲٤ وسير أعلام النبلاء: ۱٤٩/٥.
[7] تهذيب الكمال: ٤٤٩/١٦ تهذيب ابن حجر: ۱۱۹/٦.
[8] تهذيب الكمال: ٤٤٩/١٦.

دي خليفه بن خياط رحمه الله د اهل مدينې د تابعينو د دويمې طبقې نه شمير کړې دی.[1] احمد بن عبدالله عجلی، نسائی، ابن خراش او ابوبکر رحمهم الله فرمائی ثقة.[2] ابن حبان رحمه الله د دوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دی.[3]

امام ذهبی فرمائی «الإمام الثقة الأمير العادل».[4] علامه مدائنی رحمه الله ليکلی دی چه حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله يو ځل عبدالحميد رحمه الله ته لس زره درهم انعام ورکړې وو.[5] د خليفه هشام بن عبدالملک د خلافت په زمانه کښې د ۱۱۰ هجری نه پس حران ښار کښې دهغوی انتقال شوې.[6] دې د ائمه سته متفق عليه راوی دې. رحمه الله تعالی رحمة واسعة.[7]

**محمدبن سعد بن ابي وقاص:** دا ابوالقاسم محمدبن سعد بن ابی وقاص زهری رحمه الله دې.[8]

**سعدبن ابي وقاص:** دا مشهور صحابی حضرت سعد بن ابی وقاص تيمی مدنی رضي الله عنه دې. دد وی تفصيلی حالات **كتاب الإيمان باب إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة....** لاندې بيان کړې شوی دی.[9]

**ترجمة الباب سره دَحديث مطابقت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت «ما لقيك الشيطان قط» کښې دې. چه په دې سره د شيطان وجود ثابتيږی. بل دا چه کوم بنده د الله تعالی شی دهغه مرضيات د الله تعالی د مرضياتو تابع کيږی نو په ده باندې د شيطان وار نه چليږی. بلکه تردې پورې ئې ترقی کيږی چه شيطان پخپله د دغه بنده نه بچ کيږی پټيږی او تختی

ددې باب اوويشتم او آخری حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث السابع وعشرون

۳۱۳۳- حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ يَزِيدَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِذَا اسْتَيْقَظَ أُرَاهُ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ فَتَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيتُ عَلَى خَيْشُومِهِ»[10]

---

[1] تهذيب الكمال: ۴۵۰/۱۶ طبقات خليفه: ۲۴۷.

[2] تهذيب الكمال: ۴۵۰/۱۶ تهذيب ابن حجر: ۱۱۹/۶.

[3] ۱۱۷/۷.

[4] سير أعلام النبلاء: ۱۴۹/۵.

[5] حواله بالا.

[6] حواله بالا وتهذيب الكمال: ۴۵۱/۱۶.

[7] تهذيب الكمال: ۴۵۱/۱۶ سير أعلام النبلاء: ۱۴۹/۵.

[8] دَدوی دَحالات دَپاره اوګورئی كتاب الزكاة باب قول الله عزوجل: ﴿لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾.

[9] كشف البارى: ۱۷۳/۲.

[10] قوله: عن أبي هريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه مسلم كتاب الطهارة باب الإيتار فى الاستنثار.... رقم: ۵۶۴/۲۳۸ والنسائى، كتاب الطهارة، باب الأمر بالاستنثار عند الاستيقاظ من النوم، رقم: ۹۰.

## تراجم رجال:

**ابراهيم بن حمزه:** دا ابراهيم بن حمزه بن محمد بن حمزه قرشي اسدي زبيري رحمه الله دي. ددوی تفصيلي تذکره کتاب الايمان باب بلاترجمه لاندې بيان کړې شوې ده.[1]

**ابن ابي حازم:** دا عبدالعزيز بن سلمة بن دينار مخزومي مدني رحمه الله دې.[2]

**يزيد:** دا يزيد بن عبدالله بن اسامه ليثي مدني رحمه الله دې.[3]

**محمدابراهيم:** دا محمد بن ابراهيم بن حارث تيمي قرشي رحمه الله دې. ددوی اجمالي حالات بدء الوحي او تفصيلي حالات کتاب الايمان باب ماجاء أن الأعمال بالنية.... لاندې نقل کړې شوي دي.[4]

**عيسي بن طلحه:** دا عيسیٰ بن طلحه بن عبيدالله بن عثمان تيمي قرشي رحمه الله دې. ددوی تفصيلي تذکره کتاب العلم باب الفتيا وهو واقف على الدابة وغيرها لاندې نقل کړې شوي دي.[5]

**ابوهريره:** دا مشهور صحابي حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. ددوی حالات کتاب الايمان باب أمور الإيمان کښې تيرشوي دي.[6]

**قوله: :قال: إذا استيقظ -أراه- أحدكم من منامه فتوضأ فليستنثر ثلاثة:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه ارشاد نقل کوي چه حضورپاك فرمائيلي دي چه کله تاسو کښې څوك د خپل خوب نه بيدار شي او اودس اوکړي نو درې ځل دې په پوزه کښې اوبه اچوي اوسونړدې کړي.

**په استنثار او استنشاق کښې فرق:** د استنثار معنی ده پوزه کښې د ساه راخکلو په ذريعه اوبه خيژول او راويستل، دې دپاره چه ګند وغيره صفاشي. يو څيز بل وي کوم ته چه استنشاق وائي ددې معنی ده پوزه کښې اوبه پورته پورې خيژول. استنثار استنشاق ته هم جامع دې. يعنی استنثار استنشاق کيدې شي مګر استنشاق استنثار نه شي کيدې. علامه عيني رحمه الله فرمائي: «والاستنثار من تمام فائدة الاستنشاق، لأن حقيقة الاستنشاق جذب الماء بريح الأنف إلى أقصاه، والاستنثار إخراج ذلك الماء»[7]

**قوله: :فإن الشيطان يبيت على خيشومه:** ځکه چه شيطان دهغه په پوزه کښې شپه تيروي

**دلفظ خيشوم تحقيق اوضبط:** خيشوم د خاء معجمه فتحه اوياء په سکون، دشين ضمه او واؤ په سکون سره دې. آخري لفظ ميم دې. ددې په تفسير کښې مختلف اقوال دي: علامه کرماني رحمه الله

---

[1]) کشف الباري: ۲/۲۶۲.

[2]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب نوم الرجال في المسجد.

[3]) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب مواقيت الصلاة باب الصلوات الخمس کفارة......

[4]) کشف الباري: ۲/۱۷۳۹/۳۳۸.

[5]) کشف الباري: ۳/۴۶۵.

[6]) کشف الباري: ۱/۶۵۹

[7]) عمدة القاري: ۱۵/۱۸۲ قال الحافظ: والمقصود من الاستنشاق تنظيف داخل الأنف، والاستنثار يخرج ذلك الوسخ مع الماء، فهو من تمام الاستنشاق" فتح الباري: ۶/۳۴۳.

فرمائي چه د پوزې آخري حصه خيشوم دې. ابن الملقن رحمه الله په قول پوزې ته وائي. خو علامه داؤدي رحمه الله وائي چه د پوزې دواړو سپيمو ته خيشوم وائي.(١)

**په پوزه كښې د شپې تيرولو معنې:** د شيطان په خيشوم كښې شپه تيرول خو په حقيقت باندې محمول دي چه په واقع كښې شيطان هلته شپه تيروي. يا په مجاز باندې محمول دې چه په پوزه كښې كوم خيرې وغيره جمع كيږي هغه په طاعات كښې دتازه والي او تيزنې نه محروم كول كوي. چنانچه كله بنده اودس كوي او په دغه وخت دپوزې صفائي كوي نو طبيعت تازه شي.(٢)

بياداسې اوګڼړئې چه د ظاهر حديث مقتضا داده چه شيطان دهريو اوده كيدونكي په پوزه كښې شپه كوي. مګر دا احتمال هم بهر حال شته چه دا هغه سړي سره مخصوص دې چه د اوده كيدو په وخت نقل شوې ادعيه ماثوره اهتمام نه كوي ځكه چه لړشان وړاندې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث تيرشوې دې. (٣)په كوم سره چه معلوميږي چه دالله تعالى په ذكرسره د شيطان نه حفاظت كيږي. د خالق لم يزل ذكر بنده د شيطاني اثراتو نه بچ كوي. دغه شان د آيت الكرسي په فضيلت كښې هم راغلي وو چه ((ولايقربك شيطان))(٤) چنانچه په دې حديث كښې د نفي قرب نه مراد دا هم احتمال كيدې شي چه هغه د آيت الكرسي په بركت سره د مقام وسوسه يعني دمسلمان د زړه طرف ته نه ځي نو د مجبورئې په پوزه كښې شپه تيره كړي. لكه څنګه چه مسلمان بنده بيدار وي نودهغه د زړه پورې رسيدل ممكن وي په دې وجه چه كله دخوب نه بيدارشي اودس كوي او په دې كښې پوزه سونړ كوي نودا عمل شيطان د بيدارئې نه پس په مقام وسوسه يعني زړه باندې د حملې كولونه منع كړي. دغه شان د خيشوم والا احاديث د هريو دخوب نه بيداريدونكي ته شامل وي. والله اعلم بالصواب. (٥)

**ترجمة الباب سره د حديث مطابقت:** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنى دې چه په پوزه كښې موجود خيرې وغيره د شيطان د لښكر د قبيل نه دي. دا د شيطاني لښكر كار كوي د كوم په موجودګئې سره چه سست او مړژواندې وي. ددې نه د جنود شيطان اثبات كيږي. او په حقيقت كښې بيتوتت مراد اخستلو په صورت كښې د شيطان د وجود اثبات كيږي. والله اعلم.(٦)

## ١٢ - باب : ذِكْرِ الْجِنِّ وَثَوَابِهِمْ وَعِقَابِهِمْ

**سابق باب سره مناسبت:** په سابقه باب سره دا وهم پيداكيدو چه د جنات نه صرف هم د شرصدور كيدې شي ځكه چه شيطان هم نوعًا هم جن دې. نوددې وهم لرې كول حضرت الامام رحمه الله داسې اوكړه چه دا باب ئې قائم كړو چه هغوى مكلف وي خير اوشر دواړه دهغوى نه صادر كيږي. (٧)

---

(١) عمدةُ القاري: ١٨٢/١٥فتح الباري: ٣٤٣/٦شرح الكرماني: ٢٠٩/١٣التوضيح: ٢١٩/١٩والكنز المتواري: ١٣/٢٠٨.

(٢) الكوثر الجاري: ٢١٥/٦.

(٣) باب سره پيوست د ابوهريره رضي الله عنه حديث مراد دې په كم كښې چه دي (فكانت له حرزا من الشيطان)رقم: ٣٢٩٣

(٤) اوګورئې هم د دې باب حديث نمبر ٣٢٧٥ د ابوهريره رضي الله عنه حديث.

(٥) فتح الباري: ٣٤٣/٦والكنز المتواري:٢٠٨/١٣.

(٦) الكوثر الجاري: ٢١٥/٦.

(٧) لامع الدراري: ٣٧٩/٧والكنز المتواري: ٢٠٩/١٣.

**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه حضرت امام بخارى رحمه الله ددې ترجمة الباب په ذريعه د دوو امورو طرف ته اشاره كړې ده. يوخودا چه د جنات وجود برحق دې. بل دا چه هغوى مكلف دى هغوى ته به هم د انسانانو په شان په طاعات باندې ثواب او په گناهونو باندې عذاب وركولې شى. تفصيل ان شاء الله په وړاندې صفحاتوكښې راځى.

**دجنات وجود برحق دې:** لكه څنګه چه اوس تيرشوچه دجنات وجودبرحق دې ددې كائنات په رنګ او بوئى كښې صرف هم انسان يوازې نه دې نورهم ډير مخلوق شته.داصرف د نن دمدعيان دعقل خبره نه ده بلكه دهرې زمانې هغه خلق چه خپل ځان ډيرعقل مند ګڼړى دجناتو انكاركونكى راروان دى چنانچه اكثر فلاسفه، زنادقه [1] اومعتزله [2] د جنات د وجود انكار كوى. هغوى سره د جناتو دعدم وجود دپاره څه دليل خوشته دې نه ، بس هغوى دغه وائى كه چرې وې نو هغوى ته به هم محسوس كيدې او په نظر به راتلې. [3]

ليكن دا څه دليل نه دې ځكه چه يونابينا سړې وى نوهغه ته شين رنګ ښكارى نه تور ، نه سور رنګ وينى اونه سپين، نوكه هغه اوس چرته اووائى چه ماته خودا رنګونه هډو ښكارى نه لهذا زه دا نه منم نوددهغه انكار به څوك عقل مند صحيح اوګرځوى؟ دغه شان كه جنات مونږ چرته دهغوى د لطيف بدن د وجې نه محسوس كولې نه شو نو په دې سره دا څنګه لازم شو چه دهغوى د وجود نه انكار صحيح اوګرځولې شى؟

امام الحرمين علامه جوينى رحمه الله فرمائي چه يو دهريه او بې دين سړې به د جنات اودهغې د وجودنه انكار كوى اونه ئې منى نو په دې باندې هيڅ د حيرانتيا خبره نشته. خو په هغه خلقو باندې بهرحال حيرانتياكيږى چه شريعت او د شريعت اصول منى پيژنى بيا هم د جنات نه انكار كوى. د كتاب الله اوسنت متواتره نه د جنات ثبوت كيږى. [4]

**اصول ثلاثه او سرسيداحمدخان:** د هندوستان سرسيد احمدخان هم د جنات مخلوق كيدو انكار كوى اودا يوقسم قوت بهيميه ښائى. هغه وائى چه دا د مسلمانانود يووهم او علماء اسلام د يوكهيل

---

[1] قال إمام الحرمين الجوينى رحمه الله: اعلموا – رحمكم الله – أن كثيرا من الفلاسفة، وجماهير القدرية، وكافة الزنادقة أنكروا الشياطين والجن رأسا...." آكام المرجان فى غرائب الأخبار وأحكام الجان: ١٣، الباب ألاول فى بيان إثبات وجودالجن. قدريه وقال القاضى أبوبكر الباقلانى رحمه الله: وكثير من القدرية يثبتون وجود الجن قديما، وينفون وجودهم الآن. ومنهم من يقر بو جودهم...."حواله بالا.

[2] قال أبوالقاسم الأنصارى رحمه الله وقد أنكرهم معظم المعتزلة، ودل إنكارهم إياهم على قلة مبالاتهم، وركاكة دياناتهم...." حواله بالا.

[3] قال القاضى أبويعلى الحنبلى رحمه الله: الجن أجسام مؤلفة، وأشخاص ممثلة، ويجوز أن تكون كثيفة، خلافا للمعتزلة فى قولهم: أنهم أجسام رقيقة، ولرقتهم لا نراهم، والدلالة على ذلك علمنا بأن الأجسام يجوز أن تكون رقيقة، ويجوز أن تكون مستقيمة، ولا يمكن معرفة أجسام الجن أنها رقيقة أو كثيفة إلا بالمشاهدة أو الخبر الوارد عن الله تعالى أو عن رسول الله صلى الله عليه وسلم، وكلا الأمرين مفقود، فوجب أن لا يصح أنهم أجسام رقيقة أصلا. فأما قولهم: إن الجن إنما كانت أجساما رقيقة، لأننا لا نراها، وإنما لم نرها لرقتها، فلا يصح، لأننا قد دللنا على أن الرقة ليست بمانعة عن الرؤية، ويجوز أن تكون الأجسام الكثيفة موجودة ولا نراها، إذا لم يخلق الله تعالى فينا الإدراك" آكام المرجان:٢٧الباب الرابع، فى بيان أجسام الجن.

[4] آكام المرجان: ١٣فتح البارى: ٦/٣٤٣

نه سوا بل هيڅ نه دی. لکه عام مسلمانان ويرولو او د رکه کولودپاره استعمالولې شی. [1] حالانکه هغه مدعی اسلام دې اوپخپله په دې قرآن کښې د جنات تذکره په څو خايونو کښې راغلې ده. قرآن کريم اوريدو سره د جنات د ايمان راوړو تصريح هم په قرآن پاك كښې ذكر ده. [2] خو سرسيداحمدخان ددې نه انحراف او انکارکړې دې. د نه منلو لار نې اختيـارکړې ده او عجيبه قسم تـاويلات كولوسره نې د خپلو آقاګانو دخوشحالولو سعى لاحاصل كړې. حالانکه د قرآن اوسنت نه علاوه ټول صحابه تـابعين تبع تابعين او ټولو په دې باندې ايمان وو اودې. د څوارلسو سوو كالونه د پوره امت مسلمه په دې باندې اتفاق اواجماع راروانه ده چه جنات يو مستقل مخلوق دې.

**عقل سليم اوعقل سقيم:** اوعقـل سليم تـه هـم ددې نه انكـار نشته. په دنياكښې څومره خلق دی چه مسلمانان نه دی مګر هغوی د جنات وجود منی ځکه چه په دې کښې عقلاً څه استبعاد نشته خو په دې شرط چه عقل سليم وی ګنی د عقل سقيم هيڅ عـلاج نشته دې. مشكل خودادې چه عقـل سقيم اودهريت اوالحاد يوځيز هغه وخت نه تسليم كوی تركومې چه هغـه په خپـل جسمانی سترګه باندې اونه وينی يا د حواس خمسه په ذريعه هغه محسوس نه کړی.

مګردا صرف يوه مغالطه ده په اصل كښې د يوځيز نه ليدل دهغه د وجود د ناپيدكيدو ثبوت نـه شـی كيدې. په دنيا كښې ډير شيان داسې دی كوم چه مونږ تـه نه ښكارى ليكن كـه دهغې تعلق د اسـلام سره دې نودمخبر صادق د خودلود وجې نه .... اوكه چرې دهغې تعلق د امور تكوينيه سره دې نو دهغې د ماهر په تصديق باندې عقل سليم دهغې وجود تسليم کوی. دمثـال په توګـه مونږ صرف يو حقيقت واقعيه ذكركوو. د مار په ټك وركولوسره انسان بلكه هرځناور باندې زهر چراويږی كومه چه د عام مشاهدې خبره ده خو په دم كولوسره اوترياق وركولوسره زهر كوزيږی اود هغې اثر ختميږی. ليكن دا زهر چا ته په نظر نه راځی.... خو منی نې ټول. دې نه علاوه په سائنسی علومو سره هم د جنات او فرښتو وغيره مخلوق موجودكيدل ثابت دی. د نن جديد ايكسرې مشينونو خو ډير معدوم شيانو ته د موجود درجه وركړې ده. [3]

---

[1]) اوګورئی دسرسيد احمدخان تفسير القرآن حصه دريم ص: ۵۷-۷۲ سورة الأنعام تحت قوله تعالى ﴿يَٰمَعۡشَرَ ٱلۡجِنِّ وَٱلۡإِنسِ﴾.

[2]) قال الله تعالى ﴿وَإِذۡ صَرَفۡنَآ إِلَيۡكَ نَفَرٗا مِّنَ ٱلۡجِنِّ يَسۡتَمِعُونَ ٱلۡقُرۡءَانَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوٓاْ أَنصِتُواْۖ فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوۡاْ إِلَىٰ قَوۡمِهِم مُّنذِرِينَ۝ قَالُواْ يَٰقَوۡمَنَآ إِنَّا سَمِعۡنَا كِتَٰبًا أُنزِلَ مِنۢ بَعۡدِ مُوسَىٰ مُصَدِّقٗا لِّمَا بَيۡنَ يَدَيۡهِ يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلۡحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٖ مُّسۡتَقِيمٖ۝ يَٰقَوۡمَنَآ أَجِيبُواْ دَاعِيَ ٱللَّهِ وَءَامِنُواْ بِهِۦ يَغۡفِرۡ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمۡ وَيُجِرۡكُم مِّنۡ عَذَابٍ أَلِيمٖ۝ وَمَن لَّا يُجِبۡ دَاعِيَ ٱللَّهِ فَلَيۡسَ بِمُعۡجِزٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَيۡسَ لَهُۥ مِن دُونِهِۦٓ أَوۡلِيَآءُۚ أُوْلَٰٓئِكَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٍ۝﴾ [الأحقاف: ۲۹-۳۲].

[3]) دتفصيل دپاره اوګورئی محرف قرآن: ۱۴۰-۱۳۸والانتباهات المفيدة (عربی): ۱۶۲. وقال الإمام ابن تيمية الحرانی الدمشقی رحمه الله: لم يخالف أحد من طوائف المسلمين فی وجودالجن، وجمهور طوائف الكفار علی إثبات الجن. أما أهل الكتاب من اليهود والنصاری، فهم مقرون بهم كإقرار المسلمين، وإن وجد فيهم من ينكر ذلک، فكما يوجد فی بعض طوائف المسلمين، كالجهمية والمعتزلة من ينكر ذلک، وإن كان جمهور الطائفة وأئمتها مقرون بذلک، لأن وجود الجن تواترت به أخبار الأنبياء، عليهم السلام، تواترا معلوما بالاضطرار" ومعلوم بالاضطرار أنهم: أحياء، عقلاء، فاعلون بالإرادة، مأمورون منهيون، ليسوا صفات وأعرضا قائمة بالإنسان أوغيره، كما يزعمه بعض الملاحدة. فلما كان أمرالجن متواترا عن الأنبياء عليهم السلام تواترا ظاهرا يعرفه العامة والخاصة لم يمكن طائفة من طوائف المؤمنين بالرسل أن ينكرهم.

فالمقصودهنا: أن جميع طوائف المسلمين يقرون بوجود الجن، وكذلک جمهور الكفار كعامة أهل الكتاب، وكذلک عامة مشركی العرب وغيرهم من أولاد سام، والهند وغيرهم من أولاد حام، وكذلک جمهور الكنعانيين واليونانيين وغيرهم من أولاد يافث، فجماهير الطوائف تقربوجود الجن، بل يقرون بما يستجلبون به معاونة الجن من العزائم والطلاسم، سواء كان ذلک سائغا

**جنات مكلف دي**: جنات د شريعت دافعالو مكلف دی که نه؟ نو ددې جواب دادې چه مكلف دی. حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي: «وهم عند الجماعة مكلفون مخاطبون، لقوله تعالى: ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ﴾ (١)، وقوله تعالى: ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ (٢)، وقوله: ﴿سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلَانِ﴾ (٣)» (٤)
نور فرمائي چه داسلام علماء كرام ټول په دې باندې متفق دی چه محمد ﷺ د انسانانو او جناتو دواړو رسول او دواړو د پاره بشير اونذيردې. د حضورپاك ددې دواړو انواع طرف ته مبعوث كيدل هم د حضورپاك ﷺ د ډيرو زياتو خصوصياتونه يوخاصيت دې. دكوم په بنياد باندې چه رسول الله ﷺ ته په نورو انبياء كرامو عليهم السلام باندې فضيلت وركړې شوې دې چه د انبياء سابقينو بعثت صرف د خپل ژبې والاقوم طرف ته كيدلو خو حضورپاك ټولو پيريانو اوانسانانوطرف ته مبعوث كړې شوې دې. (٥)
علامه رازى رحمه الله فرمائي: «أطبق الكل على أن الجن كلهم مكلفون» (٦) چه ددوى د مكلف بالافعال كيدو باندې د ټولو اجماع ده. قاضى عبدالجبار همذانى رحمه الله فرمائي چه په اهل علم كښې د جناتو په نه مكلف كيدو كښې هيڅ اختلاف زمونږ په علم كښې نشته دې. بلكه د ټولو ددوى په مكلف كيدو باندې اجماع ده. ليكن بعض حشويه وائي چه هغوى په خپلو افعالوكښې مضطر وى. دهغوى نه د افعالو صدور په اضطرارى توګه سره كيږى. خودا قول غلط دې الله تعالى دوى مكلف ګرځولى دى اودا د دې خبرې دليل دې چه دهغوى افعال دهغوى په اختيار سره صادر كيږى.
ګورئى الله تعالى په قرآن كريم كښې ځائى په ځائى د شيطانانو مذمت كړې دې. په هغوى لعنت كړې دې. دهغوى د مكراو فريب نه د بچ كيدو تاكيدئى كړې دې. بل الله تعالى مختلف قسم عذابونه هم ذكر كړى دى كوم چه به شيطانانوته وركولې شى. د پوهيدلوچه كومه خبره ده هغه داده چه الله تعالى دا ټول هرڅه هغوى سره كوى چاچه د اوامر اونواهى مخالفت كړې وى، دكبائرارتكاب ئى كړې وى او

عندأهل الإيمان، أو كان شركا، فإن المشركين يقرؤون من العزائم والطلاسم والرقى ما فيه من عبادة للجن وتعظيم لهم، وعامة ما بأيدى الناس من العزائم والطلاسم والرقى التى تفقه بالعربية فيها ما هو شرک بالله، ولهذانهى علماء المسلمين عن الرقا التى لا يفقه بالعربية معناها، لأنها مظنة الشرک، وإن لم يعرف الراقى أنها شرک.
وفي الصحيح: عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه رخص مالم تكن شركا، وقال: من استطاع أن ينفع أخاه فليفعل. [رواه مسلم فی صحيحه كتاب السلام، باب استحباب الرقية من العين.... رقم: ٢١٩٩ وأحمدفى مسنده: ٣٠٢/٣ رقم: ١٤٢٨٠ و ٣١٥/٣ رقم: ١٤٤٣٥ و ٣٩٣/٣ رقم: ١٥٣٠٥] وقدكان للعرب وسائر الأمم من ذلک أمور يطول وصفها، وأمور وأخبار العرب فی ذلک متواترة عند من يعرف أخبارهم من علماء المسلمين، وكذلک كان عند غيرهم، ولكن المسلمين أخبر بجاهلية العرب منهم بجاهلية سائر الأمم". (مجموع الفتاوى: ١٠٨٩/١٠).
(١) سورة الأنعام: ١٣٠، الرحمن: ٣٣.
(٢) سورة الرحمن: ١٣.
(٣) سورة الرحمن: ٣١.)).......
(٤) التمهيد لابن عبدالبر: ١١٧/١١ افضل محمدعليه السلام على سائر الأنبياء.
(٥) حواله بالا.
(٦) التفسير الكبير: ٢٨/١٤-٢٧ الأحقاف: ٣٢-٢٩.

په محرماتو كښې اخته شوې وى حالاتكه هغه ددې تولونه بچ كيدې شو نيكنى كولې شوې اوهغه مكمل توګه باندې اختيارمند وو.

د جناتو په شريعت باندې مكلف كيدو دويم دليل ذكركولوسره قاضى همذانى رحمه الله فرمائى چه د نبى كريم ﷺ د دين يوه حصه داهم ده چه په شيطانانو باندې لعنت اوكړې شى دهغوى حالات خلقوته بيان كړې شى اوعامو انسانانو ته دا اوخودلې شى چه دوى د شر اوګناهونو دعوت وركوى اود ګناهونو وسوسې اچوى. دا هم د جناتو په مكلف كيدو باندې دلالت كوى.([1])

**شيطانانو او جناتو ته به ثواب يا عقاب كيږى؟:** دې نه پس بيا يو بل اختلاف دې هغه دا چه شيطانانو او جناتو ته به دهغوى داعمالو صالحه ثواب او د ګناه داعمالو عقاب اوعذاب وى كه نه؟ د علماء اسلام اتفاق او اجماع ده چه كافرانو جناتو ته به په آخرت كښې عذاب وركولې شى. د الله تعالى ارشاد دې: ﴿قَالَ النَّارُ مَثْوٰىكُمْ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ﴾([2]) هم دغه شان دالله تعالى ارشاد دې ﴿وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا﴾([3]) چه مونږ مخلوق جنات نه كوم چه ظالمان دى يعنى كافران اومشركان وى هغوى به په آخرت كښې د دوزخ خشاك جوړيږى.([4])

**دمومن جنات حكم:** مؤمنانو جناتو سره به څه معامله كيږى؟ په دې كښې د علماء اسلام دوه اقوال دى: رومبې مذهب اوقول دادې چه صرف د دوزخ نه خلاصې اونجات به د هغوى انعام وى بيا به هغوى ته د حساب كتاب كيدو نه پس حكم وركولې شى چه تاسو هم د خناورو په شان خاورې شئ.

حضرت ليث بن ابى سليم رحمه الله فرمائى چه د جنات ثواب به داوى چه هغوى ته به د دوزخ نه پناه وركړې شى بيا به هغوى ته وئيلې شى چه تاسو اوس خاورې شئ.([5]) حضرت ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله فرمائى چه كله جنتيان په جنت كښې او دوزخيان په دوزخ كښې داخل شى نو الله تعالى به ټول مخلوقاتو ته او مومنانو جناتو ته حكم وركړې تاسو خاورې شئ. نوهغوى به خاورې شى په دې موقع باندې به كافران د تمنا په توګه وائى: ﴿يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا﴾([6]) كاش چه زه هم نن خاورې شوې وې.([7]) ددې مذهب نور تفصيل په وړاندې باب كښې راځى ان شاء الله. په دې سلسله كښې دويم مذهب دادې چه دوى ته به په طاعات اوحسنات باندې انعامات ملاويږى په سيئات او نافرمانئى باندې به سزا ملاويږى. دا د امام ابن ابى ليلى، امام مالك، امام اوزاعى، امام شافعى، امام احمد او دهغوى تلامذه اود صاحبين (ابويوسف ومحمد رحمهم الله) مسلك دې. د امام اعظم رحمه الله نه هم يوروايت هم

---

[1] آكام المرجان: ۵۶الباب الخامس عشر فى بيان تكليف الجن، فصل.

[2] سورة الانعام: ۱۲۸.

[3] سورة الجن: ۱۵.

[4] آكام المرجان: ۸۳الباب الثالث والعشرون فى بيان دخول كفار.... عمدة القارى: ۱۸۴/۱۵ولقط المرجان للسيوطى: ۷۶ذكر عقابهم وثوابهم.

[5] فتح البارى: ۳۴۶/۶عمدة القارى: ۱۸۴/۱۵وآكام المرجان: ۸۱ الباب الثانى والعشرون والأشراف فى منازل الأشراف لابن أبى الدنيا رقم: ۳۵۶ ولقط المرجان: ۷۷.

[6] سورة النبأ: ۴۰.

[7] تفسير الطبرى: ۸۸/۲۷وكتاب العظمة لأبى الشيخ رقم: ۱۱۶۸وآكام المرجان: ۸۱ولقط المرجان: ۷۷.

دغه دي. بلكه دا د جمهور علماء اسلام مذهب دي. [۱] د جمهورو د مذهب دلائل ډيرزيات دى. د قرآن كريم ډير آياتونه اود نبى عليه السلام ډير احاديث په دې موقف باندې مضبوط دلائل دى چه جناتو ته به هم د جنت نعمتونه حاصليږى لكه چه شاته تير شو چه هغوى د آيات او وعيد لاندې داخل دى اومكلف دى. په دې باندې دامت اجماع ده نودا به عجيبه شان خبره شي چه په وعيد كښې خودې هغوى انسانو سره شامل وى مګر په نعمت كښې شامل نه وى. ابن حزم رحمه الله مختلف آيات (كوم چه وړاندې راغى) نقل كولونه پس ليكى:

«وهذه صفة تعم الجن والإنس عموما، لا تجوز ألبتة أن يخص منها أحد النوعين، ومن المحال الممتنع أن يكون الله تعالى يخبرنا بخبر عام، وهو لا يريد إلا بعض ما أخبرنا به، ثم لا يبين ذلك هو ضد البيان الذي ضمنه الله تعالى لنا، فكيف وقد نص على أنهم من جملة المؤمنين الذين يدخلون الجنة ولا بد» [۲]

**دمخلوقاتو څلورقسمونه:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى د مخلوقاتو په اعتبارد عذاب او ثواب څلور قسمونه دى. يو مخلوق به جنت ته ځي او يو به دوزخ ته ځي او دوه مخلوقات به جنت او دوزخ دواړو ته ځي. چنانچه هغه مخلوق چه په مكمل توګه به جنتي وى هغه ملائكه دى. هغه مخلوق چه په مكمل توګه به دوزخي وى هغه شيطانان دى. بل هغه دوه مخلوقات كوم چه به جنت او دوزخ دواړو ته ځي دا د جنات او انسانانو مخلوق دې. په دوى كښې به د مسلمانانو انعام او اكرام كيږى او په كافرانو باندې به عذاب وى. [۳]

**په انعام اوعذاب دواړو كښې حصه دار:** مشهور تابعى بزرګ حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه جنات د ابليس او انسان د آدم عليه السلام اولاد دې. په دوى كښې هم مؤمن دى او په هغوى كښې هم اودوى به په عذاب اوثواب كښې هم حصه دار وى. چنانچه څوك د دې مخلوق نه او دهغه مخلوق نه مؤمن وى هغه به د الله تعالى دوست وى. بل چه څوك ددې مخلوق نه يا دهغه مخلوق نه كافر وى هغه شيطان دې او د الله دښمن دې. [۴]

**دجنات به په اخرت كښې كوم ځائى ټكانه وى:** د مؤمن جناتو باره كښې چه كله دا ثابته شوه چه هغوى به په طاعات باندې د انعام اواكرام مستحق وى نو اوس په دې كښې اختلاف پيداشو چه د هغوى انعام به څه وى؟ آيا هغه به په جنت كښې داخليږى كه نه؟ په دې كښې د امت د علماؤ څلور اقوال دى: اولنې قول دادې چه جنات به په جنت كښې داخليږى اود هغه ځائى د نه ختميدونكو هميشه د نعمتونو نه به خوندونه اخلى. مبشر بن اسماعيل فرمائى چه مونږ د ضمره بن حبيب په مجلس كښې ددې خبرې تذكره اوكړه چه جنات به جنت ته داخليږى كه نه؟ نو ضمره اوفرمائيل چه

---

[۱] عمدة القارى: ۱۵/۱۸٤فتح البارى: ۶/۳٤۶ولقط المرجان فى أحكام الجان للسيوطى: ۷۷وآكام المرجان: ۸٤الباب الرابع والعشرون.

[۲] الفصل فى الملل والأهواء والنحل: ۳/۳۰۸الكلام فى تعبدالملائكة..... وآكام المرجان: ۸۵

[۳] الأثر صحيح كتاب العظمة لأبى الشيخ رقم: ۱۱۶۸وابن جرير فى تفسيره: ۲۷/۸۸ولقط المرجان للسيوطى: ۷۸.

[۴] لقط المرجان للسيوطى:۷۸.

هغوى به جنت ته ځي[1] د دې خبرې تصديق د قرآن كريم په دې آيت مبارك كښې دې. ﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾ [2] چنانچه د جنات د پاره به جنيات ښځې او د انسانانو د پاره انسانانې ښځې وى. [3] دا قول د جمهورو مختار دې. ابن حزم ظاهرى رحمه الله په الملل كښې دا د ابن ابى ليلى رحمه الله او د امام ابو يوسف رحمه الله او د جمهورو قول خودلې دې او ليكلى ئې دى چه ((وبه نقول)). [4]

بل قول دا دې چه جنات به جنت ته د ننه نه شى تللې بلكه د هغې په اطرافو كښې به وى. په داسې ځائى كښې به وى چرته چه انسانان خو به هغوى وينى مگر انسانان به دوى نه وينى. دا قول د ائمه ثلاثه او صاحبين نه نقل دې. د ابن تيميه رحمه الله تحقيق هم دغه دې. [5] ابن حزم رحمه الله امام ابو يوسف رحمه الله د اول قول په قائلينو كښې شمير كړې وو. [6] دريم قول دا دې چه هغه به د جنت نه بهر اعراف كښې وى. او څلورم قول د توقف او سكوت دې. دا د امام اعظم رحمه الله طرف ته منسوب دې. [7]

**يوه اهم تنبيه:** كومو حضراتو چه د اعراف والا قول اختيار كړې دې د هغوى مستدل د حافظ ابو سعيد محمد بن عبد الرحمن رحمه الله هغه حديث دې كوم چه هغوى خپل امالى كښې په خپل سند سره د حضرت انس رضى الله عنه نه روايت كړې دې. د دغه روايت الفاظ دا دى: **((عن أنس عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: إن مؤمنى الجن لهم ثواب، وعليهم عقاب، فسألنا عن ثوابهم، فقال: على الأعراف، وليسوا فى الجنة. فقالوا: وما الأعراف؟ قال: حائط الجنة، تجري من الأنهار، وتنبت فيه الأشجار والثمار)) اللفظ للآكام.** [8]

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه مومنانو جنات ته به ثواب ملاويږى او هغوى ته به سزا هم وركيږى. نو مونږ صحابه كرامو د هغوى د ثواب باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى عليه السلام اوفرمائيل د هغوى ثواب به اعراف وى هغوى به په جنت كښې د ننه نه وى. نو صحابه كرامو اووئيل اعراف څه ځيز دې؟ نو ونې فرمائيل هغه د جنت يو باغ دې د كوم نه چه نهرونه راوځى او په هغې كښې ونې راټوكيږى او ميوې لگى. علامه بدر الدين شبلى رحمه الله فرمائى چه زمونږ شيخ حافظ ذهبى رحمه الله دې حديث ته منكر جداً وئيلې دې. والله تعالى اعلم. [9]

**لِقَوْلِهِ: ﴿يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي - إِلَى قَوْلِهِ - عَمَّا يَعْمَلُونَ﴾/الأنعام: ١٣٠-١٣٢/. ﴿بَخْسًا﴾/الجن: ١٣/: نَقْصًا.**

---

[1] د مشهور صوفى بزرگ حضرت امام حارث محاسبى رحمه الله مذهب دا دې چه جنات به جنت كښې داخليږى مگر هغوى به انسانان نه وينى. په هغوى كښې به دا صلاحيت هلته نه وى هلته به د دنيا برعكس معامله وى. عمدة القارى: ١٥/١٨٥ آكام المرجان: ٨٤ ولقط المرجان: ٧٩.

[2] سورة الرحمن: ٧٤.

[3] آكام المرجان: ٨٦-٨٥ ولقط المرجان: ٧٨ وتفسير ابن جرير طبرى: ٢٧/٨٨ وأبو الشيخ فى العظمة رقم: ١١٦٨.

[4] الفصل فى الملل والأهواء والنحل: ٣/٣٠٨ الكلام فى تعبد الملائكة..... وآكام المرجان: ٨٦-٨٥ ولقط المرجان: ٧٩ عمدة القارى: ١٥/١٨٤ فتح البارى: ٦/٣٤٦.

[5] آكام المرجان: ٨٥ عمدة القارى: ١٥/١٨٤ فتح البارى: ٦/٣٤٦ ومجموع الفتاوى: ١٩/٣٨.

[6] آكام المرجان: ٨٤ عمدة القارى: ١٥/١٨٤ فتح البارى: ٦/٣٤٦.

[7] حواله جات بالا روح المعانى للألوسى: ٩/١٣/١٨٩ الأحقاف: ٣١ التوضيح لابن الملقن: ١٩/٢٢٢.

[8] آكام المرجان: ٨٧ رقم: ١٥٨ عمدة القارى: ١٥/١٨٤ كتاب البعث والنشور للبيهقى: ٨٥-٨٤ رقم: ١٧.

[9] آكام المرجان: ٨٧.

دالله تعالى ددې ارشاد مبارك د وجې نه: اې د پيريانو او انسانانو ټوليه آيا تاسو ته هم ستاسو نه پيغمبر (ﷺ) نه وو راغلي؟ چه تاسو ته به ئې زما احكام بيانول اوتاسو ته به ئې د دې نن ورځې خبر دركولو؟ هغوى ټول به عرض كوى چه مونږ په خپل ځان باندې اقرار كوو. اوهغوى ددنيا ژوند په هيره «دهوكه» كښې اچولى دى اوهغه خلق به اقرار كوى چه مونږ كافران وو. داددې دپاره دى چه ستا رب يوكلي والاد كفر د وجې نه په داسې حالت كښې نه هلاك كوى چه د دغه كلي والابې خبره وى. اودهر يو دپاره به درجات ملاوى دهغه د اعمالو د وجې. اوستا رب دهغوى د اعمالونه ناخبره نه دې. [1]

**مكمل ايات مباركه:** پورته د دريو آياتونو ترجمه ذكركړې شوې ده مكمل آيات داسې دي: ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيٰتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا قَالُوا شَهِدْنَا عَلٰى أَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوا عَلٰى أَنْفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كٰفِرِينَ۝ ذٰلِكَ أَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّأَهْلُهَا غٰفِلُونَ۝ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا وَمَا رَبُّكَ بِغٰفِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ۝﴾

**د ايات مباركه نه دامام بخارى استدلال:** په دې آياتونو مباركو سره امام بخارى رحمه الله د جمهورو تائيد كړې دې. او دليل ئې پيش كړې دې چه جنات مكلف دى. چنانچه دې آياتونو كښې د انسانانو سره سره جنات هم د عقاب او سزا نه ويرولې شى. هم دغه دمكلف كيدو نښه ده. په دې وجه اوفرمائيلې شو ﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيٰتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا قَالُوا شَهِدْنَا عَلٰى أَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوا عَلٰى أَنْفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كٰفِرِينَ۝﴾ اودغه شان وړاندې تلو سره په دې پسې ارشاد اوفرمائيلې شو ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا﴾ ددې نه معلومه شوه لكه څنګه چه به انسانانو ته درجات وركولې شى اوثواب به ملاويږى دغه شان به جناتو ته هم درجات وركولې شى اوهغوى ته به هم ثواب ملاويږى.

علامه عينى رحمه الله فرمائى:

«اللام في لقوله للتعليل للترجمة لأجل الاستدلال، وجه الاستدلال أن قوله تعالى: ﴿وَيُنْذِرُونَكُمْ﴾ يدل على العقاب وقوله: ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا﴾ يدل على الثواب» [2]

د حضرت ګنګوهى رحمه الله تقرير هم د جمهورو موافق دې. هغه دترجمة الباب مقصد اوسابق سره مناسبت بيانولوسره فرمائى چه سابقه باب سره دا وهم پيداكيدلو چه د جنات نه صرف هم د شر صدور كيدې شى څكه چه شيطان هم د جن د نوع نه دې. نوددې وهم لرې كول امام بخارى رحمه الله داسې اوكړو چه دا باب ئې اوتړلو چه هغوى مكلف وى لكه چه انسان مكلف دې. دهغوى مطيع به د ثواب مستحق او دهغوى ګناهګار به د عذاب مستحق وى.

دې نه علاوه شيطان د لعنت او رټلو د سزا په دې وجه ګرځولې شوې دې چه هغه شرارت كړې وو اودالله تعالى دحكم منلو نه ئې انكاركړې وو نه چه د جن كيدو د وجې نه. جن كيدل هيڅ جرم نه دې اونه دا د شر استعاره ده هغه هم يو قسم دې لكه چه بشر يوقسم دې څنګه چه دوى مكلف دى دغه شان هغوى هم مكلف دى. [3]

**حضورپاك ﷺ رسول الثقلين دې:** امت مسلمه په دې باندې متفق دې چه الله تعالى حضرت محمد ﷺ د پيريانو او انسانانو دواړو د پاره مبعوث كړې وو. حضورپاك ﷺ د ثقلين نبى او رسول دې.

---

[1] بيان القرآن بتغيير يسير: ۵۹۰/۱.

[2] عمدة القارى: ۱۸۵/۱۵

[3] لامع الدرارى: ۳۷۹/۷الكنز المتوارى:۲۱۱-۲۰۹/۱۳.

صحیحینو کښې د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنهما مشهور حدیث دې چه رسول الله ﷺ خپل خصوصیات شمیرلو سره اوفرمائیل: ((أعطیت خمسا، لم یعطهن أحد من الأنبیاء قبلی، ......، وکان النبی یبعث إلی قومه خاصة، وبعثت إلی الناس عامة))[1] یعنی ماته پنځه داسې خصوصیتونه راکړې شوی دی چه مانه وړاندې چاته نه دی ورکړې شوی (په هغې کښې یو دا هم دی چه مانه وړاندې) به یونبی صرف د خپل قوم طرف ته مبعوث کولې شو، خو زه د ټولو خلقو (ناس) طرف ته لیګلې شوې یم.

ابن عقیل رحمه الله فرمائی چه لغوی اعتبارسره جنات هم په ناس کښې داخل دی. علامه راغب اصفهانی رحمه الله فرمائی: ((الناس: جماعة حیوان ذی فکر وروئیة، والجن لهم فکر وروئیة، والناس من ناس ینوس: إذا تحرك))[2]

هم دغه شان د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه د حضورپاك ارشاد مبارك دې ((أرسلت إلی الجن والإنس، وإلی کل أحمر وأسود))[3].

**ایا د رسول الله ﷺ نه وړاندې په جنات کښې نبي تیر شوې دې؟** علامه بدرالدین شبلی رحمه الله په دې باندې تفصیلی بحث کړې دې چه حضورپاك علیه السلام رسول الثقلین دې. خود حضورپاك د بعثت نه وړاندې څه معامله وه؟ آیا د جنات د طرف نه هم د دوی نه څوك جن نبی هم تیرشوې دې؟ نو په دې کښې د علماء امت اختلاف دې. چنانچه د ترجمة الباب لاندې ذکر کړې شوې آیت ﴿یٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ یَاْتِکُمْ رُسُلٌ مِّنْکُمْ یَقُصُّوْنَ عَلَیْکُمْ اٰیٰتِیْ وَیُنْذِرُوْنَکُمْ لِقَآءَ یَوْمِکُمْ هٰذَا قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓی اَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا وَشَهِدُوْا عَلٰٓی اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ کَانُوْا کٰفِرِیْنَ ۞ ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ یَکُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰی بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ۞ وَلِکُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا یَعْمَلُوْنَ ۞﴾ نه استدلال کولو سره حضرت ضحاك رحمه الله او حافظ ابن حزم ظاهری رحمه الله دا موقف اختیار کړې دې لکه څنګه چه په انسانانو کښې انسان نبی مبعوث شوې دې دغه شان په قوم جنات کښې هم د هغوی نه جن نبی تیرشوې دې.

حافظ ابن جریر رحمه الله په سند موصول سره نقل کړی دی چه: ((سئل الضحاك عن الجن، هل کان فیهم من نبی قبل أن یبعث النبی صلی الله علیه وسلم؟ فقال: ألم تسمع إلی قول الله تعالی: ﴿یٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ﴾ یعنی بذلك أن رسلا من الإنس ورسلا من الجن؟ قالوا: بلی))[4]

هم دغه شان حافظ ابن حزم ظاهری رحمه الله هم فرمائی چه د نبی کریم د بعث نه وړاندې په انسانانو کښې یونبی د جنات طرف ته نه دې لیګلې شوې ځکه چه جنات د انسانانو د قوم نه دی. لیکن رسول الله ﷺ پخپله ارشاد فرمائیلې دې چه سابقه امتونو کښې هر نبی د یو نه یو خاص قوم طرف ته لیګلې

---

[1] رواه البخاری فی کتاب التیمم باب بلاترجمة رقم: ۳۲۵ وفی مواضع أخری من صحیحه، انظر کشف الباری، کتاب التیمم: ۸۳ ومسلم کتاب المساجد... باب المساجد..... رقم: ۵۲۱.

[2] آکام المرجان: ۵۹ الباب السابع عشر، ولسان العرب: ۳۲۶/۱۴-۳۲۵ مادة: نوس، ومثله فی المفردات للراغب، باب النون، مادة نوس، ص: ۵۱۱.

[3] رواه البیهقی فی دلائل النبوة: ۴۷۴/۵ رقم: ۲۲۱۷ وأیضاً انظر: ۴۷۳/۵ روایة جابر وأبی ذر، رضی الله عنهما، کذا انظر مجلس فی ختم کتاب الشفاء بتعریف حقوق المصطفی ﷺ: ۴۶.

[4] تفسیر الضحاك: ۲۴۳/۱-۲۵۲ سورة الأنعام رقم: ۷۹۶ وآکام المرجان: ۵۷ الباب السادس عشر ولقط المرجان: ۴۲ فصل: هل کان من الجن نبی أو رسول؟ وتفسیر الطبری: ۱۳۰/۵.

شوي وو.(۱) ابن حزم رحمه الله نور فرمائي چه دا خبره خو مونږ په يقينی توګه باندې پيژنو چه جنات هم ويرولې شوي دی (چه هغوی هم مکلف دی)، نو ثابته شوه چه د هغوی کښې هم نبی تيرشوي دې. دليل هم هغه دالله تعالى ارشاد دې: ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ.......﴾(۲)

علامه بدرالدين شبلی رحمه الله فرمائي چه دحضرت ضحاک رحمه الله دمذهب تائيد دقرآن کريم آيت ﴿وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾(۳) په تفسير کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما د ارشاد نه هم کيږی کوم چه ددې آيت په تفسير کښې دهغوی نه نقل دې چه زمکې هم اووه دی په هره زمکه کښې ستاسو د نبی په شان يو نبی دې او د آدم په شان يو آدم دې. رواه الحاکم.(۴) حافظ ذهبی ددې حديث تحسين فرمائيلی دې.(۵)

حافظ ابن حجر مکی رحمه الله فتاوی حديثيه کښې ليکی چه ظاهر قرآن هم دحضرت ضحاک رحمه الله سره دې چه جناتو کښې هم نبی تيرشوي دې مګر اکثر علماء ددې خلاف دی.(۶)

**د جمهورو مذهب:** جمهور سلفا او خلفا ددې برعکس دا فرمائي چه په جناتو کښې کله هم رسول نه دې تيرشوي خومره هم چه رسولان راغلی دی ټول هم دانسانانو نه راغلی. دا مذهب حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ابن جريج، مجاهد، ابن کلبی، ابوعبيد او علامه واحدی رحمهم الله وغيره نه نقل کړې شوي دې. او جمهور علماء د آيت مبارک ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ.......﴾ تاويل دا فرمائي چه دا د جناتو نه څه خلق وو دالله تعالى د طرف نه باقاعده رسولان نه وو ليکن الله تعالى هغوی په زمکه کښې خواره کړل. چنانچه هغوی د الله تعالى د هغه رسولاتو کلام واوريدو کوم چه انسانانو ته مبعوث شوي وو او د هغې اوريدو سره هغوی خپل قوم جنات طرف ته واپس راغلل او هغوی اوويرول د الله تعالى کلام (مامورات اومنهيات) ئی ورته واورول. والله سبحانه وتعالى اعلم.(۷)

قال ابن حجر المکی: ومعنى ﴿رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ أي: من مجموعکم، وهم الإنس، أو المراد بهم رسل الرسل. الفتاوى الحديثية: ۹۸ مطلب: الأصح أن الجن ليس فيهم نبي ولا رسول.

وقال الزمخشري في الکشاف: ۲/۶۶: واختلف في أن الجن هل بعث إليهم رسل منهم، فتعلق بعضهم بظاهر الآية، ولم يفرق بين مکلفين ومکلفين أن يبعث إليهم رسول من جنسهم، لأنهم به آنس، وله آلف. وقال آخرون: الرسل من الإنس خاصة، وإنما قيل ﴿رُسُلٌ مِّنْكُمْ﴾ لأنه لما جمع الثقلان في الخطاب صح ذلك، وإن کان من أحدهما، کقوله: ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴾ وقيل: أراد رسل الرسل من الجن إليهم، کقوله تعالى: ﴿وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِينَ﴾ وعن الکلبي: کانت الرسل قبل أن يبعث محمد ﷺ يبعثون إلى الإنس، ورسول الله ﷺ بعث إلى الإنس والجن.

---

(۱) الحديث مر تخريجه آنفا الصحيحين (متفق عليه) عن جابر رضی الله عنه.

(۲) الفصل في الملل...: ۳/۱۴۷ وآکام المرجان: ۵۷ الباب السادس عشر، في بيان هل کان في الجن نبي قبل بعثة نبينا..... ولقط المرجان: ۴۲ عمدة القاري: ۱۵/۱۸۵-۱۸۴.

(۳) سورة الطلاق: ۱۲.

(۴) المستدرک للحاکم: ۲/۴۹۳ وصححه ابن حجر المکی في الفتاوى الحديثية: ۶۹

(۵) تلخيص المستدرک للذهبي بذيل المستدرک: ۲/۴۹۳ وآکام المرجان: ۵۸ ددې حديث متعلق ابحاث اول الکتاب کښې باب ماجاء في سبع أرضين کښې راغلې دې.

(۶) الفتاوى الحديثيه: ۹۴ مطلب لم يبعث إلى الجن نبي قبل نبينا قطعا.

(۷) آکام المرجان: ۵۷ ولقط المرجان: ۴۳-۴۲ والتوضيح لابن الملقن: ۱۹/۲۲۱.

﴿بخسا﴾: نقصا: داهم دترجمة الباب حصه ده. په دې عبارت تفسیریه سره هم امام بخاری رحمه الله خپله مدعی حاصل کړې ده. آیت مبارک ﴿فَمَنْ يُؤْمِنْ بِرَبِّهِ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا﴾ [1] کښې نې د لفظ بخس شرح اوفرمائیله چه دا د نقص اوکمی باره کښې دې. اودې سره نې د جناتو مکلف کیدل هم ثابت کړل ځکه چه څوک په خپل رب باندې ایمان لری هغه ته به د هیڅ نقصان اندیښنه نه وی. او چه کوم کافر وي هغه به ویریږی چه د څه نقصان ښکار نه شی. دا ویره ترهه د جناتو دمکلف کیدو دلیل دې چونکه د آیت تعلق هم دهغوی ذات سره دی. [2]

**قَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا﴾/الصافات: ۱۵۸/: قَالَ: كُفَّارُ قُرَيْشٍ: الْمَلَائِكَةُ بَنَاتُ اللَّهِ، وَأُمَّهَاتُهُمْ بَنَاتُ سَرَوَاتِ الْجِنِّ. قَالَ اللَّهُ: ﴿وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ /الصافات: ۱۵۸/: سَتُحْضَرُ لِلْحِسَابِ. ﴿جُنْدٌ مُحْضَرُونَ﴾/یس: ۷۵/: عِنْدَ الْحِسَابِ.**

حضرت مجاهد بن جبر رحمه الله [3] آیت مبارک ﴿وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ ......﴾

په تفسیر کښې فرمائی چه دقریشو کافرانو به وئیل چه فرښتې نعوذبالله دالله تعالی لونړه دی او د هغوی میندې د پیریانو د سردارانو لونړه دی.

**د آیت مبارک شرح اوتفسیر:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا تعلیق حسب سابق امام بخاری رحمه الله د خپل موقف د ثابتولو دپاره ذکر کړې دې چه جنات مکلف دی. هغه په دې توګه چه د کافرانو عقیده د ملائکه باره کښې دا وه چه هغوی نعوذبالله د الله تعالی چه د هرڅه نه پاك اولوئی دې لونړه دی. د اولاد د اثبات دپاره به بیا د زوج ضرورت وی نو دهغوی عقیده داوه چه د جناتو د سردارانو د لونړو نه د الله تعالی نعوذبالله واده شوې دې دکوم په نتیجه کښې چه فرښتې پیدا شوې. دغه شان هغوی د رب کریم او جناتو په مینځ کښې رشته داری ثابتولو کوشش کړې دې اودا عقیده نې خپله کړه چه جنات د رب کریم سخر ګنئی ده. نعوذبالله من ذلك.

الله تعالی ذکرشوی آیت مبارك کښې دهغوی د دې فضول او فاسدې عقیدې شناعت او قبح واضح کولوسره ارشاد اوفرمائیلو چه دا څنګه کیدې شی چه دهغه خپل مخلوق سره خسروانه تعلقات او رشته دارئی وی؟ حالانکه کوم چه سخر ګنئی ګرځولې شی هغوی ته پخپله دا حقیقت په ښه شان سره معلوم دې چه دقیامت په ورځ به هغوی هم د خپل رب قادر په مخکښې دحساب کتاب د پاره حاضریږی. سخر ګنئی خو یونعمت دې [4] چرته دهغوی نه هم څه تپوس پوښتنه کیدې شی؟

حضرت تهانوی رحمه الله لیکی: هغه خلقو الله تعالی او جناتو کښې هم رشته دارئی ګرځولې دی. د کوم بطلان چه نور هم زیات ښکاره دې ځکه چه بی بی د کوم کاردپاره وی د هغې نه حق تعالی منزه دې اوچه کله زوجیت محال دې نو صهریت کوم چه دهغې فرع ده نیزمحال دې. [5]

---

[1] سورة الجن: ۱۳.

[2] عمدة القاری: ۱۵٤/۱۸٥فتح الباری: ۳٤٦/٦.

[3] دحضرت مجاهدبن جبر رحمه الله حالات کشف الباری کتاب العلم باب الفهم فی العلم: ۳۰۷/۳ کښې تیرشوی دی.

[4] قال الله تعالی: ﴿وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا﴾ [سورة الشعراء: ٥٤/١]

[5] بیان القرآن: ۲٦٠/۳.

**د مذکوره تعلیق شرح:** دحضرت مجاهد رحمه الله په دې تعلیق کښې دبخاری شریف په تولو نسخو کښې «وأمهاتهم» راغلې دې. البته د ابوذر رحمه الله په نسخه کښې «وأمهاتهن» ضمیر جمع مؤنث سره دې خو بهتر اواولنې دې.[1]

سروات جمع ده ددې مفرد سراة دې چه پخپله هم جمع ده اوددې مفرد سري دې. دکوم معنی چه د سردار ده لکه چه سروات جمع الجمع ده.[2] خو حافظ صاحب رحمه الله دا د سرة جمع گرځولې ده یعنی شریفې ښځې.[3]

**د ایت مبارک نور تفسیر:** د آیت مبارك دحضرت مجاهد رحمه الله دا تفسیر حضرت قتادة رحمه الله او ابن السائب رحمه الله د قول مطابق دې چه دا فرمائی چه په آیت کښې «الجنة» نه مراد جنات دی داد یهودیانو رائې وه چه الله تعالی نعوذبالله په جناتو کښې واده کړې اودهغې په نتیجه کښې فرښتې پیدا شوې.

دلته نور دوه اقوال دی ① عوفی رحمه الله دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړې دې چه په آیت کښې «الجنة» نه مراد ابلیس دې. دا قول د زنادقه ملاعنه طرف ته منسوب دې چه ددې خبرې قائل دی چه الله تعالی او ابلیس نعوذ بالله رونړه دی. د خیر صدور د الله تعالی نه اود شر صدور د ابلیس نه کیږی. په دې صورت کښې نسبت سره د رورولئی نسبت مراد دې داهم د مجوسو د گمان په شان باطل دې ځوك چه د دوو خدایانو قائل دی. یزدان او اهرمن.

② د قریشو کافران ددې خبرې قائل وو چه فرښتې د الله تعالی لونړه دی نعوذ بالله او جنه د فرښتو یو نوع دې کوم ته چه جنه وائی. په دې صورت کښې نسب سره د پلار او لور رشته یعنی بنوت مراد وی. علامه عینی رحمه الله فرمائی «والمعنى جعلوا بما قالوه نسبة بين الله وبين الملائكة، وأثبتوا بذلك جنسية جامعة الله وللملائكة. تعالى الله عن ذلك علوا كبيرا».[4]

دا د حضرت مجاهد رحمه الله نه روایت دې کوم چه مصنف رحمه الله هم نقل کړې دې. ددې دریوارو اقوالو مخې ته کیخودو سره دا خبره واضح کیږی چه د الجنة په معنی کښې دوه اقوال دی. ① ملائکه او ② جنات. په رومبی صورت کښې به د آیت مبارك معنی دا شی چه فرښتوته هم ددې خبرې علم دې چه دا مشرکان به د جهنم په اور کښې ور اوراندې کولې شی. یعنی د الجنة نه مراد فرښتې دی او ﴿إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ کښې هم ضمیر دمشرکین مکه طرف ته راجع دې. چاچه دا فضول خبره کړې ده. فرښتې الجنة سره ځکه تعبیر کړې شوې دی چه هغوی هم د نظر نه غائب دی لکه څنګه چه جنات دی.[5]

---

[1] عمدة القاري: ۱۸۵/۱۵ فتح الباري: ۳٤٦/٦ وإرشادالساري: ۳۰٦/٥.

[2] عمدة القاري: ۱۸۵/۱۵ التوضيح: ۲۲٤/۱۹ وإرشادالساري: ۳۰٦/٥.

[3] فتح الباري: ۳٤٦/٦.

[4] عمدة القاري: ۱۸۵/۱۵.

[5] حواله بالا وإرشادالساري: ۳۰٦/٥.

به دويم صورت كښې به د آيت معنى داشي چه پخپله جناتو ته هم دا خبره معلومه ده چه هغوى به حساب كتاب ته وړاندې كيږي. چنانچه إنهم كښې دضمير مراد جنات دى اود نسبا نه صهريت يعنى د سخرګنئى رشته مراد ده. (۱)

**قوله:: مستحضر للحساب:** هغه جنات به دحساب كتاب دپاره حاضرولې شى. په دې عبارت كښې ﴿مُحْضَرُونَ﴾ تفسير اوتوضيح كړې شوې دې. چه د احضار نه دحساب دپاره حاضرول مراد دى. دلته د تانيث د صيغې سره مستحضر دې خو په بعض نسخوكښې سيحضرون راغلې دې. مفهوم ئې تقريبا يو دې. (۲)

[جُنْدٌ مُحْضَرُونَ] داد سورت يس د يوآيت مبارك حصه ده. ددې نه اول دا آياتونه دى [وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُونَ ۝ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَهُمْ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُحْضَرُونَ ۝] (۳) ددې آياتونو په ظاهره د جناتو سره هيڅ تعلق نشته دې ليكن دلته دا د ماقبل سورت صافات د آيت مبارك ﴿إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ دتاكيد دپاره ذكر كړې شوى دى چه دلته هم د احضار نه احضار للحساب مراد دې

البته علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه د سورت يس په دې آيت كښې آلهة نه جنات مراد كيدې شى خكه چه كافرانو داهم د خدائى په توګه خپل كړى وو. دغه شان سابقه آيت سره به ددې آيت تعلق هم ثابت شى. «ويحتمل أن يقال: لفظ ﴿آلِهَةً﴾ في الآية متناول للجن، لأنهم أيضا اتخذوهم معابد. والله أعلم» (۴)

ابوذر د حموى او مستملى وغيره نه ﴿جُنْدٌ مُحْضَرٌ﴾ صيغه د مفرد سره نقل كړې دې خو كشميهنى جمع سره ﴿جُنْدٌ مُحْضَرُونَ﴾ نقل كړې دې. اوهم دغه زيات مناسب دى خكه چه دا د قرآن كريم الفاظ دى. (۵)

**دمذكوره تعليق مقصد:** امام بخارى رحمه الله دا تعليق ذكر كولوسره خپله مدعى ثابته كړې ده چه جنات مكلف دى د دوى نه به حساب اخستلې شى دكومې چه پخپله هم هغوى ته علم دې. (۶)

**دمذكوره تعليق تخريج:** دحضرت مجاهد رحمه الله دا تعليق امام فريابى رحمه الله په خپل موصول سند سره څه اضافې سره داسې روايت كړې دې: «قال كفار قريش: قالوا: الملائكة بنات الله. قال أبوبكر (الصديق رضى الله عنه): فمن أمهاتهم؟ قالوا: بنات سروات الجن» (۷) دغه شان د سورت يس د آيت تفسير هم دحضرت مجاهد رحمه الله دې كوم چه فريابى رحمه الله «آدم، عن ورقاء، عن ابن أبى نجيح، عن مجاهد» په طريق سره موصولاً نقل كړې دې. والله اعلم بالصواب. (۸)

---

(۱) زادالمسير: ۶/۳۲۵روح المعانى: ۸/۱۲/۱٤۵الصافات: ۱۵۹وبيان القرآن: ۳/۲۶۰عمدة القارى: ۱۵/۱۸۶-۱۸۵التوضيح: ۱۹/۲۲٤-۲۲۳.

(۲) فتح البارى: ۶/۳٤۳تغليق التعليق وتعليقاته: ۳/۵۱٤.

(۳) سورة يس: ۷۵-۷۶

(۴) شرح الكرمانى: ۱۳/۲۱۰عمدة القارى: ۱۵/۱۸۶.

(۵) عمدة القارى: ۱۵/۱۸۶فتح البارى: ۶/۳٤۶إرشاد السارى: ۵/۳۰۶.

(۶) عمدة القارى: ۱۵/۱۸۶.

(۷) عمدة القارى: ۱۵/۱۸۵فتح البارى: ۶/۳٤۶تغليق التعليق: ۳/۵۱٤تفسير مجاهد: ۵۷۱سورة الصافات، وتفسير ابن جرير: ۱۰/۲۳/۶۹

(۸) تغليق التعليق: ۳/۵۱٤تفسير مجاهد: ۵۶۱سورة يس: ۷۵.

**دمذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې تعليق ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې چه علمت الجن أنهم سيحضرون للحساب كښې دې. د كوم نه چه د جنات مكلف كيدل واضح دى.[1]

## الحديث الاول

۳۱۲۲- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الخُدْرِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ لَهُ: إِنِّي أَرَاكَ تُحِبُّ الغَنَمَ وَالبَادِيَةَ، فَإِذَا كُنْتَ فِي غَنَمِكَ وَبَادِيَتِكَ، فَأَذَّنْتَ بِالصَّلاَةِ، فَارْفَعْ صَوْتَكَ بِالنِّدَاءِ، فَإِنَّهُ «لاَ يَسْمَعُ مَدَى صَوْتِ المُؤَذِّنِ جِنٌّ وَلاَ إِنْسٌ وَلاَ شَيْءٌ إِلَّا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ القِيَامَةِ» قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ([2]) [ر۵۸۴]

**ترجمه:** عبدالله بن عبدالرحمن رحمه الله فرمائى چه حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه ماته اوئيل چه زه گورم چه ستا چيلئى اوكلى ډير خوښ دى. كله چه ته خپلو چيلوسره يا په خپلو كلو كښې ئې اود مونځ دپاره اذان وركړې نوخپل آواز د اذان په وخت اوچت ساته ځكه چه د مؤذن اذان تركومې پورې هم يوانسان يا جن يا بل څه ځيز واؤرى نود قيامت په ورځ به هغه ځيز دهغه دپاره ګواهى وركوى.

**ترجمه:** حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه دا حديث ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پخپله اوريدلې دې. دا حديث په كتاب الأذان كښې تيرشوې دې لهذا په ترجمه باندې اكتفا كړې شوې ده.[3]

## تراجم رجال

**قتيبه:** دا شيخ الاسلام قتيبه بن سعيد ثقفى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب إفشاء السلام كښې تير شوى دى.[4]

**مالک:** دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان كړې شوى دى.[5]

**عبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن:** دا عبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن ابى صعصعه رحمه الله دې.[6]

**ابيه: (عبدالله بن عبدالرحمن):** دا عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن ابى صعصعه رحمه الله دې.

---

[1]) عمدة القارى: ۱۸۶/۱۵ فتح البارى: ۳۴۶/۶.

[2]) قوله: أن أباسعيدالخدرى رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه فى كتاب الأذان باب رفع الصوت بالنداء.....

[3]) كتاب الأذان باب رفع الصوت بالنداء رقم:۶۰۹

[4]) كشف البارى: ۱۸۹/۲.

[5]) كشف البارى: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲

[6]) دابوصعصعه نوم عمرو بن زيد دې. چه په جاهليت كښې وژلې شوې. دهغه څلورځامن وو. حارث، جابر، قيس او ابوكلاب. دا څلور واړه صحابه كرام دى رضي الله عنهم په دوى كښې درې په مختلف غزوات كښې شهيدان شوى. حضرت حارث رضي الله عنه په جنګ يمامه كښې اوحضرت جابر او كلاب رضي الله عنهما غزوه موته كښې شهيدان شوى او قيس رضي الله عنه په جنګ بدر كښې ساقى او په جنګ احد كښې مقاتل وو. التوضيح: ۲۲۴/۱۹ عمدة القارى: ۱۸۶/۱۵.

**ابوسعيدخدري:** دا مشهور صحابي حضرت سعد بن مالك بن سنان رضي الله عنه دي. ددې بزرګانو تذکره **كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن** لاندې بيان کړې شوې دی. [1]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت دحديث دې جملې سره دې «لايسمع مدى صوت المؤذن جن ولا إنس، إلا شهدله....» دکوم نه چه په واضحه توګه سره ثابتيږي چه جنات به هم دقيامت په ورځ په محشر کښې جمع کولې شی دهغوی حساب کتاب به کيږی کوم چه دمکلف کيدو علامت دې. [2] بل دې حديث سره د جنات وجود هم ثابتيږی. [3]

## ۱۳ - باب: قَوْلِ اللهِ جَلَّ وَعَزَّ: ﴿وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ - إِلَى قَوْلِهِ - أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ /الأحقاف: ۲۹-۳۲/.

**دترجمة الباب مقصد:** د صحيح بخاری شريف يوشارح دلته د غرض ترجمه او دهغې مقصد نه دې چيړلې صرف حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله غرض ترجمه خودلې دې. هغه فرمائي چه زما په نيز امام بخاری رحمه الله د دې ترجمه او د آيت مبارك په ذريعه دامام ابوحنيفه رحمه الله د مستدل طرف ته اشاره کړې ده د چامذهب چه د جنات باره کښې دادې چه دوی ته د طاعات ثواب نه ملاويږی صرف دعذاب نه خلاصې ملاويږی. په دې باندې په تيرشوی باب کښې هم خبره شوې ده. دامام اعظم رحمه الله مستدل په ترجمة الباب کښې ذکرشوې آيت مبارك دې چه په دې کښې صرف د عذاب نه د خلاصی ذکر دې د طاعات په بدله کښې د جنت ملاويدلو هيڅ ذکر نشته دې.

ملاجيون رحمه الله تفسير احمدی کښې ليکی: «وقال إمامنا الأعظم أبوحنيفة: إنهم لم يثابوا كالانس، وغاية إيمانهم أنهم ينجون من العذاب، لأنه قال في آخر هذه الآية: ﴿يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ هكذا ذكر في المدارك والكشاف والبيضاوي». [4]

**مکمل ايات کريمه اودهغې ترجمه:** امام بخاری رحمه الله چه کوم آياتونه د ترجمة الباب جز او حصه جوړ کړی دی هغه دادی: ﴿وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوا أَنصِتُوا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ ۝ قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا أُنزِلَ مِن بَعْدِ مُوسَىٰ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝ يَا قَوْمَنَا أَجِيبُوا دَاعِيَ اللَّهِ وَآمِنُوا بِهِ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۝ وَمَن لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللَّهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْأَرْضِ وَلَيْسَ لَهُ مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءُ ۚ أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ۝﴾ [5]

---

[1] كشف الباري: ۲/۸۳-۸۰.

[2] فتح الباري: ۶/۳۴۶ إرشادالساري: ۵/۳۰۶.

[3] عمدة القاري: ۱۵/۱۸۲.

[4] الكنز المتواري: ۱۳/۲۱۴ والأبواب للكاندهلوي: ۱/۲۱۱ والتفسيرات الأحمدية: ۶۶۰ حم تنزيل الكتاب. والبيضاوي مع حاشية الشهاب الخفاجي: ۸/۴۸۲ سورة الاحقاف. والكشاف: ۴/۳۰۴ ومدارك التنزيل: ۳/۲۱۹-۲۱۸.
وقال الإمام الكرماني رحمه الله: وقد جرى بين الإمامين أبي حنيفة ومالك، رحمهما الله في المسجدالحرام مناظرة في هذه المسئلة. فقال أبوحنيفة: ثوابهم السلامة عن العذاب. متمسكا بقوله تعالى: ﴿يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ وقال مالك: لهم الكرامة بالجنة. وحكم الثقلين واحد. قال تعالى ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ وقال: ﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾ شرح الكرماني: ۱۳/۲۱۰.

[5] سورة الأحقاف: ۳۲-۲۹.

وكله چه مونږ د جنات يوجماعت ستا طرف ته راوستل چه قرآن پاك ئې اوريدلو. غرض چه كله هغه خلق قرآن له رانژدې راورسيدل نو وئې وئيل چه خاموش شئ. بيا چه كله قرآن اولوستلې شو هغه خلق خپل قوم د خبر رسولودپاره واپس لاړل. وئې وئيل اې رونړو! مونږ يوكتاب اوريدلې راغلې يو. چه د موسى عليه السلام نه پس نازل كړې شوې دې چه د خپل ځان نه د مخكينو كتابونو تصديق كوى. دحق او نيغې لارې طرف ته لارخودنه كوى. اې رونړو! تاسو د الله تعالى طرف ته د رابلونكو وينا اومنئ او په هغې باندې ايمان راوړئ الله تعالى به ستاسو گناهونه معاف كړى اود دردناك عذاب نه به مې محفوظ كړى. اوڅوك چه د الله تعالى طرف ته د رابلونكو وينا نه منى نوهغه په زمكه كښې الله تعالى ته ماتې نه شى وركولې اود الله تعالى نه سوا به بل هيڅوك دهغه حامى هم نه وى داسې خلق په صريح گمراهئ كښې دى. (ترجمه حضرت تهانوى رحمه الله)[1]

﴿مَصْرِفًا﴾/الكهف: ۵۳/: مَعْدَلاً. ﴿صَرَفْنَا﴾: أَيْ وَجَّهْنَا.

**قوله: ﴿مَصْرِفًا﴾: مَعْدَلاً:** داد ابوعبيده رحمه الله تفسير دې. په كوم كښې چه هغه مصرف - بكسرالراء - تفسير معدل سره كړې دې. دكوم معنى چه د لارې او دتيختې د ځائې ده.

ترجمة الباب كښې د ذكرشوى آيت لفظ [صَرَفْنَا] سره دامام بخارى رحمه الله ذهن حسب عادت د يوبل آيت مبارك طرف ته منتقل شوې. چرته چه﴿ مَصْرِفًا﴾ راغلې دې. يعنى [وَلَمْ يَجِدُوا عَنْهَا مَصْرِفًا] چه هغه مجرمين به دجهنم د اورنه بچ كيدو دپاره دامان ځائې نه مومى. چنانچه ددې آيت طرف ته اشاره اوكړې شوه[2]

﴿مَصْرِفًا﴾ اسم مكان دې يا اسم زمان. بعض حضرات مثلاً ابوالبقاء رحمه الله اود هغه ملگرى دا مصدر گرځوى. علامه سمين حلبى رحمه الله دا سهو گرځولې ده. او كه چرې ﴿مَصْرَفًا﴾ په فتح د راء وى نوددوى دا خبره به صحيح وه لكه چه د زيد بن على رضى الله عنه په قراءت كښې د راء فتحه سره دې خوبكسر الراء په صورت كښې مصدر گرځول په هيڅ توگه صحيح نه دى[3]

[صَرَفْنَا] أَيْ وَجَّهْنَا: دا دامام بخارى رحمه الله خپل تفسير دې. په كوم كښې چه هغوى د[مَصْرِفًا] معنى وجهنا سره كړې ده چه مونږ (دا جنات)متوجه كړل، لاړ مو ورته اوخودله[4]

**دباب مناسبت سره يو بل حديث اودهغې ترجمه:** امام بخارى رحمه الله ددې ترجمة الباب لاندې څه حديث نه دې ذكركړې. خوددې باب مناسب دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما هغه حديث دې په كوم كښې چه دحضورپاك عليه السلام عكاظ ته تلل اود جناتو د حضورپاك د تلاوت د اوريدو ذكر دې. پوره حديث دا دې.

---

[1]) بيان القرآن جديد: ۴۰۴/۳ سورة الأحقاف.

[2]) عمدة القارى : ۱۵/۸۷ فتح البارى : ۶/۳۴۷ مجاز القرآن : ۱/۴۰۷ سورة الكهف

[3]) روح المعانى: ۲۸۳/۸سورة الكهف. قال السمين الحلبى رحمه الله: والمصرف يجوز أن يكون اسم مكان أو زمان. وقال ابوالبقاء: ﴿ مَصْرِفًا﴾ أى: انصرافا، ويجوز أن يكون مكانا.

قلت: وهذا سهو، فإنه جعل المَفعل بكسرالعين مصدر المضارعه يفعل بالكسر من الصحيح، وقد نصوا على أن اسم مصدر هذا النوع مفتوح العين، واسم زمانه ومكانه مكسورها، نحو: المضرب والمضرِب. وقرأ زيد بن على ﴿مَصْرَفًا﴾ بفتح الراء، جعله مصدرا ، لأنه مكسور العين فى المضارع، فهو كالمضرب بمعنى الضرب، ولينأباالبقاء ذكر هذه القراءة، ووجهها بما ذكره قبل. الدرالمصون: ۴۶۵/۴.

[4]) فتح البارى:۳۴۷/۶ وقال العينى رحمه الله : ۱۸۷/۱۵ وقيل وفقنا بصرفنا اياهم عن بلادهم اليک

«عن ابن عباس رضي الله عنهما، قال: انطلق النبي صلى الله عليه وسلم في طائفة من أصحابه، عامدين إلى سوق عكاظ وقد حيل بين الشياطين وبين خبر السماء، وأرسلت عليهم الشهب، فرجعت الشياطين إلى قومهم، فقالوا: ما لكم؟ فقالوا: حيل بيننا وبين خبر السماء، إلا شيء حدث، فاضربوا مشارق الأرض ومغاربها، فانظروا ما هذا الذي حال بينكم وبين خبر السماء، فانصرف أولئك» [1]

يعنى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه نبى كريم ﷺ د صحابه كرامو رضي الله عنهم د يوجماعت سره د عكاظ بازار ته د تلو اراده اوكړه روان شو، په داسې حال كښې چه د شيطانانو او آسمانى خبرونو په مينځ كښې بنديز لګولې شوې وو او په شيطانانو باندې شهابونه وريدل. چنانچه كله چه شيطانان خپل نوم طرف ته (ناكام) واپس شو نوقوم تپوس اوكړو څه خبره ده؟ نوهغوى اووئيل چه زمونږ اود آسمانى خبرو په مينځ كښې بنديز لګولې شوې دې او په مونږ باندې شهابونه راوروليې شى. نوقوم اووئيل چه ستاسو اود آسمانى خبرو په مينځ كښې د بنديز هيڅ وجه نشته سوا ددې نه چه څه نوې خبره رانبكاره شوې ده. د زمكې د مشرقونو اومغربونو (څلور واړه طرفونو) ته خواره شئى او اوګورئى چه ستاسو اود آسمانى خبرونو په مينځ كښې حائل شوې دا څه څيز دې؟

چنانچه هغه جنات كوم چه د تهامه طرف ته وتلې وو د نبى كريم ﷺ طرف ته وراوګرځيدل. حضورپاك هغه وخت نخله (ديوځائى نوم دې) كښې وو. د عكاظ د بازار د تلو اراده ئى كړې وه. حضورپاك صحابه كرامو ته د سحر مونځ وركولو. كله چه جناتو قرآن واوريدو نو په غور سره ئى ددې تلاوت اوريدو او وئى وئيل په خدائى هم دغه دې كوم چه زمونږ اود آسمانى خبروو په مينځ كښې حائل جوړ شوې دى. هم په دې موقع چه كله هغوى خپل قوم جناتو ته واپس اورسيدل نو وئى وئيل اې رونړو! مونږ عجيبه (مضامين حامل) قرآن واوريدو چه درشد اوهدايت طرف ته لار خوده كوى. نومونږ خو پدې باندې ايمان راوړې دې او (اوس) مونږ دخپل رب سره بل هيڅوك شريك نه ګنړو نو الله تعالى په خپل نبى باندې وحى نازل كړه: ﴿قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ﴾ [2] چنانچه په دې آياتونو كښې د جناتو خبرې اترې په ذريعه دوحى رسول الله ﷺ ته خودلې شوې دى.

چنانچه امام بخارى رحمه الله مذكوره آيات د ترجمة الباب حصه جوړولوسره هم ددې حديث طرف ته اشاره كړې ده. دوباره ددې د ذكركولوحاجت نه دې ګنړلې. [3]

## ۱۴ - باب: قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: ﴿وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ﴾ /البقرة: ۱۶۴/.

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله د ملائكه، ابليس او جن وغيره ذكركولونه پس اوس د حيواناتو دتخليق ذكر كوى چه دا هم دالله تعالى مخلوق دې. لكه چه ملائكه اوجن وغيره ټول الله سبحان وتعالى حيات وغيره د حيواناتو نه مخكښې پيداكړى دى. يا دا چه ددې ټولو تخليق د نوع انسانى دتخليق نه مقدم دې.

---

[1] صحيح البخارى كتاب الأذان باب الجهر بقراءة صلاة الصبح رقم: ۷۷۳ وكتاب التفسير رقم: ۴۹۲۱ وصحيح مسلم كتاب الصلاة باب الجهر بالقراءة فى الصبح..... رقم: ۴۴۹.

[2] سورة الجن: ۱.

[3] فتح البارى: ۳۴۷/۶ الكنز المتوارى: ۲۱۴/۱۳ نورتفصيل دپاره اوګورئى التوضيح لابن الملقن: ۲۲۶/۱۹-۲۲۵.

حافظ رحمه الله فرمائی: «كأنه أشار إلى سبق خلق الملائكة والجن على الحيوان أوسبق جميع ذلك على خلق آدم»[1] دحیواناتو تخلیق دانسانی نوع په تخلیق باندې مقدم دې. په دې باندې دمسلم شریف حدیث هم دلالت کوی په کوم کښې چه راغلی دی «إن خلق الدواب كان يوم الأربعاء»[2]

**دحضرت گنگوهی رائې:** فقیه النفس حضرت گنگوهی رحمه الله ددې ترجمة الباب مقصد دا ښائی چه امام بخاری رحمه الله په فلاسفه باندې رد اودهغوی دفغیه کول غواړی ځکه چه دا وائی چه الله تبارك وتعالی (العياذ بالله) صرف عقل اول پیدا کړو، په دې کائنات کښې په دې عالم کښې په رنګ او بوټی کښې چه دا څه ښه یا بد کیږی ددې ټولو تعلق دعقل عاشر سره دې کوم چه هغوی په عقل فعال سره موسوم کوی.[3]

ځکه چه عادت هم دغه دې چه د وړو مرو څیزونو نسبت لویو اوعظیم خلقو ته نه شی کولې په دې وجه د فلاسفه په قول ولی الله تعالی به مچ وغیره هم پیدا کوی؟ دومره عظیم ذات کیدو سره به هغه دومره وړوکې اوسپك کار کوی، نه داسې نه ده، بلکه دا ټول په عقل عاشر سره پیدا شوی. چنانچه امام بخاری رحمه الله په دوی رد اوکړو اودا ترجمه ئی قائم کړه چه هرڅیز که هغه لوئی دې اوکه وړوکې، ذره وی اوکه غر، زمکه وی اوکه آسمان ټول دهغه عظیم صفاتووالا ذات پیدا کړی دی.

لامع کښې دی: «ولما كانت العادة جارية بأن العظيم لا ينسب إليه الحقير، وقد كانت الفلاسفة زعمت أنه تبارك وتعالى لم يخلق إلا العقل الأول، وجملة ما يتكون في عالم الكون والفساد فإنه إلى العقل العاشر، دفعه (الإمام البخاري رحمه الله) بأن كل ذرة من ذرات العالم، وكل دابة مما على الأرض -صغيرة كانت أوكبيرة، حقيرة أوذات خطر- فإنما خلقه الله تبارك وتعالى، ومنه الخلق والأمر، فتبارك الله أحسن الخالقين»[4] د قرآن کریم ډیر آیاتونه هم صراحتاً په دې باندې دلالت کوی چه دهرڅیز خالق الله تعالی دې.[5]

---

[1] فتح الباري: ۳۴۷/۶ولامع الدراري: ۳۸۴/۷-۳۸۳.

[2] په ظاهره دلته د حافظ صاحب رحمه الله نه تسامح شوې دې چه دخلق الدواب نسبت ئې يوم الاربعاء طرف ته اوکړو حالانکه صحيح يوم الخميس دې. په مسنداحمدوغيره کښې هم دغه دې. اوګورئې: ۳۲۷/۲صحيح مسلم كتاب صفة القيامة.... باب ابتداء الخلق..... رقم: ۲۷۸۹.

[3] قال صاحب غياث اللغات: إن العقل قوة في نفس الإنسان، يميز بها دقائق الأشياء، وهو المسمى بالنفس الناطقة، وعندالحكماء يجيء بمعنى الملك، والمعروف عندهم أنه تعالى وتقدس خلق ملكا واحدا، وهوالذي يقال له: العقل الأول، وهذا الملك خلق ملكا ثانيا والفلك الأول، وهذا الملك الثاني خلق ملكا ثالثا والفلك الثاني، - وهلم جرا، إلى أن - خلق الملك التاسع الملك العاشر والفلك التاسع، وهذا الملك العاشر يقال له عندهم: العقل الفعال، وهوالذي خلق جميع العالم والأشياء كلها، ويقال: إن العقل العاشر هذا هو جبريل عليه الصلاة والسلام، كما صرح بذلك في الميبذي[۱۶۹ فصل في كيفية توسط العقول بين الباري تعالى وبين العالم الجسماني]، وقال صاحب البرهان: إن العقل العاشر هوالمسمى بنور محمد، وكناية أيضاعن جبريل عليهماالصلاة والسلام". انتهى معربا مختصرا من غياث اللغات. تعليقات لامع الدراري: ۳۸۵/۷والكنز المتواري: ۲۱۶-۲۱۷/۱۳.

[4] لامع الدراري: ۳۸۷/۷-۳۸۳والكنز المتواري: ۲۱۹/۱۳-۲۱۵.

[5] فقد قال عزاسمه: ﴿خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ﴾ [الأنعام: ۱۰۲] وقال عزاسمه: ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾ [القمر: ۴۹] قال الكرماني: التقدير خلقنا كل شيء بقدر، يستفادمنه أن يكون الله خالق كل شيء فتح الباري: ۶۴۶/۱۶كتاب التوحيد باب (۵۶) ﴿وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ﴾ انظر للاستزادة: تعليقات للامع: ۳۸۵/۷.

**لفظ دابه اود امام بخاري حسن ترتيب:** د دابه لغوي معنى ده خوځيدل، رابنكل اوتلل يعنى «ما يدب على الأرض» او په عرف كښې ددې استعمال ذوات الاربع يعنى د څلورو خپو والاځناور دپاره كيږى. په دې وجه بعض حضراتو دا لفظ اس سره او بعض خر سره خاص كړې دې. خودلته چه كوم مراد دامام بخاري رحمه الله دې هغه لغوى معنى ده يعنى هر ساه والا په زمكه باندې تلونكې خوځيدونكې او الوتونكې.(1)

د امام بخاري رحمه الله حسن ترتيب اوګورئ چه هغوى دلته په ترجمة الباب كښې درې آياتونه ذكركولوسره د ځناورو ټول قسمونه كوم چه درې دى، استيعاب او احاطه كړې ده. هغه انواع ثلاثه دادى: ① په زمكه باندې چه كوم زنده سر چينجى وغيره اوسيږى دهغې طرف ته ئې په لفظ حيات سره اشاره اوكړه ② كوم ځناور چه په زمكه باندې ګرځى دهغې طرف ته ئې ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ إِلَّا هُوَ اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا﴾ سره اشاره اوكړه. ③ كوم چه په هوا باندې الوزى يعنى مرغئى دهغې طرف ته ئې په آيت مبارك ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صٰٓفّٰتٍ وَّيَقْبِضْنَ﴾ په ذريعه سره اشاره اوكړه.(2) دغه شان ټول انواع دحيواناتو د ترجمې لاندې راغلل. ولله دره.

## قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الثُّعْبَانُ الْحَيَّةُ الذَّكَرُ مِنْهَا

ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه ثعبان مذكرمار ته وائى. په دې تعليق كښې د لفظ ثعبان په ذريعه د قرآن كريم آيت ﴿فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ﴾ (3) طرف ته اشاره كړې شوې ده اود دې تفسير د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حواله سره بيان كړې شوې چه مذكرمار ته ثعبان وائى، ذكركولوسره ددې دپاره مقيد كړې دې چه د حية اطلاق مذكر اومؤنث دواړو صنفونو په مارانو باندې كيږى. په دې كښې چه كومه تاء ده هغه تاء د وحدت ده. تاء د تانيث نه ده لكه چه د تمرة تاء د وحدت دپاره ده.(4)

**دمذكوره تعليق تخريج:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذكوره بالااثر امام طبرى رحمه الله په خپل تفسير كښې دمثنى په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.(5) دغه شان ابن ابى حاتم رحمه الله هم په خپل طريق سره دا موصولاً ذكركړې دې (6) بعض حضراتو فرمائيلى دى چه ثعبان لوئى مار (اژدها) ته وائى كه هغه مذكر وى اوكه مؤنث. خو په آيت مبارك كښې هم مذكر مراد دې لكه چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د تفسير نه ظاهر دى.

**وَيُقَالُ: الْحَيَّاتُ أَجْنَاسٌ: الْجَانُّ وَالْأَفَاعِي وَالْأَسَاوِدُ. ﴿اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا﴾/هود: ۵۶/: فِي مِلْكِهِ وَسُلْطَانِهِ.**

**وَيُقَالُ: ﴿صٰٓفّٰتٍ﴾ بُسُطٌ أَجْنِحَتَهُنَّ ﴿يَقْبِضْنَ﴾/الملك: ۱۹/: يَضْرِبْنَ بِأَجْنِحَتِهِنَّ.**

**وَيُقَالُ: الْحَيَّاتُ أَجْنَاسٌ: الْجَانُّ وَالْأَفَاعِي وَالْأَسَاوِدُ:** او وئيلى شوى دى چه دمارانو ډير جنسونه او قسمونه دى لكه جنان دى افاعى دى اواسود. په دې جمله كښې دمارانو د مختلفو اجناسو وضاحت

---

(1) فتح البارى: ۳۴۷/۶ تعليقات اللامع: ۳۸۵/۷.

(2) تعليقات للامع: ۳۸۴/۷.

(3) سورة الأعراف: ۱۰۷.

(4) عمدة القارى: ۱۸۷/۱۵ شرح القسطلانى: ۳۰۶/۵ معجم النحو والصرف: ۱۴۴ رسيديه.

(5) جامع البيان (تفسير الطبرى): ۱۰/۶ الأعراف.

(6) فتح البارى: ۳۴۷/۶ تغليق التعليق: ۵۱۴/۳ والدر المنثور: ۱۰۶/۳.

کړې شوې دي. داصيلي په نسخه کښې الحيات أجناس أجناس په ځائې الجان أجناس ليکلې دې. خو د قاضي عياض په قول صحيح اولنې دې.[١] يعنى الحيات أجناس، ځکه چه جان پخپله جنس دې نو دې د اجناس کيدو څه معنى؟ دا جمله په حمقيقت کښې د مجاز القرآن مصنف حضرت ابوعبيده معمر المثنى رحمه الله کلام دې. کوم چه هغوى د سورة القصص د تفسير لاندې ذکر کړې دې.[٢]

**قوله: :جان**:[٣] جان نون مشدد سره، داد يوقسم مار دې وړوکې پړقيدونکې سپين مار چه نرې او سپک وى. ابن الاثير رحمه الله ليکلى دى دا عموماً په کورونو کښې وى.[٤]

**قران کريم اود موسى عليه السلام همسا**: د حضرت موسى عليه السلام مشهوره معجزه همسا (چوکې) ته قرآن کريم مختلف تعبيرات ورکړى دى. چرته نى دې ته ﴿كَأَنَّهَا جَانٌّ﴾[٥] وئيلى اوچرته ﴿حَيَّةٌ تَسْعَىٰ﴾[٦] اوچرته ﴿ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ﴾[٧] اوس دا ټول هم د يو څيز متنوع اوصاف دى.

چنانچه ددې يو جواب دادې چه دغه چوکې په شروع کښې د جان شکل اختيار کړو کوم چه وړوکې وى بيا په مزه مزه هغه ثعبان (لونى مار) کښې بدل شو کله چه هغه ډير لونى شو نو هغوى عليه السلام هغه په زمکه باندې اوغورزولو نوهغه د جادوګرو ټول ماران تيرکړل. ددې دويم جواب حافظ رحمه الله دا نقل کړې دې چه هغه په منډه کښې د حيه په شان نقل وحرکت کښې د جان په شان اود شيونو په تيرولو کښې د ثعبان په شان وو. والله اعلم بالصواب.[٨]

**قوله: :والأفعى**: داد افعى جمع ده ښځې مارې ته وائى. ددې نر ته أفعُوان - بضم الهمزة والعين - وائى. دده کنيت ابوحيان او ابويحيى دې ځکه چه دې د زرو کالو پورې ژوندې وى. د ده په خاصيتونو کښې يودادې چه د ده سترګه زخمى کړې وفورى صحيح کيږى اودې کله هم سترګه نه ړوندېږى.[٩]

**قوله: :الأساود**: دا د اسود جمع ده تور مار ته وائى. ابوعبيده رحمه الله فرمائى ((هى حية فيها سواد)) داد ټولو نه خبيث مار وى. ده ته سالخ هم وائى ځکه چه دې هرکال خپله څرمن بدلوى کومه چه د سپين

---

[١] حواله بالا عمدة القارى: ١٨٧/١٥.

[٢] فتح البارى: ٣٤٧/٦ كشف البارى كتاب التفسير: ٥٠٢-٥٠١.

[٣] علامه عينى جنان بكسر الجيم وتشديد النون ذكركړې دې. كوم چه د جان جمع ده. انظر العمدة: ١٨٧/١٥.

[٤] النهاية: ٢٩٦/١ باب الجيم مع النون.

[٥] سورة القصص: ٣١.

[٦] سورة طه: ٢.

[٧] سورة الأعراف: ١٠٧.

[٨] فتح البارى: ٣٤٨/٦-٣٤٧. قال الإمام عبدالقادر الرازى رحمه الله: فإن قيل: قد ذكرالله تعالى عصا موسىٰ عليه السلام بلفظ الحية والثعبان والجان، وبين الثعبان والجان تناف، لأن الجان الحية الصغيرة..... والثعبان الحية العظيمة.....؟ قلنا: أرادبر أنها فى صورة الثعبان العظيم وخفة الحية الصغيرة وحركتها، ويؤيدها قوله: ﴿فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَانٌّ﴾. الثانى: أنها كانت فى أول انقلابها تنقلب حية صغيرة صفراء دقيقة، ثم تتورم، ويتزايد جرمها، حتى تصير ثعبانا، فأريد بالجان أول حالها، وبالثعبان مآلها. مسائل الرازى من غرائب آى التنزيل:: ٢٢٠-٢١٩ سورة طه.

[٩] فتح البارى: ٣٤٨/٦ عمدة القارى: ١٨٨/١٥ إرشاد السارى: ٣٠٦/٥.

رنګ وي. (۱) د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ابوداؤد او نسائي کښې حديث دې په هغې کښې دی چه نبی کريم ﷺ به په دعاکښې فرمائيل ((أعوذبالله من أسدوأسود)) (۲) ددې نه د ده د خباثت او شرارت اندازه کيدې شي چه دالله تعالی نبی پاك هم د ده د شر نه پناه غواړي.

**د مارانو څه عجيبه عادتونه:** علامه قسطلاني رحمه الله ليکلي دی چه مارته د خوراك دپاره څه ملاؤ نه شي نو دې د پرخې په څاڅکو باندې ګذاره کوی او د يوې مودې پورې هم په دغه څاڅکو باندې وخت تيروی. څنګه چه د ده عمر زياتيږي د ده بدن وړوکې کيږي. مار اوبه نه څکی خو د شرابو ډير شوقين دې. که شرابو ته په څه طريقه دې اورسی نو دومره څکی چه بې خوده شي چه بعض وخت د ده په مرګ باندې خبره حصاريږي. د بربنډ سړی نه تختی د اور په ليدو سره خوشحاليږي او ددې په لټون کښې سرګردانه وی. بل دا چه پيښوسره ډيره زياته مينه کوی اوددې ډير شوقين دې. (۳)

(اخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا) : فِي مِلْكِهِ وَسُلْطَانِهِ: په دې کښې امام بخاری رحمه الله د قرآن کريم آيت ﴿مَا مِنْ دَآبَّةٍ إِلَّا هُوَ اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا﴾ (۴) طرف ته اشاره کړې ده. د کوم معنی چه دا ده يو ساه والا څيز داسې نه دې د چاتندې چه د هغه په قبضه کښې نه وی يعنی هرساه والادهغه په قدرت اوسلطنت کښې دې. د هغه د دائره اختيارنه څوك بهر وتلې نه شي. في ملكه وسلطانه، د ابوعبيده رحمه الله د تفسير جمله ده. (۵)

د ناصية مخصوص بالذکرکولووجه هم دغه ده چه عرب د اطاعت اوانقياد، تسليم اورضا دپاره دغه پورته جمله استعمالوی. ((ناصية فلان في يد فلان)) چه فلانکې د فلانکی تابعدار دې. په دې وجه به هغه د جنګی قيدی د تندی ويښته پرې کول کله چه به هغه دې آزادولو. دا به ددې خبرې طرف ته اشاره وه چه دا زما غلام او تابعدار دې. (۶)

وَيُقَالُ: (صافات) بُسُطٌ أَجْنِحَتَهُنَّ (يَقْبِضْنَ) /الملك: ۱۹/: يَضْرِبْنَ بِأَجْنِحَتِهِنَّ: په دې عبارت کښې آيت مبارك ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صٰفّٰتٍ وَّيَقْبِضْنَ﴾ (۷) طرف ته اشاره کړې ده اود آيت کلمه صافات وضاحت ئې کړې چه ددې معنی ده هغه مرغو خپلې وزرې خورې کړې دی. بيائې د يقبضن معنی اوخودله چه هغه مرغئې په الوتوکښې وزرې وهی.

اوس د آيت مبارك مطلب دا شو چه آيا دا خلق مرغو ته په نظر دغور او ژوروالی نه ګوری چه دا مرغئې دهغوی په سرونو باندې الوزی. کله خپلې وزرې الوتوسره خوروی کله ئې راغونډې کړی خپل خان طرف ته ئې دننه کړی. په هواکښې بغير د څه سهارې اودريږي. مګر دالله تعالی په قدرت باندې قربان شم چه هغه راپريوځی نه نه ګډې وډې کيږي. سبحان الله الخالق القادر على كل شيء دا په حقيقت

---

(۱) حواله جات بالا.

(۲) سنن أبی داؤد كتاب الدعوات باب مايقول الرجل إذا نزل المنزل رقم: ۲۶۳۰ وسنن النسائى الكبرى كتاب عمل اليوم والليلة رقم: ۵۶۳.

(۳) إرشادالساری: ۵/۳۰۷-۳۰۶ كتاب الحيوان للدميری: ۱/۴۴ الأسود السالخ والمستطرف فی كل فن مستظرف: ۲/۲۱۸ (الأفعی). دارالكتب العلمية وعمدة القاری: ۱۵/۱۸۸.

(۴) سورة الهود: ۵۶.

(۵) عمدة القاری: ۱۵/۱۸۸ فتح الباری: ۶/۳۴۸ ومجاز القرآن: ۱/۲۹۰ سورة هود.

(۶) التفسير الكبير للرازی: ۹/۱۸/۱۲ سورة هود.

(۷) سورة الملك: ۱۹.

كښې دامام تفسير حضرت مجاهد رحمه الله قول دې چه هغوى ددې په تفسير كښې ارشاد فرمائيلې دې. دا تفسيرى اثر ابن ابى حاتم رحمه الله د ابن ابى نجيح رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.[1]

**ترجمة الباب سره د ايات مناسبت:** دلته لكه څنګه چه وړاندې تيرشو امام بخارى رحمه الله درې آياتونه ذكر كولو سره د حيواناتو ټول انواعو طرف ته اشاره كړې ده اودا ټول انواع دلغوى معنى په اعتبارسره په دابه كښې داخل دى. والله اعلم بالصواب.

## الحديث الاول

۳۱۲۳- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ عَلَى المِنْبَرِ يَقُولُ: «اقْتُلُوا الحَيَّاتِ، وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ، وَالأَبْتَرَ، فَإِنَّهُمَا يَطْمِسَانِ البَصَرَ، وَيَسْتَسْقِطَانِ الحَبَلَ»[2]

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا عبدالله بن محمدبن عبدالله جعفى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[3]

**هشام:** دا هشام بن يوسف صنعانى قاضى يمن رحمه الله دې. د دوى تفصيلى تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأسها.... په ضمن كښې راغلى ده.[4]

**معمر:** دا معمر بن راشد آزدى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره بدء الوحى اوكتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده.[5]

**الزهري:** دامحمدبن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. ددوى مختصر تذكره بدء الوحى په دريم حديث كښې راغلې ده.[6]

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر بن خطاب قرشى عدوى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الايمان باب الحياء من الايمان كښې راغلى دى.[7]

---

[1] فتح البارى: ٣٤٨/٦ عمدة القارى: ١٨٨/١٥.

[2] قوله: عن ابن عمر رضي الله عنهما الحديث، رواه البخارى أيضا، فى الباب الآتى، باب خير مال المسلم غنم.... رقم: ٣٣١٠و ٣٣١٢ وفى المغازى باب شهود الملائكة بدراً، رقم: ٤٠١٦ ومسلم رقم: ٥٨٣٤-٥٨٢٥ فى الصلاة (كتاب الحيوان) باب قتل الحيات وغيرها، وأبوداؤد رقم: ٥٢٥٥-٥٢٥٣ فى الأدب، باب قتل الحيات والترمذى رقم: ١٤٨٣ فى كتاب الأحكام باب ماجاء فى قتل الحيات وابن ماجه فى الطب، باب قتل ذى الطفيتين رقم: ٣٥٨٠.

[3] كشف البارى: ٦٥٧/١.

[4] كشف البارى كتاب الحيض: ٢٠٢.

[5] كشف البارى: ٤٦٥/١، ٣٢١/٤.

[6] كشف البارى: ٣٢٦/١.

[7] كشف البارى: ١٢٨/٢.

**ابن عمر**: دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دي. ددوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب قول النبي صلی الله علیه وسلم بني الاسلام.... لاندې بیان کړې شوی دی.[1]

**قوله: أنه سمع النبي صلى الله عليه وسلم يخطب على المنبر يقول: اقتلوا الحيات، واقتلوا ذا الطفيتين والأبتر**: حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه هغوی دحضرت نبی کریم ﷺ نه په منبر باندې خطبه ورکوله نو دَهغوی نه ئې واورېدل فرمائیلې ماران وژنئې او په شاه باندې د دوو کرخو والا او د ورې لکئې والا مار هم وژنئې.

**دَطفيتين معني**: دا د طفیه تثنیه ده. دطاء مهمله ضمه او فاء په سکون سره دې. هغه مار ته وائی د کوم په شاه باندې دوه سپینې کرخې وی.[2]

**دَ الابتر معني**: دِ بتر معنی ده قطع کولو او ابتر هغه مار ته وائی د کوم چه یا خو لکئې نه وی یا ډیره وړه وی.[3]

نضر بن شمیل رحمه الله فرمائی چه دا د شین رنګ وی،د ده د زهر دا اثر دې چه، کله حامله ښځه دې ته ګوری نو د هغې حمل فوری توکه باندې پریوځی.[4]

**قوله: فإنهما يطمسان البصر**: ځکه چه دا دواړه ماران د سترګو نظر ختموی. طمس د باب نصر نه دې طمسا ددې مصدر دې. طمس عینه أوبصره معنی ده ړندونکې نظر ختمونکې. قرآن کریم کښې دکافرانو باره کښې الله تعالی فرمائیلی دی: ﴿وَلَوْنَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلَىٰٓ أَعْيُنِهِمْ﴾[5]

د ابن عمر رضی الله عنهما په دې حدیث کښې د ابن ابی ملیکه په طریق کښې «ويذهب البصر» راغلې دې.[6] خو د حضرت عائشه رضی الله عنها په روایت کښې «فإنه يلتمس البصر»[7] دکوم معنی چه د لټولو ده. یعنی هغه د نظرد نقصان د رسولو دپاره لټون کوی. خود مسلم شریف په روایت کښې د ابن عمر رضی الله عنهما یوطریق کښې «يخطفان البصر»[8] راغلې دې د کوم معنی چه د اخستلو او اوچتولو ده.[9] علامه دمیری رحمه الله فرمائی چه ددې جملې دوه مطلبونه دی: ① الله تعالی دهغه په سترګو کښې څه خاصیت او دیعت کیخودې دې چه کله د هغه سترګوسره یو انسان د نظر ملاوولوکوشش کوی نودا دواړه دهغه نظر ختموی. ② دې چه کله څوك ښېه جوړوی ټك ورکوی نو دهغه سترګې نښانه کوی. صحیح مطلب اولنې دې.[10]

---

[1] کشف الباري: ۶۳۷/۱.

[2] فتح الباري: ۳۴۸/۶عمدة القاري: ۱۸۸/۱۵إرشادالساري: ۳۰۷/۵.

[3] حواله جات بالا.

[4] فتح الباري: ۳۴۸/۶والمنهاج للنووي: ۴۴۹/۱۴.

[5] سورة يس: ۶۶

[6] وراندې باب کښې دا روایت راځی حدیث رقم: ۳۳۱۰.

[7] وراندې باب کښې دا روایت راځی حدیث رقم: ۳۳۰۸.

[8] مسلم شریف کتاب الحیوان (السلام) باب قتل الحيات رقم:۵۸۳۳.

[9] لسان العرب مادة: خطف.

[10] حياة الحيوان: ۱۳۲/۲.

ابن حزم رحمه الله هم اولنې مطلب اصح ګڼړلې دې. علماء حيوانيات ليکلي دی چه د مارانو يو قسم کوم ته چه ناظر وائي که دهغه نظر په يو انسان باندې پريوځي نوهغه غريب زر مړشي.[1]

ابن الجوزي رحمه الله کشف المشکل کښې فرمائی چه د عراق بعض علاقوکښې د مارانو داسې قسمونه هم دی چه خپل کتونکې صرف په خپل نظر سره وژني. څه داسې قسمونه هم دی که دهغه په لار باندې څوک تيرشي نو مړکيږي دهغه لار هم زهرژنه کيږي.[2]

**قوله: ويستسقطان الحبل**: اودادواړه د ښځې حمل ضائع کوی. يستسقطان د باب استفعال نه صيغه دمضارع ده چه دلته د يسقطان په معنی کښې ده اوحبل حمل ته وائي. مطلب دا چه کله دحامل ښځې نظر ددې دواړو قسمونو په مار باندې پريوځی نود ويرې د وجې نه دهغې حمل پريوځی.[3]

په کوم کښې چه څه زهريلا نه وی خو څه ډيرزيات خطرناك او خبيث وی. دکوم نه چه د دوو دلته په حديث کښې ذکر اوکړې شو. اوشراح هم په خپلو خپلو علاقو اودعلم مطابق د ډيرو قسمونو باره کښې اوفرمائيل. په دې سره د نورو انواعو او قسمونو نفی نه کيږي. والله اعلم.

**ددواړو انواعو د تخصيص وجه**: دلته حديث باب کښې نبی اکرم ﷺ د ذوالطفيتين او ابتر په خصوصيت سره ذکراوکړو اوددې د وژلو حکم ئې اوفرمائيلو. علامه داؤدی رحمه الله ددې دا وجه بيانوی چه جنات او شيطانان ددې دواړو شکل نه اختياروی. يعنی هغوی د دور کرخو والامار يا لکئی کټ شوی مار په شکل کښې اخوا ديخوا نه ګرځی راګرځی. کله چه دغه دواړه اووژلې شي نو حقيقی ماران به وی جنات به نه وی. څکه چه څنګه په وړاندې روايت کښې راځی چه پخپله رسول الله ﷺ د ذوات البيوت يعنی په کورونو کښې اوسيدونکی مارانو د وژلونه منع فرمائيلې ده. څکه چه جنات ددوی شکل اختياروی په دې وجه ددې دواړو تخصيص اوکړې شو چه دا جن نه شی کيدې.[4]

**قَالَ عَبْدُ اللهِ(٥): فَبَيْنَا أَنَا أُطَارِدُ حَيَّةً لِأَقْتُلَهَا، فَنَادَانِي أَبُو لُبَابَةَ: لَا تَقْتُلْهَا، فَقُلْتُ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَدْ أَمَرَ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ. قَالَ: إِنَّهُ نَهَى بَعْدَ ذَلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ، وَهِيَ الْعَوَامِرُ.**

---

[1]) حياة الحيوان: ۱۳۲/۲والأوجز: ۳۷۵/۱۷.

[2]) كشف المشكل لما فى الصحيحين: ۱۰۷/۲كشف المشكل من مسند أبى لبابة الأنصارى رضى الله عنه رقم: ۵۸۲/۶۹۸.

[3]) أرشاد السارى: ۳۰۷/۵عمدة القارى: ۱۸۸/۵فتح البارى: ۳۴۸/۶. دا دَ هغه دَ زهرو خاصيت دې قال الإمام النووى رحمه الله: معناه: أن الحامل إذا نظرت إليهما وخافت أسقطت الحمل غالبا. وقد ذكر مسلم فى روايته رقم: ۵۷۸۷عن الزهرى أنه قال: يرى ذلك من سمهما... المنهاج: ۱۴/۴۵۰-۴۴۹.

بهرحال دَ مارانو ډير انواع اواقسام دی. ونقل السهيلى عن المسعودى: أن الله تعالى لما أهبط الحية إلى الأرض أنزلها بسجستان، فهى أكثر أرض الله حيات. ولولا العربد (وهى حية عظيمة تأكل الحيات) يأكلها، ويفنى كثيرا منها، لخلت من أهلها لكثرة الحيات. حياة الحيوان: ۳۸۷/۱ الحية.

وقال الجاحظ: الحيات ثلاثة أنواع. نوع منها لا ينفع للسعته ترياق، ولا غيره. كالثعبان والأفعى، والحية الهندية. نوع منها ينفعه للسعته الترياق، وما كان سواهما مما يقتل. فإنما يقتل بواسطة الفزع. أوجز: ۳۶۳/۱۷.

[4]) وإنما أمر بقتلها، لأن الجن لا تتمثل بها...... وهي عن قتل ذوات البيوت، لأن الجن تتمثل بها. عمدة القارى: ۱۸۸/۱۵.

[5]) قوله: فنادنى أبولبابة: الحديث. اخرجه البخارى أيضا فى الباب القادم. باب خير مال المسلم...، رقم: ۳۳۱۱، ۳۳۱۲ومسلم كتاب السلام. (الحيوان)، باب قتل الحيات وغيرها. رقم: ۵۹۳۴-۵۸۲۵وابوداؤد رقم: ۵۲۵۵-۵۲۵۲ فى الأدب باب قتل الحيات. والترمذى رقم: ۱۴۷۳فى كتاب الأحكام باب ماجاء فى قتل الحيات وابن ماجه فى الطب، باب قتل ذى الطيتين، رقم: ۳۵۸۰

وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ: فَرَآنِي أَبُولُبَابَةَ، أَوْزَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ. وَتَابَعَهُ يُونُسُ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَإِسْحٰقُ الْكَلْبِيُّ وَالزُّبَيْدِيُّ. وَقَالَ صَالِحٌ وَابْنُ أَبِي حَفْصَةَ وَابْنُ مُجَمِّعٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ: رَآنِي أَبُولُبَابَةَ وَزَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ. [٣١٣٤، ٣١٣٥، ٣٧٩٢].

قَالَ عَبْدُ اللهِ: فَبَيْنَا أَنَا أُطَارِدُ حَيَّةً لِأَقْتُلَهَا، فَنَادَانِي أَبُولُبَابَةَ: لَا تَقْتُلْهَا. حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی په هغه وخت چه زه يو مار پسې شاته لګيدلې ووم چه هغه اووژنم. حضرت ابولبابه رضي الله عنه ماته آواز راکړو چه دا مه وژنه.

د عبد الله نه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مراد دې. (١) او ددې ځائې نه هغه دهغه واقعه ذکرکوی چه دهغوی اود حضرت ابولبابه رضي الله عنه په مينځ کښې پيښه شوې وه. **أطارد** د باب مفاعله نه دمضارع متکلم صيغه ده. دکوم معنی چه يوڅيز پسې شاته تلل. (٢)

**حضرت لبابه انصاري** رضي الله عنه: دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابی ځان قربانونکې ملګرې حضرت ابولبابه بن عبدالمنذر انصاری مدنی رضي الله عنه دې. (٣)

امام زهری رحمه الله او خليفه بن خياط رحمه الله دهغه نوم بشير خودلې دې. (٤) خو امام احمد، امام ابن معين، حافظ ابن هشام، ابوزرعه دمشقي، حافظ ابونعيم اصفهانی او امام مسلم رحمهم الله ددوی نوم رفاعه بن عبدالمنذر خودلې دې. (٥) او د بعض حضراتو خيال دادې چه رفاعه پخپله دهغوی نوم نه دې بلکه دهغوی د رور نوم دې. چنانچه دهغه دوه رونړه وو، يو رفاعه او دويم مبشر. (٦) خو په خپل کنيت ابولبابه سره مشهور وو. (٧)

دمشهور قول مطابق د نيکه نوم ئې زنير بن زيد بن مالك دې. (٨) دمدينې منورې مشهوره قبيله اوس سره دهغوی تعلق وو. (٩) د هغوی مور نسيبه بنت زيد بن ضبيعه ده. (١٠)

بعض حضرات وائی چه حضرت ابولبابه رضي الله عنه په غزوه بدر کښې شريك وو خو صحيح خبره دا ده چه حکماً دې بدری دې مګر هغوی په غزوه بدر کښې شرکت نه وو کړې. په حقيقت کښې داسې شوې وو چه حضرت ابولبابه رضي الله عنه هم د نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان دحضورپاك صلى الله عليه وسلم په ملګرتيا کښې د بدر د پاره روان شوې وو مګر دمقام روحاء نه نبی کريم صلى الله عليه وسلم د عامل په توګه هغه مدينې ته واپس کړې وو.

---

(١) عمدة القاري: ١٨٩/١٥، فتح الباري: ٣٤٨/٦، إرشاد الساري: ٣٠٧/٥.

(٢) حواله بالا ولسان العرب، مادة: طرد.

(٣) تهذيب الكمال: ٢٣٢/٣٤ الترجمة: ٧٥٩١ باب اللام من الكنى، وتهذيب التهذيب: ٢١٤/١٢.

(٤) حواله جات بالا، بعض حضراتو يسير – ياء اوسين سره – خودلې دې. تهذيب ابن حجر: ٢١٤/١٢ خو امام زمخشري وغيره په قول دهغوی نوم مروان وو. انظر الكشاف: ٢٠٧/٢ سورة الانفال، الآية: ٢٧.

(٥) حواله جات بالا والاستيعاب بهامش الإصابة: ١٦٨/٤ وتعليقات تهذيب الكمال: ٢٣٢/٣٤ سيرة ابن هشام: ٤٥٦/١ ومعرفة الصحابة: ٢٨٠/٢.

(٦) تهذيب الكمال: ٢٣٢/٣٤ تهذيب ابن حجر: ٢١٤/١٢ والإصابة: ١٦٨/٤ القسم الأول/اللام.

(٧) قال العيني غلبت عليه كنيته: ١٨٩/١٥.

(٨) تهذيب الكمال وتعليقاته: ٢٣٢/٣٤.

(٩) تهذيب الكمال: ٢٣٢/٣٤ والإصابة: ١٦٨/٦.

(١٠) تهذيب الكمال: ٢٣٣/٣٤.

دغزوه نه فارغ كيدو نه پس د بدر د غنيمت نه هغوى ته حصه هم ملاؤ شوه اود بدرى صحابه اجر هم. دغه شان حضرت ابولبابه رضي الله عنه حكماً بدرى شو.(١)

حضرت ابولبابه رضي الله عنه په بيعت عقبه كښې شريك وو. هغه د خپل قوم د نمانده او نقيب په حيثيت سره د حضورپاك سره ملاقات كړې وو. (٢)

ابن عبد البر رحمه الله فرمائى چه دې په غزوه احد او باقى پاتې ټولو غزواتو كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريك وو. د فتح مكه په موقع باندې د بنى عمروبن عوف جهنډا ددوى په لاس كښې وه.(٣)

دې دحضرت نبى اكرم صلى الله عليه وسلم اوحضرت عمر رضي الله عنه نه د حديث روايت كوى. د دوى دواړه ځامن حضرت سائب اوحضرت عبدالرحمن، بل حضرت ابن عمر، سالم بن عبدالله بن عمر، نافع مولى ابن عمر، عبدالله بن كعب عبدالرحمن بن يزيد بن جابر اوعبيدالله بن ابى يزيد وغيره روايت دحديث كوى. (٤)

دحضرت ابولبابه رضي الله عنه انتقال دحضرت عثمان غنى رضي الله عنه د شهادت نه پس دحضرت على رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې شوې. (٥)خود يوقول مطابق د ٥٠هجرى نه پس (دمعاويه رضي الله عنه په خلافت) كښې انتقال شوې. (٦)

بخارى مسلم ابوداؤد او ابن ماجه رحمهم الله ددوى نه روايات اخستى دى. (٧)په صحيح بخارى كښې دهغوى صرف هم دغه حديث باب دې. رضي الله عنه وعنهم (٨)

دحضرت ابولبابه نه ټول پنځلس (١٥) احاديث نقل دى.په كوم كښې چه يوحديث متفق عليه دې. (٩)

**فقلت: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم قد أمر بقتل الحيات:** نوما اووئيل رسول الله صلى الله عليه وسلم د مارانود وژلو حكم وركړې دې. داد ابن عمر رضي الله عنه قول دى. خو ابولبابه رضي الله عنه هغه دمذكوره مار د وژلونه منع كړو نوهغه حضرت ابولبابه رضي الله عنه ته اووئيل چونكه دحضورپاك حكم دې په دې وجه ئى وژنم.

**قال: إنه نهى بعد ذلك عن ذوات البيوت:** حضرت ابولبابه رضي الله عنه اوفرمائيل دذې نه پس حضورپاك د كور د مارانو د وژلونه منع فرمائيلې وه.

**قتل حيات سره متعلق مختلف روايات:** په حديث باب كښې راغله چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما يومار پسې شاته روان وو چه هغه اووژنى. خو د حضرت ابولبابه رضي الله عنه په وينا باندې منع شو. په وړاندې باب

---

(١) حواله جات بالا وسيرة ابن هشام: ٦١٢/٢ تهذيب ابن حجر: ٢١٤/١٢والاستيعاب بهامش الإصابة: ١٦٨/٤والإصابة: ١٦٨/٤.

(٢) تهذيب الكمال: ٢٣٣/٣٤تهذيب ابن حجر: ٢١٤/١٢ والإصابة: ١٦٨/٤.

(٣) حواله جات بالا. والاستيعاب بهامش الإصابة: ١٦٨/٤.

(٤) د شيوخ اوتلامذه د تفصيل د پاره او ګورئى تهذيب الكمال: ٢٣٣/٣٤.

(٥) حواله بالا. عمدة القارى: ١٨٩/١٥خود حافظ تهذيب: ٢١٤/١٢ اواصابه: ١٦٨/٤ كښې خو هم دغه دى كوم چه نور حضرات فرمائى چه دحضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه پس دحضرت على رضي الله عنه دخلافت په زمانه كښې دحضرت ابولبابه رضي الله عنه انتقال شوې مګر فتح البارى: ٣٤٨/٦كښې دى: (مات فى أول خلافة عثمان على الصحيح) چه تقريباً د ٢٤ يا ٢٥هجرى زمانه جوړيږى. په ظاهره دا تسامح دې. د روستو يوناسخ نه چرته سهو شوې ده ځكه چه د فتح البارى په حاشيه كښې دى (في نسخة: في آخر) هم دغه نسخه صحيح ده. خصوصاً په نورو تاليفاتو كښې ددې خلاف دى. والله أعلم.

(٦) تهذيب الكمال: ٢٣٣/٣٤تهذيب ابن حجر: ٢١٤/١٢ والإصابة: ١٦٨/٤.

(٧) تهذيب الكمال: ٢٣٣/٣٤وخلاصة الخزرجى حرف اللام من الكنى: ٤٥٨.

(٨) فتح البارى: ٣٤٨/٦عمدة القارى: ١٨٩/١٥.

(٩) وخلاصة الخزرجى حرف اللام من الكنى: ٤٥٨.

كښې هم دغه حديث د ابن ابى مليكه رحمه الله په طريق راخې په هغې كښې دى: «أن ابن عمر كان يقتل الحيات، ثم نهى، قال: إن النبى صلى الله عليه وسلم هدم حائطا له، فوجد فيه سلخ حية، فقال: انظروا أين هو؟ فنظروا، فقال: اقتلوه فكنت أقتلها لذلك» [1]

يعنى حضرت ابن عمر رضى الله عنهما به ماران وژل چه (ناڅاپى) بيا منع كړې شواو وئى فرمائيل چه نبى كريم ﷺ خپل يو ديوال ماتولو چه دهغې دننه خلقوته د مار يوپوټ ملاؤ شو (چه ددې خبرې دليل وو چه دلته د مار داوسيدو ځائى دې) حضورپاك اوفرمائيل دا اولټوئى كله چه ئى اولټولو نو ملاؤ شو. نو حضورپاك اوفرمائيل دا مړكړئى. نو هم په دې وجه به ما دا وژل.

ددې روايت نه دحضرت ابن عمر رضى الله عنهما دمذكوره فعل وجه معلومه شوه چه هغوى به ماران ولې وژل بيائى هم پخپله ددې نه منع فرمائيلې. غالبًا دا به د حضورپاك د وفات نه پس شوې وى. د ممانعت وجه هم په دې روايت كښې ذكر ده. «فلقيت أبا لبابة، فأخبرنى أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: لا تقتلوا الجنان إلا كل أبتر ذى طفيتين، فإنه يسقط الولد...» [2]

نو زما ملاقات حضرت ابولبابه رضى الله عنه سره اوشو نوهغه ماته اوخودل چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دې چه ماران مه وژنئى. د جنان نه مراد جنان البيوت دې لكه چه دحضرت نافع رحمه الله په طريق كښې دى. [3]

**دَ جنان البيوت دَ وژلو ممانعت ولې دې؟**: لكه څنګه چه تاسو پورته اوكتل چه اول د مارانو د وژلو مطلقًا اجازت وو. بيا ددې حكم تخصيص اوكړې شو چه جنان مه قتل كوئى. ددې ممانعت وجه څه وه؟ نو په دې باندې تفصيلى رنړا ددې روايت نه پرېوځى كوم چه امام مسلم رحمه الله ذكر كړې دې چه هغه يوخل د مشهور صحابى حضرت سعيد خدرى رضى الله عنه په كور كښې حاضر شوم. فرمائى چه صحابى رسول دغه وخت په مانځه كښې مشغول وو. نوما دهغه د فارغ كېدو انتظار كولو. ناڅاپى دكور په ګوټ كښې چرته چه كهجورې وې ما څه حركت محسوس كړو. كله چه مې هلته اوكتل نويومار وو. دهغه د وژلو دپاره ما ورټوپ كړو. نوحضرت ماته اشاره اوكړه چه كېنه نوزه كېناستم. كله چه هغوى د مانځه نه فارغ شو نودكور يوحصې طرف ته ئى اشاره اوكړه او وئى فرمائيل چه آيا دا كوټه وينى؟ ما وئيل اوجى. حضرت ابوسعيد خدرى رضى الله عنه اوفرمائيل په دې كمره كښې زمونږ يو ځوان اوسېدو د چا چه نوې نوې واده شوې وو. مونږ د غزوه خندق دپاره حضورپاك سره اووتلو نودې ځوان په نيمه ورځ كښې د غزوه نه اجازت اخستو سره خپل كور ته واپس شو. حسب معمول يوه ورځ چه هغه د نبى كريم ﷺ نه د كور ته د تلو اجازت واخستو نو حضورپاك ورته اوفرمائيل چه خپله وسله ځان سره واخله لارشه. زما انديښنه ده چه بنوقريظه تاته څه نقصان اونه رسوى. د ارشاد مطابق هغه ځوان خپله وسله واخسته او دخپل كورطرف ته روان شو. چه وئى كتل نودهغه بى بى د دروازې په مينځ كښې ولاړه وه. دې په غيرت كښې راغلو او خپله بى بى په نيزه باندې د وهلو دپاره ورمخكښې شو نو بى بى ورته اووئيل صبر اوكړه نيزه ښكته كړه او كورته دننه راشه دې دپاره چه تاته زماد كور نه د بهر وتلو وجه او سبب معلوم شى (تادى مه كوه). نو چه هغه ځوان كورته وردننه شو وئى كتل چه يو ډېر لوئى مار دې چه د بسترې نه راتاؤ شوې دې. دا ځوان دهغه مار طرف ته ورمخكښې شو او هغه ئى په خپله نيزه كښې

---

[1] صحيح البخارى باب خير مال المسلم غنم.... رقم: ٣٣١٠.

[2] حواله بالا رقم: ٣٣١١.

[3] حواله بالا رقم: ٣٣١٢.

اوپيللو. اوبهر راغلو د كور په صحن كښې ئې هغه نيزه ورخښه كړه. ناځاپې مار دهغه ځانې نه راتاؤ شو او په هغه باندې ورپريوتلو. اوس پته نه لګى چه په دغه دواړو كښې اول كوم يومړ شو هغه مار كه خوان؟ (يعنى دواړه فورى مړه شو). حضرت ابوسعيد خدرى رضی الله عنه وائى چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم له راغلو او ټوله واقعه مو ورته بيان كړه. مونږ دا هم اووئيل چه دعا اوكړه چه دغه خوان راژوندې شى. حضورپاك اوفرمائيل ((استغفروالصاحبكم)) دخپل ملګرى دپاره استغفار اوكړئى (دې مړ شوې بيا نه شى راژوندې كيدې) بيا حضورپاك اوفرمائيل ((إن بالمدينة جناقد أسلموا، فإذا رأيتم منهم شيئا فذنوه ثلاثة أيام، فإن بدالكم بعد ذلك فاقتلوه، فإنما هوشيطان)) يعنى په مدينه منوره كښې جنات هم دى چه مسلمانان شوى دى كه چرې تاسو خلق دهغې نه څه نابلد څيز اووينئى نو دغه جن درې ورځې خبرداركړئى، بياكه چرې مناسب ښكارى (چه هغه نه منع كيږى) نوهغه مړكړئى ځكه چه هغه شيطان دې (مسلمان جن نه دې).

په دې حديث سره داخبره په پوهه كښې راغله چه په كورونو كښې اوسيدونكى مارانو باره كښې احتياط كول پكار دى كيدې شى چه هغه د مار په ځانې جن وى. دغه شان به د جناتو د دښمنئى ښكار شى لكه چه پورته په مذكوره واقعه كښې هغه خوان انصارى صحابى چه دهغه د دښمنئى ښكار شو. چنانچه په كورونو كښې اوسيدونكو مارانو باره كښې ددې حديث شريف نه لارخودنه ملاويږى چه تركومې پورې هغه اونه ويرولې شى خبردار نه كړې شى هغه مه وژنئى. د تنبيه نه پس هم كه هغه په كوركښې ګرځى راګرځى نوهغه ناقض عهد دې هغه وژل بالكل صحيح دى. ځكه چه هغه د هغه عهد خلاف ورزى اوكړه كومه چه جناتو رسول الله صلی الله علیه وسلم سره كړې وه چه هغوى به ستاسو د امت په كورونو كښې نه اوسيږى اوخپل ځان به نه ښكاره كوى. اوس د خلقو په وړاندې ښكاره كيدو سره هغه وعده خلافى كړې ده نوهغه ته چه كوم حرمت حاصل وو هغه ختم شو اوهغه دعامو مارانو په درجه كښې راغلو اوعام ماران وژل بالكل صحيح او جائز دى.

علامه طحاوى رحمه الله فرمائى: ((لابأس بقتل الكل، لأنه صلى الله عليه وسلم عاهد الجن أن لايدخلوا بيوت أمته، ولا يظهروا أنفسهم، فإذا خالفوا فقد نقضوا عهدهم، فلا حرمة لهم، وقد حصل فى عهده صلى الله عليه وسلم وفيمن بعده الضرر بقتل بعض الجنات من الجن، فالحق أن الحل ثابت، ومع ذلك فالأولى الإمساك عما فيه علامة الجن، لا للحرمة، بل لدفع الضرر المتوهم من جهتهم.....))[1]

**كورني ماران به څنګه ويروي؟**: پورته ذكر شو چه په كوركښې چرته ما رښكاره شى نوهغه ته به تنبيه كولې شى اوس به تنبيه انذار به څنګه وى، په دې كښې مختلف اقوال دى. قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه ابن حبيب رحمه الله د نبى كريم صلی الله علیه وسلم نه دا الفاظ نقل كړى دى چه كوم سړې مار اووينى هغه دې دا كلمات وائى: ((أنشدكن بالعهد أخذ عليكم سليمان بن داود أن لاتؤذونا))[2]

او د ترمذى شريف په روايت كښې دى چه حضورپاك داسې فرمائيلى ((إذا ظهرت الحية فى المسكن، فقولوا لها: إنانسألك بعهد نوح وبعهد سليمان بن داود أن لاتؤذينا، فإن عادت فاقتلوها))[3] هم ددې په شان الفاظ ابوداؤد

---

[1]) أوجز المسالک: ۳۶۵/۱۷نوراوګورئى شرح مشكل الآثار: ۳۸۱/۷باب بيان مشكل ماروى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى الحيات من إطلاق قتلها..... رقم: ۴۶۰.

[2]) شرح النووى على صحيح مسلم: ۴۴۹/۱۴وإكمال المعلم: ۱۵۵/۷والديباج للسيوطى: ۲۵۴/۵ ونيل الأوطار: ۲۹۷/۸.

[3]) سنن الترمذى كتاب الصيد، باب ماجاء فى قتل الحيات: رقم: ۱۴۸۵.

شریف کښې هم دی.(۱) خو امام مالک رحمه الله فرمائي چه دومره اندازه باندې وینا کول جائز دی. ((أحرج علیك الله والیوم الآخر أن لاتبدولنا ولاتوذینا))(۲)

قاضي عیاض رحمه الله او علامه نووي رحمه الله وغیره فرمائي چه امام مالک رحمه الله دا کلمات د حدیث مبارک الفاظ ((إن لهذه البیوت عوامر، فإذا رأیتم شیئا منها فحرّجوا علیها ثلاثا))(۳) نه اخستي دي د کوم مطلب او معنی چه داده (اې ماره!) که زمونږ په مینځ کښې پاتې شوې یا زمونږ مخې ته ښکاره شوې یا زمونږ طرف ته واپس راغلې نو ته به په سختنۍ او مشکل کښې پریوځې.(۴)

**څومره ورځې انذار دې اوکړی:** اوس پورته په روایت کښې د ثلاثا الفاظ راغلي دي. اوس د ثلاثا نه څه مراد دې؟ په دې کښې د محدثینو حضراتو اختلاف پیدا شوې دې. بعض حضرات وائي چه درې خل به ئې ویرنی، تنبیه به ورکولې شي. خو جمهور علماء امت لکه علامه دمیري رحمه الله فرمائي نیز دې موده د انذار درې ورځې ده. د حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه د روایت بعض طرق کښې د دې صراحت دې ((فآذنوه ثلاثة أیام))(۵) په دې کښې د ایذان نه مراد هم انذار دې.(۶) مطلب دا دې چه دې به درې ورځې ویرولې شي. په دې دوران کښې که څوځل هم په ورځ کښې مخې ته راغلو نوده پسې کیږي به نه. عیسی بن دینار رحمه الله فرمائي: ((ینذروا ثلاثة أیام، ولاینظر إلی ظهورها، وإن ظهرت في الیوم مرارا))(۷)

**که د انذار نه باوجود هم هغه منع نه شو:** که چرې د درېو ورځو د تنبیه او انذار نه باوجود هم هغه مار په کور کښې ګرځیدونکې ښکاره شو او منع نه شو نو دهغې په وژلو کښې هیڅ حرج نشته دې ځکه چه هغه د عوامر البیوت نه نه دې او نه هغه جن مسلم دې بلکه هغه شیطان دې د کوم چه وژل بالکل مباح دی. هم د دې نه په ((فإنما هو شیطان)) سره تعبیر کړې شوې دې. ابن حزم ظاهري رحمه الله فرمائي: ((معناه، إذا لم یذهب بالإنذار علمتم أنه لیس من عوامر البیوت، ولا ممن أسلم من الجن، بل هو شیطان، فإنه لاحرمة له فاقتلوه ولن یجعل الله له سبیلا للانتصار علیکم بثأره، بخلاف العوامر ومن أسلم......))(۸)

**ایا د انذار حکم مدینې منورې سره خاص دې؟:** امام مازري رحمه الله فرمائي چه د مدینة النبي صلی الله علیه وسلم ماران به بغیر د انذار او تنبیه نه نه شي وژلې. ترکومې چه د نورو علاقو د مارانو تعلق دې که هغه په کورونو کښې وی که د زمکې په څه حصه کښې هغه بغیر د انذار نه مدوب دی. د دغه احادیث صحیحه په رڼړا کښې په کومو کښې چه د هغې د وژلو حکم راغلې دې لکه چه د دې باب په حدیث کښې راغلی دی ((اقتلوا الحیات......)) او د مسلم شریف یو روایت دې. ((خمس فواسق یقتلن في الحل

۱) أبوداؤد كتاب الأدب باب في قتل الحيات رقم: ۵۲۶۰ وشرح الزرقاني على الموطأ: ۳۸۸/۴.

۲) شرح النووي على مسلم: ۱۴/۱۴۴ والأجز المسالک: ۳۶۹/۱۷.

۳) حواله جات بالا وشرح الزرقاني: ۳۸۸/۴ وإكمال المعلم: ۱۵۶/۷.

۴) عمدة القاري: ۱۸۹/۱۵ وفتح الباري: ۳۴۹/۶.

۵) دا حدیث اوس تیر شوې دې.

۶) أوجز المسالک: ۳۷۲/۱۷.

۷) حواله بالا فتح الباري: ۳۴۹/۲ والمنتقی: ۳۰۲/۷ وإكمال المعلم: ۱۶۱/۷.

۸) الأوجز: ۳۸۳/۱۷ کتاب الاستئذان.

والحرم))[١] په دې كښې دحيه هم ذكر دې او انذار چرته هم ذكر نه دې. بل هغه حديث په كوم كښې چه په مقام منى [٢] كښې مخې ته راتلونكى مار ذكر دې چه رسول الله ﷺ دهغې د وژلو حكم وركړې وو نه په هغې كښې د انذار ذكر شته اونه صحابه كرامو ﷺ هغه تنبيه كړې وو. هم ددغه احاديثو په بنياد باندې ډيرو علماؤ د مارانو وژل مطلقاً مستحب ګرځولى دى. [٣] دې نه علاوه امام مالك ﷫ داحكم ښاريوسره خاص كړې دې چه مدينه منوره او نور ښارونه دې په دې كښې انذار اوتنبيه مناسبت ده په صحراګانو اوكولاؤ ميدانونو كښې ددې ضرورت نشته. [٤]

**په مانځه كښې دَ مار وژلوحكم:** د مونځ داداكولو په وخت كه يومار يا لړم مخې ته راشى نودهغې په وژلو كښې مطلقاً هيڅ حرج نشته دې. اوكه چرې څه انديښنه اوخطره وى چه ددغه مار نه بچ شى كوم چه نيغ روان دې د سپوږمئى په شان پرقيرې او سپين دې څكه چه دا د جنات نه دې نودغه بغيرد وژلو پريخودل اولى دى. والله اعلم بالصواب. [٥]

**قوله: وهى العوامر:** هغه (ذوات البيوت) په كورونو كښې اوسيدونكى دى. په دې جمله كښې د ذوات البيوت تفسير كړې شوې دې. دا د امام زهرى ﷫ كلام دې كوم چه مدرج فى الخبر دې. چنانچه د معمر ﷫ په طريق كښې ددې تصريح ده. [٦] عوامر جمع د عامِرة ده، دا عمر - بفتح العين - نه مشتق دې. طول بقا اود عمر زياتوالى ته وائى. اهل لغت علامه جوهرى ﷫ وغيره فرمائى چه ((عمار البيوت سكانها من الجن)) دې نه مراد په كورونو كښې اوسيدونكى جنات دى. هغوى ته عوامر څكه وائى چه دوى په كورونو كښې د اوږدې مودې پورې اوسيږى. خو د څه حضراتو وينا ده چه دوى ته عوامر د عمر د اوږدوالى د وجې نه وائى. د جناتو عمر ډير اوږد وى اود صدو پورې ژوندى وى. [٧]

خودحديث په مناسبت سره دلته رومبې معنى زياته صحيح ده. څكه چه دحضورپاك مقصد دهغوى د عمر اوږدوالى خودل نه دى بلكه دا خودل دى چه د مار په شكل كښې بعض وخت جنات هم په انسانى كورونو كښې اوسيږى. په دې وجه كتل پكاردى چه چرته جن خو نه وژلې كيږى چه بيا دهغوى په دښمنئى باندې واوړى. والله اعلم بالصواب.

---

[١] مسلم كتاب الحج باب مايندب للمحرم وغيره قتله من الدواب..... رقم: ٢٨٦٢حديث عائشة.

[٢] صحيح البخارى كتاب بدء الخلق باب خمس من الدواب رقم: ٣٣١٧وكتاب الحج،باب ما يقتل المحرم من الدواب رقم: ١٨٣٠

[٣] شرح النووى على مسلم: ٤٤٩/١٤ والأوجز: ٣٦٤/١٧.

[٤] شرح النووى على مسلم: ٤٤٩/١٤ والأجز: ٣٦٥/١٧وشرح الزرقانى: ٣٨٦/٤إكمال المعلم: ١٥٥/٧فتح البارى: ٣٤٩/٦عمدة القارى: ١٨٩/١٥التوضيح: ٢٣٢/١٩.

[٥] الدر المختار: ٥٠٩/٢-٥٠٨كتاب الصلاة باب مايفسد فى الصلاة وما يكره فيها، مطلب: الكلام على اتخاذ المسبحة، وتبيين الحقائق: ١٦٦/١كتاب الصلاة باب ما يفسد فى الصلاة ومايكره، ومراقى الفلاح: ٣٠٠ إكمال المعلم: ١٥٨/٧والأوجز: -٣٦٧ ٣٦٨/١٧.

[٦] قال الزهرى وهى العوامر. مسند الإمام أحمد: ٤٠٧/٥حديث أبى لبابة عن النبى صلى الله عليه وسلم رقم: ١٦٨٤ عالم الكتب.

[٧] عمدة القارى: ١٨٩/١٥فتح البارى: ٣٤٩/٦إرشادالسارى: ٣٠٧/٥التوضيح لابن الملقن:٢٣٢/١٩الصحاح للجوهرى: ٧٤١مادة: عَمَرَ.

**دَ انسانانو اومارانود دښمنئ سبب:** امام طبری رحمه الله خپل تفسیر[1] کښې په سند متصل سره دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړی دې دالله تعالی دښمن ابلیس لعین په مخ د زمکې ټولو ځناورو او ښاروو سره دَ معامله برابرولو کوشش اوکړو چه څوك دې جنت ته اورسوی نوټولو ځناورو انکار اوکړو. تردې چه هغه مار سره خبره اوکړه او ونې وئیل که ته ما د جنت دننه حصې ته بوځې نو زه به تاد بنی آدم نه بچ کوم اوته به زما په پناه کښې ئې تاته به څوك نقصان نه شی دررسولې. نو مار دهغه خبره اومنله او په خپله شاه باندې سور کړو جنت ته ئې دننه بوتلو. په دې وجه به حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیل: «اقتلوها حیث وجدتموها، اخفروا ذمة عدوالله»[2] مار چه کوم ځائې هم ملاؤ شی هغه وژنئ دَالله تعالی د دښمن پناه ماته کړئ.

**قوله:: وقال عبدالرزاق [3] عن معمر [4] فرآنى أبولبابة، أوزيد بن الخطاب:**

اوعبدالرزاق رحمه الله د معمر رحمه الله نه روایت کولوسره په شك کښې اوفرمائیل چه زه ابولبابه رضي الله عنه یا زید بن الخطاب رحمه الله اولیدم.

**حضرت زید بن الخطاب:** دا دَامیرالمؤمنین حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه د پلار شریك رور حضرت زید بن الخطاب بن نفیل قرشی عدوی رضي الله عنه دې. ابوعبدالرحمن [5] ددوی کنیت دې. [6] د دوی دمور نوم اسماء بنت وهب بن حبیب یا اسماء بنت حبیب بن وهب دې. [7] دې د امیرالمؤمنین حضرت عمرفاروق رضي الله عنه نه په عمر کښې مشر وو. مخ غنم رنګې او قد ډیر اوږد وو. بدری دې په غزوه بدر او نورو ټولو غزواتو کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره وو. [8] حضرت زید رضي الله عنه دحضرت عمر رضي الله عنه نه اول اسلام قبول کړې وو. په مهاجرین اولین کښې دهغوی شمیر دې. حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د حضرت زید رضي الله عنه اوحضرت معن بن عدی عجلانی رضي الله عنه په مینځ کښې مواخاة قائم کړې وو. [9] د بدر په ورځ حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ته اووئیل چه زما زغره تاسو واچوئی نوحضرت زید رضي الله عنه اوفرمائیل «انی ارید من الشهادة ماترید» ځکه چه ته شهادت غواړې داسې زه هم شهادت غوارم نو دواړو حضراتو زغرې وانچولې. «فترکاها جمیعا» [10]

مشهور او تاریخی جنګ یمامه کوم چه دمسیلمه کذاب خلاف جنګیدلې وو کښې حضرت زید رضي الله عنه د مسلمانانو علمبردار وو. د اسلامی لښکر جهنډا دهغه په لاس کښې وه. هغه ده په لاس کښې نیولې یو شان مخکښې ورروان وو. تردې چه د دښمن په صفونو کښې ورننوتلو او توره ئې چلوله او آخر

---

[1] تفسیر طبری: ۲۷۵/۱.

[2] التوضیح لابن الملقن: ۲۳۳/۱۹ نوادرالأصول فی أحادیث الرسول: ۸۱/۱ الباب الخامس والثلاثون.

[3] دَ امام عبدالرزاق صنعانی رحمه الله تذکره کشف الباری کتاب الإیمان: ۴۲۱/۲ کښې راغلې ده.

[4] :دَ امام معمر بن راشد رحمه الله تذکره کشف الباری کتاب العلم: ۳۲۱/۴: ۴۲۱/۲ کښې راغلې ده.

[5] تهذیب الکمال کښې دَ طباعت دَ غلطئ په وجه دَ ابوعبدالرحمن په ځائې عبدالرحمن لیکلې دې اوګورئ: ۶۵/۱۰

[6] حواله بالا سیرأعلام النبلاء: ۲۹۸/۱ الإصابة: ۵۱۸/۲

[7] تهذیب الکمال: ۶۵/۱۰ رقم الترجمة: ۲۲۰۵ الإصابة: ۵۶۵/۱ القسم الأول.

[8] حوالا بالا سیرأعلام النبلاء: ۲۹۸/۱.

[9] حواله جات بالا حضرت معن عدی هم په جنګ یمامه کښې شهید شوې

[10] حواله جات بالا مزی دا واقعه دَغزوه احد خودلې ده. والله اعلم

شهيد شو.(۱) نو جهندا پريوتله كومه چه حضرت سالم مولى ابوحذيفه رضي الله عنه دوباره اوچته كړه.(۲) دهغوى د شهادت دا واقعه ربيع الاول ۱۲ هجرى د ابوبكر صديق په زمانه كښې پيښه شوه.(۳)

حضرت عمر رضي الله عنه ته چه كله دهغوى د شهادت خبر ملاؤ شو نوډير زيات خفه شو او ونې فرمائيل چه زما نه اول نې اسلام قبول كړو اود شهادت په شان عظيم نعمت هم ورته زما نه مخكښې ملاؤشو.(۴) نور به نې فرمائيل چه كله به هم بادصبا د چليدلو نوماته به دزيد رضي الله عنه خوشبوئي راتلله.(۵)

ده به د حضرت نبى كريم ﷺ نه دحديث روايت كولو. خودهغوى نه دحديث روايت كونكو كښې دهغه خوئي عبدالرحمن او وراره ابن عمر رضي الله عنهما شامل دى.(۶) په كتب ستة كښې دحضرت زيد بن خطاب رضي الله عنه نه صرف هم دغه يوحديث باب نقل دې. كوم چه امام بخارى تعليقاً نقل كړې دې.(۷) ددوى نه صرف درې احاديث نقل دى په كوم كښې چه يو متفق عليه دې. رضي الله عنه وأرضاه.(۸)

**دمذكوره تعليق مقصد:** امام بخارى رحمه الله په دې تعليق سره ((وقال ابن عبدالرازق عن معمر.....)) داخودل غواړى چه هم دغه روايت باب د امام زهرى رحمه الله نه معمر بن راشد رحمه الله هم نقل كړې دې. خو په هغې كښې په شك سره روايت كړې دې چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما سره حضرت ابولبابه ملاؤ شوې وو يا دهغه تره محترم حضرت زيد بن الخطاب رضي الله عنه.(۹)

**د پورته ذكرشوى تعليق موصولاً تخريج:** دا تعليق امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح(۱۰) كښې نقل كړې خو دې مگر ددې الفاظ نې نه دى ذكركړى خو امام احمد رحمه الله په خپل مسند(۱۱) كښې اوامام طبرى رحمه الله خپل معجم(۱۲) كښې هم په دې طريق د معمر رحمه الله سره ددې الفاظ هم ذكركړى دى.(۱۳)

---

(۱) حافظ مزى رحمه الله دهغوى دقاتل نوم رحال بن غفوه ليكلې دې. خود جمهورو رائې داده چه حضرت زيد رحال قتل كړې وو. اوګورئې تهذيب الكمال وتعليقاته: ۱۰/۶۵ حافظ د عسكرى په حواله سره ليكلى دى چه دحضرت زيد د قاتل نوم صبيح بن محرس دې. هشيم بن عدى فرمائى چه دهغه قاتل اسلام قبول كړې وو. خو حضرت عمر رضي الله عنه دخپل خلافت په زمانه كښې دا ونيلى وو چه ما سره به نه اوسيږې. تهذيب التهذيب ۳/۴۱۲ نوراوګورئې الاستيعاب بهامش الإصابة: ۵۴۲-۵۴۴/۱.

(۲) تهذيب الكمال: ۱۰/۶۵سير أعلام النبلاء: ۲۹۸/۱

(۳) تهذيب الكمال: ۱۰/۶۶سير أعلام النبلاء: ۲۹۸/۱.

(۴) حواله جات بالا.

(۵) حواله جات بالا.

(۶) سير أعلام االنبلاء: ۲۹۸/۱۰.

(۷) حواله بالا تهذيب الكمال: ۱۰/۶۶تهذيب ابن حجر: ۴۱۱/۳.

(۸) خلاصة الخزرجي: ۱۲۸معرفة الصحابة: ۳۲۶/۲اللؤلؤ والمرجان فيما اتفق عليه الشيخان: ۷۳/۳ رقم: ۱۴۴۲.

(۹) عمدة القاري: ۱۸۹/۱۵فتح الباري: ۳۴۹/۶أرشادالساري: ۳۰۷/۵.

(۱۰) صحيح مسلم كتاب السلام باب قتل الحيات رقم: ۵۸۲۵.

(۱۱) مسنداحمد: ۴۵۲/۳رقم: ۱۵۸۴۰،مصنف عبدالرزاق: ۴۳۳/۱۰رقم: ۱۹۶۱۶.

(۱۲) المعجم الكبير: ۳۰/۵باب رفاعة بن عبدالمنذر..... رقم: ۴۴۹۸.

(۱۳) فتح الباري: ۳۴۹/۶ عمدة القاري: ۱۸۹/۱۵.

**قوله: وتابعه يونس وابن عيينة والكلبي والزبيدي:** او دمعمر متابعت يونس بن يزيد [1] سفيان بن عيينه [2] اسحاق بن يحيى كلبى [3] او محمد بن الوليد زبيدى [4] رحمهم الله كړې دې.

**دمذكوره متابعت مقصد:** ددې متابعت مقصود او مطلوب دادې چه پورته ذكرشوى څلورواړه حضرات محدثين دمعمر بن راشد رحمه الله متابعت او موافقت كړې دې چه دا روايت شك سره دې. اودې حضراتو اربعه هم دا روايت شك سره روايت كړې دې چه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ملاقات چاسره شوې وو؟ حضرت ابولبابه رضي الله عنه سره يا حضرت زيد بن خطاب سره. [5]

**دمتابعاتو مذكوره موصولاً تخريج:** دامام يونس بن يزيد رحمه الله روايت امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې ذكر كړې دې [6] خو ددې الفاظ ئې نه دى نقل كړى. د الفاظو سره پوره روايت ابوعوانه رحمه الله ذكر كړې دې [7] د سفيان بن عيينه رحمه الله روايت امام احمد رحمه الله [8] او امام حميدى رحمه الله [9] په خپل خپل مسند كښې دهغه نه نقل كړې دې. بل د دوى روايت امام مسلم رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله [10] هم موصولاً نقل كړې دې. [11]

او د اسحاق بن يحيى كلبى رحمه الله روايت دهغه په نسخه كښې موجود دې. [12] او د محمد بن الوليد زبيدى رحمه الله روايت موصولاً امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې ذكر كړې دې. [13]

**وقال صالح وابن أبي حفصة وابن مجمع عن الزهري عن سالم......**

**دمذكوره تعليق مقصد:** ددې دويم ذكرشوى تعليق نه دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دې دريواړو حضراتو صالح بن كيسان [14] ابن ابى حفصه [15] او ابن مجمع رحمهم الله هم دا روايت د امام زهرى رحمه الله نه روايت كړې دې. خودې دريواړو حضراتو واؤ جمع استعمال كړې دې په خلاف د وړاندې

---

[1]) د يونس بن يزيدايلى رحمه الله حالات كشف البارى: ۴۶۳/۱ او ۲۸۲/۳ كښې راغلى دى.

[2]) د سفيان بن عيينه رحمه الله حالات كشف البارى ۲۳۸/۱ او ۱۰۲/۳ كښې راغلى دى.

[3]) داسحاق بن يحيى كلبى رحمه الله دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الأذان باب أهل العلم..... أحق بالإمامة.

[4]) د محمدبن الوليد الزبيدى حالات كشف البارى ۳۹۱/۳ كښې تيرشوى دى.

[5]) فتح البارى: ۳۴۹/۶ عمدة القارى: ۱۸۹/۱۵.

[6]) صحيح مسلم كتاب الحيوان باب قتل الحيات رقم: ۵۸۲۷.

[7]) فتح البارى: ۳۴۹/۶ عمدة القارى: ۱۸۹/۱۵.

[8]) مسندالإمام احمد: ۹/۲ رقم: ۴۵۵۷.

[9]) مسندالإمام الحميدى: ۲۷۹/۲ رقم: ۶۲۰.

[10]) رواه مسلم كتاب الحيوان باب قتل الحيات رقم: ۵۸۲۷ وأبوداؤد كتاب الأدب باب فى قتل الحيات رقم: ۵۲۵۲.

[11]) عمدةالقارى: ۱۹۰/۱۵ فتح البارى: ۳۴۹/۶.

[12]) فتح البارى: ۳۴۹/۶.

[13]) رواه مسلم كتاب الحيوان باب قتل الحيات رقم: ۵۸۲۶.

[14]) د صالح بن كيسان رحمه الله حالات كشف البارى ۱۲۱/۲ كتاب الإيمان كښې تيرشوى دى.

[15]) دمحمدبن ابى حفصه ميسره البصرى رحمه الله د حالاتو دپاره اوګورئى كتاب مواقيت الصلاة باب وقت العصر.

ځلورو وارو حضراتو. ددې دریوارو حضراتو د روایت مطابق به اوس مطلب داشی چه دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ملاقات حضرت ابولبابه رضی الله عنه اوحضرت زید بن خطاب رضی الله عنه دواړو سره شوې. [1]

**دمذکوره تعلیقاتو موصولاً تخریج:** ① دحضرت صالح بن کیسان رحمه الله موصولاً تخریج امام مسلم رحمه الله [2] کړې دې. خوددې الفاظ ئې نه دی ذکرکړی. البته ابوعوانه رحمه الله ددې الفاظ ذکرکړی دی. ② دمحمد بن ابی حفصه رحمه الله روایت موصولاً دهغه په نسخه کښې دې. [3] ③ د ابراهیم بن اسماعیل بن مجمع رحمه الله د روایت موصولاً تخریج امام بغوی رحمه الله [4] حافظ طبرانی رحمه الله [5] او ابن السکن رحمه الله کتاب الصحابه کښې کړې دې. [6]

حافظ ابن السکن رحمه الله د ابن مجمع روایت نقل کولونه پس فرمائی چه د ابن مجمع رحمه الله اود جعفر بن برقان رحمه الله نه علاوه زما په علم کښې یوکس داسې نه دې چاچه په خپل روایت کښې دواړه صحابه جمع کړې وی. یعنی د واو جمع سره صرف هم دې دواړو تلامذة زهری رحمه الله روایت کړې دې اود دواړو د امام زهری رحمه الله نه په سماع اوروایت کښې کلام دې. [7]

چه د ابن السکن رحمه الله خبره هم مخې ته کیخودې شی نودا به ځلور حضرات شی چه جمع سره روایت کوی درې هغه حضرات کومو چه بخاری شریف کښې ذکر دی اوځلورم جعفر بن برقان. عجیبه خبره داده چه د ابن السکن رحمه الله نظر خپلې مخې ته د بخاری شریف موجوده نسخه باندې پرینوتو په کوم کښې چه صالح بن کیسان او ابن ابی حفصه هم ذکر دې. **فسبحان من لایذهل ولا یغفل، لاتأخذه سنة ولا نوم.** خو د ابن السکن رحمه الله د طرف نه دا وئیلی شی چه ابن ابی حفصه او صالح موصول روایات دهغوی په علم کښې به نه وی راغلې. بهرحال د روایت بالجمع والاځلور حضرات دی اوکومو حضراتو چه شک سره روایت کړې دې هغه پنځه دی اود دغه ځلورو وارونه صالح بن کیسان رحمه الله نه علاوه هیڅ یوکس داسې نه دې چه په ضبط اواتقان کښې د دغه پنځو وارو حضراتو محدثینو برابری اوکړې شی. [8]

**دبحث خلاصه:** ددې ټولو خلاصه دا شوه چه امام زهری رحمه الله نه دا روایت نقل کونکی حضرات درې قسم دی: ① چه بغیر دشك نه صرف حضرت ابولبابه رضی الله عنه ذکرکوی لکه هشام بن یوسف عن معمر حدیث باب. ② څوك چه شك سره د حضرت ابولبابه رضی الله عنه او حضرت زید بن الخطاب رضی الله عنه دواړو ذکر کوی لکه دغه پنځه واړه حضرات د چا ذکر چه امام بخاری رحمه الله **وقال عبدالرزاق عن معمر.... وتابعه یونس....** کښې کړې دې. ③ کوم چه بغیرد شك نه ددواړو حضراتو صحابه کرامو رضی الله عنهما ذکرکوی لکه صالح، جعفر، ابن ابی حفصه او ابن مجمع رحمهم الله تعالی.

---

[1] عمدة القاری: ۱۵/ ۱۹۰فتح الباری: ۳۴۹/۶.

[2] صحیح مسلم کتاب الحیوان باب قتل الحیات رقم: ۵۸۲۵.

[3] عمدة القاری: ۱۵/ ۱۹۰فتح الباری: ۳۴۹/۶.

[4] رواه البغوی فی معجم الصحابة: ۴۴۹/۲رقم: ۸۲۴زیدبن الخطاب بن نفیل.

[5] رواه الطبرانی فی الکبیر: ۳۱/۵باب الراء رفاعة.... رقم: ۴۴۹۹ و ۸۱/۵باب الزای، زیدبن الخطاب رقم: ۴۶۴۵.

[6] عمدة القاری: ۱۵/ ۱۹۰فتح الباری: ۳۴۹/۶.

[7] حواله جات بالاو تغلیق التعلیق: ۵۱۷/۳.

[8] فتح الباری: ۳۴۹/۶هدی الساری: ۴۹تغلیق التعلیق: ۵۱۷/۳.

**راجح څه دی؟**: اوس سوال دا پیدا کیږی چه په دې درېواړه قسمه روایاتو کښې راجح کوم یو دې؟ ددې جواب دې رومبې قسم یعنی کوم چه بغیرد شك نه دحضرت ابولبابه رضی الله عنه په ذکر مشتمل دې. د امام بخاری رحمه الله خپل طریق هم په دې باندې دلالت کوی چه هغوی په دې باب کښې دهشام بن یوسف عن معمر روایت اول بیان کړې دې. په کوم کښې چه صرف د ابولبابه رضی الله عنه ذکر دې.

بل حدیث باب امام بخاری رحمه الله په وړاندې باب کښې هم د نورو طریقو ذکر کړې دې. [1] په هغې کښې هم صرف دحضرت ابولبابه رضی الله عنه ذکر دې. [2] امام صالح جزره رحمه الله هم فرمائی چه په دې حدیث کښې دحضرت زید بن الخطاب رضی الله عنه ذکر سهو دې صحیح حضرت ابولبابه رضی الله عنه دې. والله اعلم بالصواب. [3]

**ابن مجمع**: دا ابواسحاق ابراهیم بن اسماعیل بن مجمع انصاری مدنی رحمه الله دې. [4]

دې د امام زهری، عمرو بن دینار، ابوالزبیر محمدبن مسلم، هشام بن عروه او یحیی بن سعید انصاری رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کوی. اوددوی نه روایت کونکوکښې حاتم بن اسماعیل، عبدالعزیز بن محمد الدراوردی، ابن ابی حازم، ابونعیم رحمهم الله وغیره شامل دی. [5]

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی «ضعیف لیس بشیء» [6] ابن المواق رحمه الله فرمائی «لایحتج به» [7] ابوزرعه رحمه الله د ابونعیم رحمه الله په حواله سره فرمائی چه هغوی د دوی باره کښې وئیلی دی «لایسوی حدیثه فلسین» [8] دده حدیثو نه ددوو پیسو برابر هم نه دی. امام ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی: «کثیرالوهم، لیس بالقوي، یکتب حدیثه، ولا یحتج به» [9] امام بخاری رحمه الله فرمائی «یروي عنه، وهوکثیرالوهم عن الزهري» [10] امام نسائی رحمه الله فرمائی ضعیف. [11] حاکم ابواحمد رحمه الله فرمائی: «لیس بالمتین عندهم» [12] ابن ابی خیثمه رحمه الله د جعفر بن عون رحمه الله په طریق سره لیکلی دی چه ابن مجمع په غوږ کوڼ وو. د امام زهری رحمه الله سره به دحدیث د سماع دپاره کیناستلو او په ډیره ګرانه به نی څه اوریدل. [13]

---

[1] صحیح البخاری باب خیر مال المسلم غنم.... رقم: ۳۳۱۱ و ۳۳۱۳.

[2] فتح الباری: ۳۴۹/۶ معجم کبیر طبرانی: ۳۱/۵ رقم: ۴۵۰۸-۴۵۰۰رفاعة بن عبدالمنذر رقم الترجمه: ۴۳۵.

[3] تعلیقات تهذیب الکمال: ۲۳۳/۳۴رقم الترجمة: ۷۵۹۱باب اللام من الکنی.

[4] تهذیب الکمال: ۴۵/۲رقم الترجمة:۱۴۸وتهذیب ابن حجر:۱۰۵/۱.

[5] دَ شیوخ اوتلامذه دَ تفصیل دَ پاره اوګورئی حواله جات بالا.

[6] تهذیب الکمال: ۴۶/۲تهذیب التهذیب : ۱۰۵/۱.

[7] إکمال مغلطای: ۱۸۱/۱ رقم: ۱۸۶.

[8] تهذیب الکمال: ۴۶/۲تهذیب التهذیب : ۱۰۵/۱.

[9] حواله جات بالا، والجرح والتعدیل: ۳۶/۱/۱باب حرف الألف رقم:۱۹۷.

[10] تاریخ البخاری الکبیر:۳۷۱/۱/۱باب إبراهیم رقم: ۸۷۲وإکمال مغلطای: ۱۸۰/۱.

[11] کتاب الضعفاء للنسائی: ۲۸۳تهذیب الکمال: ۴۷/۲تهذیب ابن حجر: ۱۰۵/۱.

[12] إکمال مغلطای: ۱۸۱/۱تهذیب ابن حجر: ۱۰۵/۱تعلیقات تهذیب الکمال: ۴۷/۲.

[13] حواله جات بالا.

امام ابن حبان رحمه الله فرمائى «كان يقلب الأسانيد، ويرفع المراسيل»([1]) ابواحمد عدى رحمه الله فرمائى «ومع ضعفه يكتب حديثه.....»([2]) امام بخارى رحمه الله دهغوى سره استشهاد كړې دې او تعليقاً ئې روايت ددې باب لاندې نقل كړې دې چه دهغوى په نيز د ابن مجمع معتبر اوقابل استشهاد كيدو دليل دې.([3]) او ابن ماجه رحمه الله هم ددوى نه روايت اخستې دې.([4])

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** دحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې چه ذوالطفيتين او ابتر دغه شان وغيره نور مارانو ټولو باندې د دابه اطلاق كيږى.([5])

## ١٥-باب: خَيْرُ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ

**اختلاف نسخ:** دلته دمستقل باب الفاظ د ابوذر رحمه الله وغيره په نسخه كښې دى. خود نسفى رحمه الله او اسماعيلى رحمه الله په نسخوكښې دباب لفظ نشته دې. عام شارحين دا باب د ناسخينو غلطى ګڼرى اود باب د الفاظو حذف ته اولى وائى. ددې وجه داده چه دلته صرف د شروع په دوو حديثوكښې دغنم ذكر دې باقى احاديثوكښې د غنم هيڅ وجود نشته دې. بل حضرت ګنګوهى رحمه الله او حضرت شيخ الحديث رحمه الله دې ته باب فى باب وائى او هم دغه راجح دى. والله اعلم.([6])

په دې باب كښې ټول څوارلس احاديث ذكر دى. په كوم كښې چه اولنى حديث دحضرت ابوسعيد خدرى رضى الله عنه دې.

### الحديث الاول

٣١٢٣-حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الرَّجُلِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ، يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ» [ر١٩]([7])

**ترجمه:** دحضرت ابوسعيد خدرى رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى هغه زمانه نيزدې ده چه كله به دمسلمان بهتر مال چيلنى وى. په كومې پسې چه به د غرونو څوكو اودباران مقاماتوكښې هغه خپل دين د فتنو نه بچ كولوسره منډې تړې وهى.

داحديث كتاب الإيمان كښې تيرشوې دې اوددې رح هم هلته په تفصيل سره شوې ده.([8]) په دې وجه

---

[1] كتاب المجروحين: ١٠٣/١.

[2] الكامل لابن عدى: ٢٣٢/١ وقال العقيلى فى الضعفاء الكبير: ٤٣/١ يكتب حديثه: وفى رواية الترمذى عنه (ترتيب العلل: ٣٩٣/١ رقم: ١١٠ صدوق إلا أنه يغلط. وكذا انظر تعليقات إكمال مغلطاى: ١٨٠/١.)

[3] تهذيب الكمال وتعليقاته: ٤٧/٢ والجمع لابن القيسرانى: ٢١/١.

[4] تهذيب الكمال: ٤٧/٢. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

[5] عمدة القارى: ١٨٨/١٥.

[6] الكنزالمتوارى: ٢١٩/١٣ ولامع الدرارى مع تعليقاته: ٣٨٧/٧.

[7] قوله: عن أبى سعيد خدرى رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه فى كتاب الإيمان: ٨٠/٢

[8] كشف البارى: ٨٨/٢-٨٣

دلته صرف په ترجمه باندې اکتفا کولې شي.

## تراجم رجال

**اسماعيل بن ابي اويس:** دا اسماعيل بن ابی اويس مدنی اصبحی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی حالات **کتاب الايمان باب من کره أن يعود فی الکفر....** کښې تيرشوی دی.[1]

**مالک:** دا ابوعبدالله مالک بن انس مدنی اصبحی رحمه الله دې. ددوی تفصيلی تذکره بدء الوحی اوکتاب **الايمان باب من الدين الفرار من الفتن** کښې ذکرشوې ده.[2]

**عبدالرحمن بن عبدالله:** داعبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن ابی صعصعه دې.

**ابيه:** دا عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن ابی صعصعه دې.

**ابوسعيد خدري:** دا مشهور صحابی رسول سعد بن مالک بن سنان ابوسعيد خدری انصاری رضی الله عنه دې. ددې درېواړوحضراتو تذکره **کتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن** لاندې بيان کړې شوې ده.[3]

**تنبيه:** حافظ جمال الدين مزی رحمه الله تحفة الاشراف کښې د ابومسعود جيانی رحمه الله په تقليد کښې دا ليکلی دی چه دحضرت ابوسعيدخدری رضی الله عنه داحديث په دې طريق سره کتاب الجزية کښې دې. چه ددې دواړو حضراتو تسامح دې لکه څنګه چه تاسو ګورئی چه دا حديث بدء الخلق په دې باب کښې راغلې دې نه چه په کتاب الجزيه کښې.[4]

د باب دويم حديث دحضرت ابوهريره رضی الله عنه دې.

## الحديث الثاني

۳۱۲۵- حَدَّثَنَا عَبْدُاللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «رَأْسُ الكُفْرِ نَحْوَ المَشْرِقِ، وَالفَخْرُ وَالخُيَلاَءُ [ص: ۱۲۸] فِي أَهْلِ الخَيْلِ وَالإِبِلِ، وَالفَدَّادِينَ أَهْلِ الوَبَرِ، وَالسَّكِينَةُ فِي أَهْلِ الغَنَمِ» [۳۳۰۸، ۳۱۲۷-۳۱۲۹][5]

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی دکفر سرغنه د مشرق طرف ته دې. بې خايه فخر اوکبر داسونو والو د اوښانو والو او د ښناورو لکوسره چغې وهونکی کلی والو خصوصيت دې او سکينت (وقار) په چيلو والوکښې دې.

---

[1] کشف الباری: ۱۱۳/۲.

[2] کشف الباری: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

[3] کشف الباری: ۸۲/۲ - ۸۱.

[4] تحفة الاشراف مع النکت الظراف: ۳۷۵/۳- ۳۷۴رقم: ۴۱۰۳ فتح الباری: ۳۵۱/۶.

[5] قوله: عن أبی هريرة رضی الله عنه: الحديث، أخرجه البخاری أيضًا فی مواضع من کتابه: کتاب المناقب باب قول الله تعالی: ﴿يٰۤأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّأُنْثٰى﴾ رقم:۳۴۹۹وکتاب المغازی باب قدوم الأشعر بين وأهل اليمن رقم: ۴۳۸۸- ۴۳۹۰ومسلم فی صحيحه کتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان رقم: ۸۵والترمذی فی سننه: کتاب الفتن باب ماجاء فی الدجال: لا يدخل المدينة رقم: ۲۲۴۴.

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف**: دا عبدالله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى والحديث الثانى او تفصيلى حالات كتاب العلم باب ليبلغ الشاهد الغائب لاندې تيرشوى دى.[1]

**مالک**: دا ابوعبدالله مالک بن انس مدنى اصبحى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذكره بدء الوحى والحديث الثانى اوكتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن كښې ذكرشوې ده.[2]

**ابوالزناد**: دا ابوالزناد عبدالله بن ذكوان رحمه الله دې.

**الاعرج**: دا عبدالرحمن بن هرمز الاعرج قرشى رحمه الله دې. ددې دواړو محدثينو حضراتو تذكره كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان لاندې تيره شوې ده.[3]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[4]

**تنبيه**: ددې حديث شرح كتاب احاديث الانبياء اوكتاب المغازى كښې راغلې ده. په دې وجه دلته د دوباره كولو ضرورت نشته دې.[5]

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت**: ددې حديث او سابقه حديث ترجمة الباب سره مناسبت لفظ الغنم كښې دې.[6]

دباب دريم حديث د حضرت ابو مسعود رضي الله عنه دې.

### الحديث الثالث

٣١٢٦- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي قَيْسٌ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو أَبِي مَسْعُودٍ، قَالَ: أَشَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ نَحْوَ اليَمَنِ فَقَالَ «الإِيمَانُ يَمَانٍ هَا هُنَا، أَلاَ إِنَّ القَسْوَةَ وَغِلَظَ القُلُوبِ فِي الفَدَّادِينَ، عِنْدَ أُصُولِ أَذْنَابِ الإِبِلِ، حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ فِي رَبِيعَةَ، وَمُضَرَ» [٣٣٠٧،٣١٢٦،٣٩٩٧][7]

---

[1]) كشف البارى: ٢٨٩/١و ١١٣/٤.

[2]) كشف البارى: ٢٩٠/١، ٨٠/٢

[3]) كشف البارى: ١١/٢-١٠.

[4]) كشف البارى: ٦٥٩/١

[5]) صحيح البخارى كتاب أحاديث الأنبياء باب ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى﴾ وكشف البارى كتاب المغازى: ٦٠٩-٦١٠

[6]) عمدة القارى: ١٩١/١٥.

[7]) قوله: عن عقبة بن عمرو أبى مسعود: الحديث، أخرجه البخارى فى المناقب باب قول الله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى﴾ رقم: ٣٤٩٨ وكتاب المغازى باب قدوم الأشعر بين وأهل اليمن رقم: ٤٣٨٧ وكتاب الطلاق باب اللعان رقم: ٥٣٠٣ ومسلم كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان رقم: ٥١.

## تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد اسدى بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې راغلې. (1)

**يحيي:** دا يحيى بن سعيد قطان تيممى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې ذكر كړې شوې ده. (2)

**اسماعيل:** دا اسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى رحمه الله دي. د دوى حالات كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، لاندې راغلى دى. (3)

**قيس:** دا قيس بن ابى حازم احمسى بجلى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم الدين النصيحة.....، كښې راغلې ده. (4)

**عقبه بن عمروابو مسعود:** دا مشهور بدرى صحابى ابو مسعود عقبه بن عمرو انصارى رضي الله عنه دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب ما جاء أن الأعمال بالنية...په ذيل كښې بيان كړې شوى دى. (5)

**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت تيرشوى باب (وبث فيها من كل دابة) سره دې. ښكاره خبره ده چه ابل يعنى اوښ په دابه كښې داخل دې او مخلوق دې.

ددې حديث شرح كتاب المغازي كښې راغلې ده. (6)

د باب څلورم حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دى.

### الحديث الرابع

٣١٢٧- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَاسْأَلُوا اللَّهَ مِنْ فَضْلِهِ، فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا، وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَانًا» (7)

---

(1) كشف البارى: ٢/٢.

(2) كشف البارى: ٢/٢.

(3) كشف البارى: ٢٧٩/٢.

(4) كشف البارى: ٧٦١/٢.

(5) كشف البارى: ٧٤٨/٢.

(6) كشف البارى كتاب المغازى: ٦٠٩-٦١١باب قدوم الاشعر بين وأهل اليمن.

(7) قوله عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه مسلم أيضا، كتاب الذكر...، باب استحباب الدعاء عند صياح الديكة رقم: ٢٧٢٩وأبوداؤد كتاب الأدب باب ماجاء فى الديك والبهائم رقم: ٥١٠٢والترمذى كتاب الدعوات باب مايقول إذا سمع نهيق الحمار رقم: ٣٤٥٥والنسائى فى الكبرى كتاب عمل اليوم والليلة، باب مايقول إذا سمع صياح الديكة رقم: ١٠٧٨٠.

## تراجم رجال

**قتيبه:** دا شيخ الاسلام قتيبه بن سعيد ثقفي بغلاني رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب الايمان باب إفشاء السلام** كښې تيرشوی دی.[1]

**الليث:** دامشهور امام ليث بن سعد فهمي دې. ددوی مختصر ذکر بدء الوحي دريم حديث کښې راغلې دې.[2]

**جعفر بن ربيعه:** دا جعفر بن ربيعه بن شرحبيل بن حسنه قرشي مصري رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب التيمم باب التيمم في الحضر إذا لم يجد الماء** کښې تيرشوی دی.[3]

**الاعرج:** دا عبدالرحمن بن هرمز الاعرج قرشي رحمه الله دې. ددې دواړو محدثينو حضراتو تذکره **كتاب الإيمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان** لاندې تيره شوې ده.[4]

**ابوهريره:** دامشهور صحابي ابوهريره دې. ددوی حالات **كتاب الإيمان باب أمور الإيمان** کښې تيرشوی دی.[5]

**قوله:: أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: إذا سمعتم صياح الديكة:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې دې کله چه تاسو دچرګ بانګ (اواز) واورئ......

**دَ لفظ ديكه تحقيق:** ديكه جمع د ديك ده چرګ ته وائي. ددې جمع قلت اديك او جمع کثرت ديوك اوديكة ده. ابن سيده رحمه الله ليکلي دي چه ددې مؤنث ته دجاج وائي. خو علامه داؤدي رحمه الله فرمائي چه بعض وخت د دجاجه اطلاق په ديك باندې هم کيږي.[6]

**د چرګ يوخصوصيت:** د چرګ يو ډير اهم خاصيت دادې چه دې د شپې وختونه ډير ښه پيژني. هغه د شپې په مختلف حصوکښې بانګ کوی په کوم کښې چه ډير کم فرق وی. دې نه علاوه د سحر کيدو په وخت اوددې نه پس يو شان بانګونه کوی. په دې کښې ډيره کمه غلطي کوی که شپې ډيرې وړې وی اوکه لوئي.[7] حافظ رحمه الله فرمائي څکه بعض شافعيه (قاضي حسين، متولي او رافعي)[8] فتوی ورکړې ده چه د سحر د وخت په معامله کښې په تجربه کار چرګ باندې اعتماد کولې شی. د دې تائيد دحضرت خالد بن زيد جهني رضي الله عنه د مرفوع حديث نه هم کيږی په کوم کښې چه راغلی دی چه چرګ ته بدې درې مه وايئ څکه چه هغه د مانځه د پاره رابلل کوی. «لا تسبوا الديك، فإنه يدعو إلى الصلاة» اللفظ

---

**فائده:** امام بخاری رحمه الله داحديث صرف هم دلته ذکرکړې دې په صحيح بخاری کښې بل چرته نه دې ذکرکړې. تحفة الأشراف: ۱۵۵/۱۰ رقم: ۱۳۶۲.

1) كشف الباري: ۱۸۹/۲.

2) كشف الباري: ۳۲۶/۱.

3) كشف الباري كتاب التيمم: ۱۶۰ باب التيمم في الحضر إذا لم يجد.....

4) كشف الباري: ۱۱/۲.

5) كشف الباري: ۶۵۹/۱

6) عمدة القاري: ۱۹۲/۱۵ إرشادالساري: ۳۰۹/۵ والمحكم: ۸۰/۷ التوضيح: ۲۴۳/۱۹.

7) عمدة القاري: ۱۹۲/۱۵ إرشادالساري: ۳۰۹/۵ والمحكم: ۸۰/۷ فتح الباري: ۳۵۳/۶.

8) فتح الباري ۳۵۳/۶ وإرشادالساري: ۳۰۹/۵.

لابن حبان ا))[1]

**قوله:: فاسألوا الله من فضله، فإنما رأت ملكا:** د الله تعالى د هغه د فضل سوال كوه ځكه چه هغه فرښته ليدلې ده. مطلب دادې چه د چرګ د بانګ په وخت دعا كول پكاردى ځكه چه هغه فرښتې ته ګورى نوبانګ كوى. كه چرې دغه وخت څوك دعاكوى نو فرښتې به دهغه په دعاباندې آمين وائى. د هغه دپاره به استغفار كوى اود هغه د عاجزئى او اخلاص ګواهى به وركوى. دغه شان به د فرښتې اوبنده دعاګانې خپل مينځ كښې موافق كيدو سره د قبليدو سبب جوړيږى. قاضى عياض رحمه الله فرمائى: ((إنما أمرنا بالدعاء حينئذٍ، لتؤمن الملائكة، وتستغفر، وتشهد للداعى بالتضرع والإخلاص....))[2]

بل دحديث شريف نه دا هم مستفاد شوچه چرته صلحاء وغيره موجود وى هلته دعا كول مستحب دى دهغوى د وجود په بركت سره به ان شاء الله قبليږى. [3]

**چرګ ته بدې ردې نه دى وئيل پكار:** بعض نادان خلق د چرګ بانګ اوريدو سره خفه كيږى چه خوب خرابيږى او هغه ته بدې ردې وائى. ددې نه حضورپاك منع فرمائيلې ده. مسند بزاركښې يو روايت دې چه دحضورپاك خواكې يو چرګ بانګ اووئيل نوهلته موجود يوسړى اووئيل اللهم العنه اې الله په ده باندې لعنت راؤوروه. دې اوريدو سره حضورپاك اوفرمائيل ((مه، كلا، إنه يدعو إلى الصلاة)) چه نه هيڅ كله نه، هغه د مانځه دپاره رابللل كوى. [4]

حضرت حليمى رحمه الله فرمائى دې نه معلومه شوه چه هر هغه څيز يا سړې د چانه چه د خير په كارونوكښې استفاده كولې شى هغه ته كنځلې نه دى كول پكار اونه دهغه توهين اوتذليل كول پكاردى. بلكه د هغه اكرام او هغه سره نيك سلوك كول پكاردى. نور فرمائى چه د رسول الله ﷺ مبارك ارشاد ((فإنه يدعو إلى الصلاة)) مطلب دا نه دې چه هغه په حقيقت كښې "صلوا" يا "حانت الصلاة" وائى. بلكه ددې مطلب دادې چه عادت هم دغه دې چه چرګ د سحر په راختو سره يا د نمبر په زوال سره دغه وخت كښې بانګونه وائى. دا دهغه طبعى عادت دې په كوم چه الله تعالى هغه پيداكړې دې. د هغه د آواز په اوريدو سره د خلقو خيال د مانځه طرف ته څى. ددې دا مطلب هيڅ كله نه دې چه كه د هغه د بانګ نه علاوه بل څه قرينه يا دلالت نه وى نو مونځ به اداكوې. البته كه چرته يو داسې چرګ دې دكوم باره كښې چه ډير ځل تجربه ده چه هغه غلطى نه كوى نوصحيح ده اودا به يوقسم اشاره وى. ((وليس معنى قوله (ﷺ): فإنه يدعو إلى الصلاة، أن يقول بصوته حقيقة: صلوا، أوحانت الصلاة، بل معناه: أن العادة جرت بأنه يصرخ عند طلوع الفجر وعند الزوال، فطرة فطره الله عليها، فيذكر الناس بصراخه الصلاة. ولا يجوز لهم أن يصلوا بصراخه من غير دلالة سواها، إلا من جرب منه ما لا يخلف، فيصير ذلك له إشارة والله الموفق))[5]

---

[1] الحديث أخرجه أبوداؤد كتاب الأدب باب فى الديک والبهائم رقم: ۵۱۰۱ والإمام أحمد: ۱۹۳/۵-۱۹۲ مسندزيد بن خالد رضى الله عنه، رقم: ۲۲۰۱۹ وابن حبان فى صحيحه: ۳۸/۱۳-۳۷ كتاب الحظر والإباحة، باب مايكره من الكلام وما لا يكره، ذكر الزجر عن سب المرء الديكة...... رقم: ۵۷۳۱ والنسائى كتاب عمل اليوم والليلة رقم: ۱۰۷۸۱.

[2] فتح البارى: ۳۵۳/۶ عمدة القارى: ۱۹۲/۱۵ والمفهم: ۵۸/۷-۵۷

[3] فتح البارى: ۳۵۳/۶ عمدة القارى: ۱۹۲/۱۵ إرشادالسارى: ۳۰۹/۵ التوضيح: ۲۴۴/۱۹.

[4] حواله جات بالا ومسندالبزار: ۱۶۸/۵ رقم: ۱۷۶۳.

[5] فتح البارى: ۳۵۳/۶ شرح القسطلانى: ۳۰۹/۵.

**قوله: وإذا سمعتم نهيق الحمار فتعوذوا بالله من الشيطان، فإنه رأى شيطانا** اوكله چه تاسو خلق د خر د هينړارى اواز واورئى نود شيطان مردود نه دالله تعالى پناه غوارئى ځكه چه هغه شيطان ليدلې دې. په حديث باب كښې د حمار ذكر دې خود حضرت جابر رضي الله عنه په حديث كښې د نباح الكلب اضافه هم نقل ده چه دسپى د غپارى په وخت هم تعوذ عمل مستحب دې.[1]

اوس مطلب دا شو چه كه خر وى اوكه سپې كله چه په هينړارى شى يا په غپارى شى نود الله تعالى په پناه كښې راتلل پكاردى. دې دپاره چه د شيطان د شر نه محفوظ پاتې شى اود هغه د وسوسونه په حفاظت كښې شى. قاضى عياض رحمه الله فرمائى «وفائدة الأمر بالتعوذ لما يخشى من شر الشيطان وشر وسوسته، فيلجأ إلى الله فى دفع ذلك».[2]

**ايا خره شيطان نه هم په كتو سره هينړيږى؟**: حضرت مولانا محمد يحيى كاندهلوى رحمه الله په خپل تقرير كښې ليكلى دى چه د حديث شريف الفاظ «فإنها رأت ملكا، فإنها رأت شيطانا»[3] معنى دا نه ده چه چرګ كله هم بانګ وائى نو هغه فرښتې ته په كتلو سره آواز كوى اوخر چه كله هم هينړيږى نوهغه شيطان ليدلې دې يعنى د هغه بانګ وركول اود خر هينړيدل فرښتې يا شيطان ته كتل مستلزم نه دى بلكه د چرګ د بانګ اوخر د هينړيدو نور اسباب اوعوارض هم كيدې شى بلكه اكثر هم نور اسباب اوعوارض وى.

په دې وجه دحديث شريف صحيح محمل دادې چه ددې دواړو آواز كله كله په دې وجه هم وى چه چرګ فرښته اوخر شيطان اوليدلو. اوس چونكه زمونږ د انسانانودپاره د دې تفريق ممكن نه دې چه كوم يو آواز د بل څه سبب د وجې نه دې اوكوم يو دفرښتې يا شيطان په ليدو سره دې؟ نومناسب اومستحب هم دغه دى چه دا خناور كله هم آواز كوى هغه وخت دعا كوئى يا تعوذ كوئى دې دپاره چه دعا اوتعوذ دواړو نه هر يو په خپل موقع اومحل باندې واقع وى سره ددې چه په هر يو كښې د فرښتې يا شيطان ليدل نه وى شوې.

دې نه علاوه د دعا زياتوالى شرعًا مطلوب هم دې سره ددې چه دعا په محل د اجابت كښې واقع نه وى. په دعا كښې بخل نه دى كول پكار. دغه شان تعوذ هم په شيطان باندې موقوف نه دې. ښكاره خبره ده چه بنده له هر وخت او هر لمحه كښې د دعا اوتعوذ ضرورت وى. والله اعلم بالصواب.[4]

**يوه اهم فائده**: ددې حديث يو اهم خصوصيت دادې چه ائمه خمسه بخارى، مسلم، نسائى، ابوداؤد اوترمذى رحمهم الله ټولو دا حديث هم د يوشيخ نه نقل كړې دې يعنى په دې حديث كښې د ټولو شيخ قتيبه رحمه الله دې.[5]

---

[1] رواه أبوداؤد كتاب الأدب باب فى الديك...رقم: ۵۱۰۳ والإمام أحمد: ۳۰۶/۳ رقم: ۱۴۳۳۴ والحاكم: ۲۸۴/۴-۲۸۳ رقم: ۷۷۶۲

[2] فتح البارى: ۳۵۳/۶ عمدة القارى: ۱۹۳/۱۵ ومثله فى التوضيح: ۲۴۴/۱۹.

[3] دادَ ابوداؤد شريف دَ روايت الفاظ دى، اوګورئى ابوداؤد مع البذل: ۲۹۶/۱۳ رقم: ۵۱۰۲.

[4] حواله بالا.

[5] فتح البارى: ۳۵۳/۶ عمدة القارى: ۱۹۲/۱۵.

**د خرساتلو حكم:** مشهور مالكى عالم علامه ابى دحديث باب نه استدلال كولوسره فرمانيلى دى چه په دې حديث سره د خر پاللو اوساتلو مرجوحيت ثابتيږى ځكه چه د ده وجود په كوركښې د شيطان داخلې ته مستلزم دې چه په كوركښې خر وى نو شيطان به هم داخليږى. په دې وجه خر نه دې ساتل پكار. مګر دحضرت داخبره صحيح نه ده ځكه چه په حديث شريف كښې دا راغلى دى چه هغه شيطان ليدلې دې اورؤيت دخول ته مستلزم نه دې. بلكه داسې ويناكول زيات مناسب دى چه په دې حديث سره دخرساتلو راجحيت ثابتيږى. ځكه چه كيږى داسې چه شيطان په كوركښې داخليږى خو ښكارى نه. اوس كه خر په كوركښې موجود وى نو هينړيدو سره به دهغه د موجود كيدو اود داخلې د كوشش اطلاع به كوى. اودغه شان به په تعوذ سره د شيطان ويستل آسان شى. دې نه علاوه پخپله حضورپاك سره يعفور نومې يو خر وو. كه چرې دخر ساتل صحيح نه وې نوحضورپاك به ولې ساتلو؟والله اعلم. (۱)

**ترجمةالباب سره دحديث مطابقت:** دحديث شريف ماقبل باب سره مطابقت واضح دې چه ديك، ملك، حمار او شيطان دا ټول دابه اومخلوق كښې داخل دى.

پنځم حديث د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما دى.

## الحديث الخامس

۳۱۲۸- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، أَخْبَرَنَا رَوْحٌ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ، أَوْ أَمْسَيْتُمْ، فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ، فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ، فَإِذَا ذَهَبَتْ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ فَخَلُّوهُمْ، وَأَغْلِقُوا الأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لاَ يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا» قَالَ: وَأَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، نَحْوَ مَا أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، وَلَمْ يَذْكُرْ: وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ -[ر۳۱۰۶] (۲)

## تراجم رجال

**اسحاق:** دلته د اسحاق نه مراد د شراح بخارى اختلاف دې چه اسحاق غيرمنسوب راغلې دې. چنانچه ابن راهويه هم مراد كيدې شى. لكه چه د ابونعيم په نيز ددې تصريح ده اوابن منصور هم ځكه چه روح بن عبادة رحمه الله د دواړو شيخ دې. خو حافظ مزى رحمه الله په تحفة الاشراف كښې د ابن منصور كيدل اختياركړى دى. (۳)

بهر حال كه چرې ابن راهويه رحمه الله مراد دې نو ددوى حالات كتاب العلم باب فضل من علم وعلم لاندې راغلى دى. (۴)

---

۱) شرح الأبى المالكى على صحيح مسلم: ۱٤٤/۷حديث قوله ﷺ: إذا سمعتم صياح الديكة..... من كتاب الذكر.

۲) قوله: جابر بن عبدالله...: الحديث، مرتخريجه آنفا فى باب ذكر إبليس.....

۳) فتح البارى: ۳۵۳/۶عمدة القارى: ۱۹۳/۱۵شرح القسطلانى: ۳۰۹/۵شرح الكرمانى: ۲۱٤/۱۳تحفة الاشراف: ۲۳۲/۲رقم: ۲٤٤۶ أحاديث جابر بن عبدالله رضى الله عنهما.

۴) كشف لبارى: ٤۲۸/۳.

اوكه چرې ابن منصور مراد دې نو دهغوى حالات كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء لاندې تيرشوى دى .(۱)

**روح:** دا ابومحمدبن عباده قيسى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب اتباع الجنائزمن الإيمان لاندې تيرشوى دى.(۲)

**ابن جريج:** دا ابوالوليد عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج اموى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها... كښې راغلې.(۳)

**عطاء:** دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب عظة النساء.. كښې تيرشوى دى.(۴)

**جابر بن عبدالله:** دا مشهور صحابى جابر بن عبدالله رضى الله عنهما دې.(۵)

**باب سره د حديث مطابقت:** باب سره دحديث شريف مطابقت په دې معنى دې چه دلته د شيطان ذكر دې اوهغه هم په دابه كښې داخل دې.

**قوله: :وأخبرني عمروبن دينار سمع جابر.....**

**دمذكوره عبارت مقصد:** دا د ابن جريج رحمه الله كلام دې او أخبرني عطاء باندې عطف دې. دلته هغه دحضرت عطاء رحمه الله او عمروبن دينار رحمه الله په روايتونوكښې فرق ښائى چه ما داحديث د اوارو حضراتو نه اوريدلې دې. خود عمرو بن دينار رحمه الله روايت كړې شوى حديث كښې «وأذكروااسم الله عليه» الفاظ نشته دې.(۶)

د باب شپږم حديث د حضرت ابوهريره رضى الله عنه دې.

## الحديث السادس

۳۱۲۹- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «فُقِدَتْ أُمَّةٌ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ لاَ يُدْرَى مَا فَعَلَتْ، وَإِنِّي لاَ أُرَاهَا إِلَّا الفَارَ، إِذَا وُضِعَ لَهَا أَلْبَانُ الإِبِلِ لَمْ تَشْرَبْ، وَإِذَا وُضِعَ لَهَا أَلْبَانُ الشَّاءِ شَرِبَتْ» فَحَدَّثْتُ كَعْبًا فَقَالَ: أَنْتَ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُهُ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ لِي مِرَارًا، فَقُلْتُ: أَفَأَقْرَأُ التَّوْرَاةَ؟ (۷)

---

۱) كشف البارى: ۴۲۰/۲.

۲) كشف البارى: ۵۱۸/۲.

۳) كشف البارى كتاب الحيض: ۲۰۴.

۴) كشف البارى: ۳۷/۴.

۵) ددوى د حالاتودپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين.

۶) عمدة القارى: ۱۹۵/۱۵.

۷) قوله: عن أبي هريرة رضى الله عنه: الحديث، أخرجه مسلم، كتاب الزهد والرقائق، باب فى الفار، وأنه مسخ رقم: ۲۹۹۷ فالحديث مما اتفق عليه الشيخان، ولم يخرجه غيرهما.

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسمٰعيل تيمى تبوذكى رحمه الله دي. د دوى حالات اجمالاً بدء الوحي او تفصيلاً كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد....، په ضمن كښې راغلى دى.(۱)

**وهيب:** دا وهيب بن خالد بن عجلان بصرى رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال لاندې تيرشوى دى.(۲)

**خالد:** دا مشهور محدث خالد بن مهران الحذاء رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب په ذيل كښې راغلى دى.(۳)

**محمد:** دامشهور تابعى حضرت محمدبن سيرين بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب اتباع الجنائز من الإيمان لاندې په تفصيل سره راغلې ده.(۴)

**ابوهريره:** دامشهورصحابى ابوهريره دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.(۵)

**قوله: :عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: فقدت أمة من بنى إسرائيل، ولايدرى مافعلت، وإنى لا أراها إلا الفأر:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبى كريم ﷺ نه نقل كوى چه حضورپاك اوفرمائيل چه د بنى اسرائيلو يو جماعت ورك شو معلومه نه ده چه هغوى څه اوكړه. اوزما ګمان اوخيال دادې چه هغوى (اوس) مږې دى. مطلب دا چه د بنى اسرائيلو يو جماعت د الله تعالى د عذاب ښكار كيدو سره نست اونابود شو. چاته نه ده معلومه چه دهغوى څه انجام اوشو. البته زما خيال دې چه هغوى مسخ شوى اومږې ترې جوړې شوى دى. اوس چه داكومې مږې دى هم دهغه ممسوخه جماعت دنسل نه دى.

**أراها** دهمزه په ضمه سره دګمان اوخيال په معنى كښې دې او **فأر** دهمزه سكون سره **فأرة** جمع ده يعنى مږې.(۶)

**قوله: :إذاوضع لها ألبان الإبل لم تشرب، وإذاوضع لها ألبان الشاء شربت:** كله چه دهغوى مخې ته د اوښ پيئى كيخودې شى نو هغه نه څكى اوكله چه دهغوى مخې ته د چيلو پيئى كيخودې شى نوڅكى. وړاندې كوم چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى وو چه مږې د بنى اسرائيلو د يوجماعت ممسوخه شكلونه او صورتونه دى نو دا مبرهن كولوسره اوفرمائيل چه يو ددې دليل دادې چه كله هغوى ته د اوښانو پيئى كيخودلې شى نو نه څكى خو د چيلو پيئى څكى. د صحيح مسلم په

---

(۱) كشف البارى:۱/۴۳۳ الحديث الرابع: ۳۷۷/۳.
(۲) كشف البارى: ۱۱۸/۲.
(۳) كشف البارى:۳۶۱/۳.
(۴) كشف البارى: ۵۲٤/۲.
(۵) كشف البارى: ۶۵۹/۱
(۶) حواله جات بالا وأرشاد السارى: ۳۱۰/۵.

روايت كښې كوم چه هم دابن سيرين رحمه الله دې مګر طريق بل دې. «وآية ذلك أنه يوضع...» الفاظ دى.[1] بنى اسرائيلو باندې چونكه اوښ حرام وو هغوى دهغه د نورو اجزاء سره به ئى دهغې پينى هم نه څكل.[2] اومږه هم د اوښ پينى نه څكى نودا دليل شو چه د مږې تعلق هم دغه ممسوخه جماعت سره دې اودا هم ددې جماعت د نسل نه دې.[3]

**يواشكال اودهغې جواب**: دحديث باب نه دا معلومه شوه چه كه يوساه والامسخ كړې شى نو هم په دغه ممسوخه شكل كښې دهغه نسل چليږى اوهغه نه فنا كيږى. د مسلم شريف يو روايت دې كوم چه دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل دې په هغې كښې دى چه يوصحابى تپوس اوكړو چه «**يارسول الله، القردة والخنازير مما مسخ؟**» آيا بيزوګان او خنزيران د انسانى شكل نه مسخ كيدوسره دې صورت ته رسيدلى دى؟ نو حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو «**إن الله عزوجل لم يهلك قوما، أو يعذب قوما، فيجعل لهم نسلا، وإن القردة والخنازير كانوا قبل ذلك**»[4]

دكوم حاصل چه دادې چه كوم قوم دالله تعالى د عذاب ښكارشى فناشى نست اونابود شى دهغوى نسل نه چليږى باقى پاتې شو بيزوګان او سور نودا د اول نه راروان دى. ددوى وجود د بنى اسرائيلو د بعض خلقو بيزوګان او سور كښې بدليدو نه د اول نه وو. كله چه الله تعالى نور څناور پيدا كړل هغه وخت ئى دوى هم پيدا كړى وو اوددوى د وجود د يو امت يا جماعت دمسخ كيدو سره هيڅ تعلق نشته دې.

چنانچه د مسلم شريف ددې روايت نه معلومه شوه چه د ممسوخه امت نسل نه چليږى. اوس ددې دواړو احاديثو په مينځ كښې تعارض دې. ددې جواب دادې چه په دواړو احاديثو كښې هيڅ تعارض نشته دې. دحديث باب تعلق د وحى نه وړاندې وخت سره دې او په دې باندې قرينه لفظ أراها دې چه زما ګمان او خيال دې چه ... بيا چه وحى سره يقينى خبره معلومه شوه نودغه ئى په بله موقع باندې ارشاد اوفرمائيلو. ددې ذكر د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په حديث كښې دې. اودا خبره واضحه شوه چه دمږو هيڅ يو ممسوخه جماعت سره څه تعلق نشته دې اونه د دوى نسل د يو داسې جماعت نه مخكښې راچليدلې دې. والله اعلم بالصواب.[5]

---

[1]) مسلم شريف كتاب الزهد والرقائق باب الفأرة وأنه مسخ رقم: ٧٤٥٧.

[2]) عمدة القارى:١٩٤/١٥والعذب النمير: ٢٨٧/٤سورة الأعراف والتحرير والتنوير: ٢٧٨/٢سورة البقرة. مسندأبى داؤد الطيالسى: ١٥١/٣-١٥٠رقم: ٢٨٥٤.

[3]) عمدة القارى: ١٩٣/١٥الكوثر الجارى: ٢٢١/٦التوضيح: ٢٤٦/١٩.

[4]) صحيح مسلم كتاب القدر باب أن الآجال والأرزاق.... رقم: ٦٧٧٢

[5]) عمدة القارى:: ١٩٤/١٥التوضيح: ٢٤٥/١٩فتح البارى: ٣٥٣/٦الكوثر الجارى: ٢٢١/٦. قال القسطلانى فى شرحه: ٣١٠/٥: وقداختلف فى الممسوخ، هل يكون له نسل أم لا؟ فذهب أبو إسحاق الزجاج وابن العربى أبوبكر إلى أن الموجود من القردة من نسل الممسوخ، تمسكا بحديث الباب. وقال الجمهور: لا، وهو المعتمد، لحديث ابن مسعود رضى الله عنه عند مسلم مرفوعا: إن الله لم يهلك قوما أو يعذب قوما فيجعل لهم نسلا، وأن القردة والخنازير كانوا قبل ذلك.[صحيح مسلم، فى القدر، باب بيان أن الآجال...رقم: ٦٧٧٣-٦٧٧٠ وأجابوا عن حديث الباب بأنه عليه الصلاة والسلام قاله قبل أن يوحى إليه بحقيقة الأمر فى ذلك وإنما لم يجزم به بخلاف النفى، فإنه جزم به. كما فى حديث ابن مسعود]".

**قوله: فحدثت كعبا، فقال أنت سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقوله؟ قلت: نعم، قال لي مرارا، فقلت: أفأقرأ التوراة؟**: چنانچه ما داحديث حضرت كعب رضي الله عنه ته واؤرولو نوهغوى استفسارا ماته اوونيل چه ايا واقعى دا خبره تاسو دنبى اكرم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلې ده؟ ما ونيل اوجى هغه مانه څوځل ددې سوال تپوس اوكړو (آخر) ماورته اوونيل چه ولې زه تورات وايم څه؟

د حدثت قائل حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې فرمائى چه كله ما دغه پورته ذكرشوې حديث حضرت كعب رضي الله عنه ته واؤرولو نوهغه ماته اوونيل چه واقعى تا دا حديث اوريدلې دې؟ اوآيا دا واقعى د نبى عليه السلام حديث دې دا سوال هغوى څوځل اوكړو آخر زه صبر نه شوم او دا مې ورته اوونيل چه ولې زه تورات وايم څه اودهغې مطالعه كوم څه. يعنى دا هم حديث دې كه نه چه دنبى كريم صلى الله عليه وسلم نه مې اوريدلې دې، د خپل ځان نه نې نه وايم اونه نې د تورات نه نقل كوم.

**قوله: أفأقرأ التوراة؟**: كښې همزه استفهام انكارى دې مطلب دادې چه زه تورات نه وايم دمسلم شريف په روايت كښې دا الفاظ دي «أفأنزلت على التوراة؟»[1] چه تورات په ما باندې نه دې نازل شوې چه دهغې نه تاسو خلقو ته واؤروم.[2]

ددې نه داخبره مستفاد شوه چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به د اهل كتاب نه څه نه نقل كول. بل دا خبره هم مستفاد شوه چه دغه شان يوصحابى څه روايت نقل كړى په كوم كښې چه د رائې او اجتهاد څه دخل نه وى نوهغه حديث به د مرفوع په حكم كښې وى.[3]

چنانچه د مسنداحمد يو روايت كښې دى چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه د شروع نه ددې حديث نسبت نبى كريم صلى الله عليه وسلم طرف ته نه دې كړې خوچه كله كعب رضي الله عنه بار بار تپوس اوكړو نو بيانې اوفرمائيل چه زه دخپل طرف نه نه وايم نه ما تورات لوستلې دې هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث اوروم.[4]

غالبًا دې دوارو حضراتو ته دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه هغه حديث نه وو رسيدلې دكوم ذكرچه د مسلم شريف په حواله سره هم اوس تيرشو په دې وجه هغوى ترآخره پورې هم په دې باندې وو چه د ممسوخ نسل چليږى. تفصيل هم اوس تير شو.

**حضرت كعب رحمه الله**: دا مشهور مخضرم تابعى، حضرت كعب بن ماتع رحمه الله دې. د يمن معروف قبيلې حميرسره نې تعلق لرلو. په دې وجه ورته حميرى وائى. ابواسحاق د دوى كنيت دې او په كعب الاحبار سره پيژندلې شي.[5]

حضرت كعب رحمه الله مذهبًا يهودى وو دنبى كريم صلى الله عليه وسلم زمانه نې ليدلې ده مگر مسلمان شوې نه دې. اسلام نې دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په زمانه كښې دهغوى په لاس باندې قبول كړو د يوروايت مطابق عهد فاروقى كښې اسلام قبول كړې او راجح هم دغه قول دې.[6]

---

[1] صحيح مسلم كتاب الزهد والرقائق باب في الفار وأنه مسخ رقم: ۷۴۵۷.

[2] فتح البارى: ۳۵۳/۶ عمدة القارى: ۱۹۴/۱۵ إرشادالسارى: ۳۱۰/۵ التوضيح: ۲۴۶/۱۹.

[3] فتح البارى: ۳۵۳/۶.

[4] مسنداحمد: ۵۰۸/۲ رقم: ۱۰۶۰۲.

[5] تهذيب الكمال: ۱۸۹/۲۴ تهذيب ابن حجر: ۱۳۸/۸ وكتاب الثقات: ۳۳۳/۵.

[6] حواله جات بالا الإصابة: ۳۱۵/۳ قال الحافظ: والراجح أن إسلامه كان فى خلافة عمر.

په اسلام باندې مشرف كيدو نه پس حضرت عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه سره ئې د موالات رشته قائم كړه. حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائي يوځل حضرت عباس رضي الله عنهما د كعب احبار رحمه الله نه تپوس اوكړو چه آخر څه وجه وه چه تاسو د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې اسلام قبول نه كړو او نه په عهد صديقى كښې په اسلام مشرف شوې او په عهد فاروقى كښې مسلمان شوې؟ حضرت كعب رحمه الله اوفرمائيل چه زما پلار (چه يهودى وو) د تورات يوه حصه اوليكله اوماته ئې حواله كړه او وئې وئيل چه هم په دې باندې عمل كوه او په خپل ټولو مذهبى كتابونو باندې ئې مهر (سل) اولګولو اوماته ئې چه د خوئى په پلار باندې كوم حق وى دهغى قسم واخستو چه زه به دامهر نه ماتوم اونه به دغه كتابونه ګورم اومطالعه كوم به ئې. اوس چه ما كله اوكتل چه اسلام خو شان غالب كيږى او په بقاع عالم كښې خوريږى نوسوچ مى اوكړو چه ددغه كتابونو په كتلو كښې هيڅ حرج نشته دې. زمانفس ماته اووئيل چه كيدې شى په دې كښې څه داسې علم وى چه ستا پلار تانه پټ كړې وى اوس دا اووايه. چنانچه ما مهر مات كړو اوهغه كتابونه مې اولوستل نو ماته په هغې كښې د نبى كريم صفات محموده اودهغوى د امت حالات لوستل ملاؤ شو. حق چونكه واضح شوې وو په دې وجه زه مسلمان شوم.(١)

حضرت كعب رحمه الله د نبى كريم ﷺ نه مرسلاً روايت دحديث كوى. بل حضرت صهيب رومى، حضرت عمر فاروق اوحضرت عائشه صديقه رضي الله عنهم نه هم دحديث روايت كوى. خودهغوى انتقال دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه مخكښې شوې. اوددوى نه دحديث روايت كونكى حضرت عبدالله بن زبير، حضرت معاويه، حضرت ابوهريره، حضرت ابن عباس رضي الله عنهم غوندې جليل القدر صحابه كرام نه علاوه دهغه ميرنې خوئى تبيع حميرى، او مالك بن ابى عامر اصبحى، عطاء بن ابى رباح، عبدالله بن ضمره سلولى، عبدالله بن رباح انصارى، ممطور ابوسلام، ابو رافع صانغ، عبدالرحمن بن مغيث، روح بن زنباع، يزيد بن حمير غوندې اساطين علم شامل دى. (٢)

امام ابن سعد رحمه الله د هغوى شمير د اهل شام د تابعين طبقه اولى كښې كړې دى اوفرمائيلى دى په آخر عمر كښې هغوى په شام كښې اوسيدل اختيار كړى وو او په شروع كښې دمدينې اوسيدونكې وو.(٣)

چا دحضرت ابوالدرداء رضي الله عنه په مخكښې دهغوى ذكراوكړو نو وئې فرمائيل: «إن عند ابن الحميرية لعلماً كثيراً» (٤) چه روره ابن الحميريه سره خو ډير زيات علم دې. حضرت معاويه رضي الله عنه به فرمائيل: «ألا، إن أبا الدرداء أحد الحكماء، ألا إن عمرو بن العاص أحد الحكماء، ألا إن كعب الأحبار أحد العلماء، إن عنده لعلم كالثمار، وإن كنا فيه لمفرطين» (٥) واؤره ابوالدرداء او عمرو بن العاص رضي الله عنهما دواړه د ارباب او دانش نه دى. واؤره كعب احبار رحمه الله د لويو علماؤ نه دې هغوى سره د ميوو (دكثرت) په شان علم دې اګرچه مونږ دهغوى د شان اوحق قدر اونه كړې شو.

ابومعن رحمه الله وائى چه حضرت عبدالله بن سلام اوكعب بن احبار دواړو ملاقات حضرت عمر رضي الله عنه سره شوې. عبدالله بن سلام رحمه الله كعب نه تپوس اوكړو چه ارباب علم څوك دى؟ نو وئې فرمائيل «الذين

---

(١) تهذيب الكمال: ١٩١/٢٤ رقم الترجمة: ٤٩٨٠ طبقات ابن سعد: ٤٤٥/٧.

(٢) دَ شيوخ اوتلامذه دَ تفصيل دَ پاره اوګورئى: تهذيب الكمال: ١٩٠/٢٤-١٨٩ تهذيب التهذيب: ٤٣٨/٨.

(٣) طبقات ابن سعد: ٤٤٥/٧ تهذيب الكمال: ١٩٠/٢٤ تهذيب التهذيب: ٤٣٨/٨.

(٤) طبقات ابن سعد: ٤٤٦/٧ تهذيب الكمال: ١٩١/٢٤ تهذيب التهذيب: ٤٣٩/٨.

(٥) تهذيب الكمال: ١٩٢/٢٤ تهذيب: ٤٣٩/٨.

يعلمون به،په حقيقت كښې لوئى عالم هغه دې چه په علم باندې عمل كوى. بيائى تپوس اوكړو چه آخر په كومه وجه به دعلماؤ دزړونو نه علم اوچت كړې شى حالانكه هغوى به دا ښه ياد كړې هم وى اوښه به پوهه شوې هم وى؟كعب اوفرمائيل ددې وجه به دا وى چه هغوى به خپل حاجات د خلقو مخې ته ايږدى د لالچ او طمع به ښكار شى. حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه اوفرمائيل تاسو رښتيا اوونيل.(١)
د حضرت كعب انتقال كله شوې؟ په دې كښې دوه اقوال دى. ٣٢هجرى او ٣٤ هجرى مشهور قول دويم دې چه ٣٤ هجرى كښې وفات شوې. د انتقال په وخت دهغوى عمر مبارك يوسل څلوركاله وو. د شام مشهور ښار حمص كښې دهغوى وفات شوې.(٢) دا حضرات صحابه كراموسره غزوات ته تلې وو اودهغوى وفات هم دغزوې دپاره تللوسره په لاركښې اوشو. د صائفه طرف ته تلونكې لښكرحصه وو چه بيمار شو اوهم په دغه بيمارئى كښې دهغوى انتقال اوشو. رحمه الله رحمة واسعة.(٣) حضرت كعب رحمه الله سنن ثلاثه، اود ابن ماجه رحمه الله دتفسير راوى دې.(٤)
خو په صحيحين كښې دهغوى هيڅ يو روايت نشته دې. حافظ جمال الدين مزى رحمه الله نه دلته تسامح شوې دې چه هغوى حضرت كعب رحمه الله دبخارى شريف راوى ګرځولې دې. اوپه بخارى شريف كښې دهغوى نه يو روايت هم نشته دې.(٥)
**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت:** د حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دې كښې دمختلف ساه والو ځيزونو ذكر دې اوهغه ټول په مخلوق اودابه كښې داخل دى.
د باب اووم حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث السابع

٣١٣٠-حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ، عَنِ ابْنِ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، يُحَدِّثُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ، قَالَ: «لِلْوَزَغِ الفُوَيْسِقُ» وَلَمْ أَسْمَعْهُ أَمَرَ بِقَتْلِهِ وَزَعَمَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِهِ-[ر١٧٣٣](٦)

---

(١) تهذيب الكمال: ١٩٢/٢٤.
(٢) حواله بالا تهذيب ابن حجر: ٤٣٩/٨ثقات ابن حبان: ٣٣٤/٥.
(٣) سير أعلام النبلاء: ٤٩١/٣-٤٩٠تهذيب الكمال: ١٩١/٤.
(٤) تهذيب ابن حجر: ٤٣٩/٨تهذيب الكمال: ١٩٣/٢٤ سير أعلام النبلاء: ٤٩٠/٣.
(٥) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله فى التهذيب: ٤٣٩/٨ هذا - أى حديث حميد بن عبدالرحمن سمع معاوية.... جميع ماله فى البخارى، وليست هذه برواية عنه، فالعجب من المؤلف (المزى) كيف يرقم له رقم البخارى، فيوهم أن البخارى أخرج له. وكذارقم فى الرواة عنه على معاوية بن سفيان رقم البخارى، معتمدا على هذه القصة، وفى ذلك نظر، وقد وقع ذكر الرواية عنه فى مواضع، فى مسلم، فى أواخر كتاب الأيمان، وفى حديث أبى معاوية عن الأعمش، عن ابى صالح، عن أبى هريرة رضى الله عنه: إذا أدى العبدحق الله وحق مواليه كان له أجران. فحدثت به كعبا، فقال كعب: ليس عليه حساب، ولا على مؤمن مزهد.[صحيح مسلم، كتاب الإيمان باب ثواب العبد وأجره إذا نصح لسيده... رقم ٤٣٢٢/١٦٦٦]"قلت والصواب مع ابن حجر. وقال ابن حجر في التقريب: ثقة مخضرم." تعليقات تهذيب الكمال: ١٩٣/٢٤.
(٦) قوله: عن عائشة رضى الله عنها: الحديث، مر تخريجه فى الحج، باب مايقتل المحرم من الدواب....

## تراجم رجال

**سعيد بن عفير**: دا ابوعثمان سعيد بن كثير بن عفير رحمه الله دې.

**ابن وهب**: دا مشهور محدث ابومحمد عبدالله بن وهب مسلم قرشى رحمه الله دې. ددوى دواړو حضراتو تذكره **كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه**..... لاندې تيره شوې ده.[1]

**يونس**: دا يونس بن يزيد ايلى قرشى رحمه الله دې. د دوى مختصر حالات بدء الوحي او مفصل حالات **كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه**...... لاندې تيره شوې ده.[2]

**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. ددوى مختصر تذكره بدء الوحى دريم حديث كښې تيره شوې ده.[3]

**عروة**: داحضرت عروه بن زبير بن عوام مدنى رحمه الله دې. ددوى اجمالى حالات بدء الوحي دريم حديث حديث اوتفصيلى حالات **كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه** لاندې بيان كړې شوى دى.[4]

**عائشه** رضي الله عنها: دحضرت عائشه رضي الله عنها حالات بدء الوحي ددويم حديث لاندې راغلى دى.[5]

**قوله: :أن النبي صلى الله عليه وسلم قال للوزغ: الفويسق**: دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ د چمچوركنى بابت كښې فرمائيلى چه دا فسادى اوموذى ځناور دې.

**دوزغ لغوي اوصرفي تحقيق**: وزغ د واؤ او زاء فتحه سره د وزغة جمع ده. ددې نورې ډيرې جمعې راځى لكه اوزاغ، وزغان، وزاغ او ازغان چمچوركنى ته وائى اودې ته سام ابرص هم وئيلى شى.[6]

للوزغ كښې چه كوم لام جاره دې هغه دعن په معنى كښې دې مطلب دې «**قال للوزغ: أي عن الوزغ**» چه د چمچوركنى باره كښې فرمائيلى...[7] **فويسق** د تصغير صيغه ده او دا تصغيرد حقارت او ذم په غرض سره دې. ددې نور تفصيل به وړاندې راځى. ان شاء الله.

**قوله: :ولم أسمعه أمر بقتله**: ما دنبى كريم ﷺ نه ددې د قتل كولوباره كښې څه فرمائيل نه دى اوريدلى. دا د حضرت عائشه رضي الله عنها قول دې هغه فرمائى چه چمچوركنى وژل پكار دى كه نه؟ په دې باره كښې ما د حضورپاك نه څه نه دى اوريدلى په شريعت كښې ددې موذى ځناور د وژلو حكم دې په دې وجه د عائشه رضي الله عنها دا قول په عدم قتل باندې دليل نه شى جوړيدې ځكه چه د هغې رضي الله عنها عدم سماع (نه اوريدل) د عدم وقوع دليل نه دې هغې به نه وى اوريدلى مګر نورو ډيرو صحابه كرامو څو

---

[1] كشف البارى: ۲۸۲/۳-۲۷۴.
[2] كشف البارى: ۳/ ۲۸۲.
[3] كشف البارى: ۳۲۶/۱.
[4] كشف البارى: ۲۹۱/۱، ۴۳۶/۲.
[5] كشف البارى: ۲۹۱/۱.
[6] أرشادالسارى: ۳۱۰/۵.
[7] أرشادالسارى: ۳۱۰/۵.

رضي الله عنها نه نقل دي اوريدلې دي.[1] دې نه علاوه د باب د روايت خلاف، دمضمون روايت پخپله د عائشه رضي الله عنها نه نقل دي، چنانچه مسند احمد وغيره[2] کښې دي چه د هغې رضي الله عنها په کوم سره چه د چمچور کنى وژل ثابتيږي. چا دهغې باره کښې تپوس اوکړو نوحضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه کوټه کښې يوه نيزه پرته وه. چا دهغې باره کښې تپوس اوکړو نوحضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه مونږ په دې باندې چمچور کنى وژنو ځکه چه نبى اکرم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه کله ابراهيم عليه السلام د نمرود په اور کښې واچولې شو نودمځ د زمکې هريو ځناور ځاروى خفه وو اوهر ځناور د دغه دنمرود اور د يخولواوخپل پخپله دهغې د يخولوکوشش کښې وو بغير د دغه مردود چمچور کنى چه هغې د اور نور تيزولودپاره هغې ته پوکى ورکول. په دې وجه حضورپاك ددې د قتل حکم ورکړې وو.[3]

خود حافظ صاحب رحمه الله رجحان دادې چه هم د صحيح بخارى روايت صحيح دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها د چمچور کنى د وژلوبابت کښې د نبى کريم عليه السلام نه څه نه دى اوريدلى. پاتې شوه خبره د مسند احمد وغيره دروايت چه په دې کښې أخبرنا الفاظ راغلى دى «فإن النبى صلى الله عليه وسلم أخبرنا.....» نودا په مجاز باندې محمول دى چه حضرت عائشه رضي الله عنها نيغ په نيغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د چمچور کنى باره کښې څه نه وو اوريدلى بلکه دبعض صحابه کرامو نه ئې حديث اوريدلې وو د کوم تعبير چه هغې أخبرنا سره اوکړو. چنانچه د أخبرنا نه مراد أخبر الصحابة دې

ددې مثال دحضرت ثابت بنانى رحمه الله دا ارشاد دې «خطبنا عمران.....» چه مونږ ته عمران بن حصين رضي الله عنه خطبه راکړه نودهغه مراد دلته «خطب أهل البصرة» وى ځکه چه پخپله حضرت ثابت بنانى رحمه الله دحضرت عمران بن حصين رضي الله عنه نه نيغ په نيغه نه دې اوريدلې. والله اعلم بالصواب.[4]

**قوله: :وزعم سعد بن أبى وقاص أن النبى صلى الله عليه وسلم أمر بقتله:** او سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه اوفرمائيل چه حضورپاك د چمچور کنى د وژلو حکم ورکړې. زعم، د قال په معنى کښې دې اوس ددې جملې «وزعم سعد» قائل څوك دې؟ په دې کښې درې احتمالات دى. ① ددې قائل حضرت عروه رحمه الله دې دغه شان به حديث متصل شى ځکه چه دهغه سماع دحضرت سعد رضي الله عنه نه ثابته ده. ② حضرت عائشه رضي الله عنها ددې جملې قائله ده نودا روايت به القرين عن القرين شى چه يوملګرى د بل ملګرى نه واؤريدو. دا احتمال عينى رحمه الله اقرب ګرځولې دې «ويحتمل أن يكون عائشة رضى الله تعالى عنها، وهذا أقرب من حيثية ما يقتضيه التركيب»[5] ③ ددې جملې قائل أمام زهرى رحمه الله دې دغه شان به دا روايت منقطع شى ځکه چه دحضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه نه دامام زهرى رحمه الله سماع نشته دې. حافظ صاحب رحمه الله دا آخرى احتمال ته صحيح او راجح وئيلې دې.[6]

---

[1]) قال ابن التين رحمه الله، لا حجة فيه، إذ لا يلزم من عدم سماعها عدم الوقوع.... عمدة القارى:١٥/١٩٤فتح البارى:٦/٣٥٣.

[2]) مسندالإمام أحمد: ٦/٨٣رقم:٢٥٠٣٩ومسندأبى يعلى الموصلى: ٤/٣رقم: ٤٣٤٠أول حديث من مسند عائشة وسنن النسائى، كتاب المناسک باب قتل الوزغ، رقم: ٢٨٣٤وسنن ابن ماجة كتاب الصيد، باب قتل الوزغ رقم: ٣٢٣١.

[3]) عمدة القارى: ١٥/١٩٤فتح البارى:٦/٣٥٣إرشادالسارى: ٥/٣١١.

[4]) فتح البارى: ٦/٣٥٤.

[5]) عمدة القارى: ١٥/١٩٤.

[6]) فتح البارى: ٦/٣٥٤ إرشادالسارى: ٥/٣١١.

**وجه د ترجيح**: حافظ صاحب رحمه الله دريم احتمال راجح كرخولوسره فرمائي چه امام دارقطني رحمه الله خپل كتاب غرائب مالك كښې د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها او حضرت سعد رضي الله عنه دواړو احاديث د ابن وهب رحمه الله په طريق سره نقل كړى دى. دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت **عن يونس ومالك معاً عن ابن شهاب عن عروة عن عائشه** په سندسره دې خو په اتصال كښې هيڅ شك نشته. خو ابن وهب رحمه الله د حضرت سعد حديث عن ابن شهاب عن سعد ابى وقاص په سند سره ذكركړې دې حالانكه دابن شهاب سماع لكه چه اوس پورته تيرشو دحضرت سعد رضي الله عنه نه ثابته نه ده په دې وجه دويم روايت منقطع شو.[1]

**يوه اهم تنبيه**: دا ټول تفصيل د ابن وهب رحمه الله د طريق په اعتبارسره دې ګنې هم دغه حديث سعد مسلم او ابوداؤد وغيره[2] كښې معمر عن الزهرى په طريق سره دې. په دې كښې ابن شهاب زهرى د حضرت سعد خوئى عامر بن سعد نه روايت كوى دغه شان روايت متصل كيږي. لكه چه ابن شهاب معمر بن راشد ته كله حديث واؤرولو نوپوره سندئى موصولاً ذكركړو او يونس بن يزيد ته په اورولو سره ئى ارسال اوكړو. والله اعلم بالصواب.[3]

**د چمچوركئ د وژلوحكم**: د باب د چمچوركئى متعلق داحاديثو نه معلومه شوه چه حضورپاك ددې موذى څناور د وژلوحكم وركړې وو. په دې وجه ددې وژل مستحب دى. ددې په وژلوباندې د اجر وعده ده. چنانچه د ابوهريره رضي الله عنه يو روايت كوم چه مسلم شريف وغيره[4] كښې دې. چه د چمچوركئى په وژلوباندې د سلو نيكو ملاويدلو وعده ده او هم د دغه روايت په يوطريق[5] كښې د اوياؤ نيكو ملاويدلو خودلې شوى دى. چه دا څوك په اول وار سره اووژنى هغه ته به سل يا اويا يعنى ډيرې زياتې نيكئى ملاويږي. چه په دوو واروباندې اووژنى هغه ته به څه كمې او.په دريو وارو باندې وژونكى ته به په دوو وارو باندې وژلووالانه څه كمې نيكئى ملاويږي.

**د چمچوركئى د وژلو علت**: ددې د وژلو علت او سبب هم دغه دې چه دا څناور ډيرزيات خبيث الطبع اودكمينه فطرت والادې. لكه چه وړاندې تيرشو حضرت ابراهيم عليه السلام چه كله نمرود لعين په اور كښې واچولو نو په مخ د زمكې هر يوځناور اومرغئى د دغه اور د مړكولو كوشش اوكړو او په دغه عمل كښې ئى خپله حصه واچوله بغير د چمچوركئى نه چه هغې د خپل كمينه فطرت عين مطابق د اور د زياتولوډپاره په هغې كښې پوكى وهل. په دې وجه ددې په كټلوسره د وژلوكوشش كول پكاردى. دې نه علاوه ددې څناور زهر ډيرزيات تيز اثركونكى دى چه دخوراك څښاك په څيزونوكښې پريوځى نود ډير زيات نقصان اوهلاكت سبب جوړيږي.

علامه نووى رحمه الله دمسلم شريف حديث ((**من قتل وزغة فى اول ضربة فله كذا وكذا حسنة**)) په تشريح كښې فرمائي: ((**المقصود به الحث على بقتله، والاعتناء به، وتحريض قاتله على أن يقتله بأول ضربة، فإنه إذا أراد أن يضرب**

[1]) حواله جات بالا.

[2]) صحيح مسلم كتاب السلام باب استحباب قتل الوزغ رقم: ۲۲۳۸ وسنن أبى داؤد كتاب الأدب باب فى قتل الأوزاغ رقم: ۵۲۶۲ وصحيح ابن حبان: ۴۵۹/۸ كتاب الحظر والإباحة باب قتل الوزغ رقم: ۵۶۰۶ ومسندالإمام أحمد: ۱۷۶/۱ رقم: ۱۵۲۳.

[3]) تغليق التعليق: ۵۱۹/۳ وهدى السارى: ٤٤٢ وفتح البارى: ۳۵٤/۶ إرشادالسارى: ۳۱۱/۵.

[4]) مسلم كتاب الحيوان باب اس تحباب قتل الوزغ رقم: ۵۸٤۶ وأبوداؤد كتاب الأدب باب قتل الأوزاغ رقم: ۵۲۶۳ و ۵۲۶٤ والترمذى كتاب الصيد باب ماجاء فى قتل الوزغ رقم: ۱٤۸۲ وابن ماجه كتاب الصيد باب قتل الوزغ رقم: ۳۲۶۹.

[5]) صحيح مسلم كتاب الحيوان رقم: ۵۸٤۸-۵۸٤۶.

ضربات ربما انفلت وفات قتله)).([1])
دباب اتم حديث دحضرت ام شريك رضي الله عنها دى.

## الحديث الثامن

۳۲۳۱- حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ أُمَّ شَرِيكٍ، أَخْبَرَتْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَمَرَهَا بِقَتْلِ الأَوْزَاغِ» [۳۱۸۰] ([2])

## تراجم رجال

**صدقه بن الفضل**: دا امام ابوالفضل صدقه بن الفضل مروزى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب العلم والعظة... لاندې تيره شوې ده.([3])

**ابن عيينه**: دا مشهور محدث سفيان بن عيينه هلالى رحمه الله دې. ددوى مختصر حالات بدء الوحى كښې او مفصل حالات كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا... كښې راغلى دى.([4])

**عبدالحميد**: دا عبدالحميد بن جبير بن شيبه بن عثمان مكى رحمه الله دې.([5])

**سعيد بن المسيب**: دا مشهور تابعى حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب الايمان باب من قال: إن الايمان هو العمل.... لاندې تيره شوې ده.([6])

**حضرت ام شريک**: داحضرت ام شريك عامريه انصاريه دوسيه رضي الله عنها ده. ددې نوم غزيله بنت دودان بن عمرو بن عامر دى.([7]) خو ابن سعد رحمه الله ددې نوم غزيه بنت حكيم بن جابر ليكلې دى.([8])

حضرت ام شريك رضي الله عنها د نبى كريم ﷺ نه دحديث روايت كوى اوددوى نه دحديث روايت كونكو كښې حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه حضرت سعيدبن المسيب عروه بن زبير او شهر بن حوشب رحمهم الله وغيره شامل دى.([9])

د امام ابوداؤد رحمه الله نه علاوه نور ائمه خمسه ددې روايات په خپل خپل مصنفات كښې ذكركړى دى.

---

[1]) شرح النووى على مسلم: ۱٤/٤٥٦-٤٥٥ كتاب الحيوان باب استحباب قتل الوزغ.

[2]) قوله أم شريك رضى الله عنها، الحديث، أخرجه البخارى أيضا، كتاب أحاديث الأنبياء باب قوله تعالى ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾ رقم: ۳۳۵۹ ومسلم كتاب الحيوان باب استحباب قتل الوزغ، رقم: ۵۸٤۳-۵۸٤۲ والنسائى كتاب الحج باب قتل الوزغ رقم: ۲۸۸۵ وابن ماجه كتاب الصيد باب قتل الوزغ رقم: ۳۲٦۸.

[3]) كشف البارى كتاب العلم: ٤/۲۸۸.

[4]) كشف البارى: ۱/۲۳۸ الحديث الاول: ۳/۱۰۲.

[5]) ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الصوم باب صوم يوم الجمعة......

[6]) كشف البارى: ۲/۱۵۹.

[7]) تهذيب الكمال: ۳۵/۳٦۷ تهذيب التهذيب: ۱۲/٤۷۲.

[8]) حواله جات بالا.والطبقات الكبرى لابن سعد: ۸/۱۵٤.

[9]) د شيوخ او تلامذه دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۳۵/۳٦۷ تهذيب التهذيب: ۱۲/٤۷۲.

رضى الله عنها وأرضاها.(١)

**قوله: أن أم شريك أخبرته أن النبى صلى الله عليه وسلم أمرها بقتل الأوزاغ:** حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله فرمائى چه حضرت ام شريك رضي الله عنها هغه ته اوخودل چه نبى عليه السلام هغې ته د چمچورکو د وژلو حکم ورکړې وو. ددې حديث نه ثابته شوه چه چمچورکئى چرته هم ښکارى هغه وژل پکار دى. تفصيل اوس تيرشو.

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** دحضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ام شريك رضي الله عنها دواړو احاديثو کښې د وزغ ذکر دې کوم چه مخلوق دې او په دابه کښې داخل دې.

دباب نهم حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث التاسع

**٣١٣٢- حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ [ص:١٢٩]: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ، فَإِنَّهُ يَلْتَمِسُ البَصَرَ، وَيُصِيبُ الحَبَلَ» تَابَعَهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ أَبَا أُسَامَةَ(٢)**

## تراجم رجال

**عبيد بن اسماعيل:** دا ابومحمد عبدالله بن اسماعيل هبارى کوفى رحمه الله دې. عبيد لقب دې. دده حالات **كتاب الحيض باب نقض المرأة شعرها.....** لاندې راغلى دى.(٣)

**ابواسامه:** دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زيد کوفى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب فضل من علم وعلم** کښې تيرشو.(٤)

**هشام:** دا هشام بن عروه بن زبيربن عوام اسدى رحمه الله دې.

**ابيه:** دا عروه بن زبيربن عوام رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره بدء الوحى دويم حديث کښې اجمالاً او **كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه** کښې تفصيلاً تيره شوى ده.(٥)

**عائشه:** دام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحى دويم حديث لاندې تيرشوى دى.(١)

---

(١) تهذيب الكمال: ٣٦٧/٣٥ ددې باره کښې د نورو تفصيلاتو دپاره الاصابة: ٤٦٧/٤-٤٦٦ رقم: ١٣٤٧.

(٢) قوله: عن عائشة رضى الله عنها، الحديث. أخرجه البخارى فى نفس هذا الباب رقم: ٣٣٠٩ ومسلم فى السلام كتاب الحيوان باب قتل الحيات وغيرها رقم: ٥٨٢٤ والنسائى فى مناسک الحج باب قتل الوزغ رقم: ٢٨٣١ وابن ماجة فى الطب باب قتل ذى الطفيتين رقم: ٣٥٧٩.

(٣) كشف البارى: كتاب الحيض: ٣٩٨ إرشادالسارى: ٣١١/٥.

(٤) كشف البارى: ٤١٤/٣.

(٥) كشف البارى: ٢٩١/١، ٤٣٦/٢-٤٣٢.

**قوله:: قالت: قال النبي صلى الله عليه وسلم: اقتلوا ذا الطفيتين، فإنه يطمس البصر، ويصيب الحبل**: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه نبي کریم ﷺ فرمائيلي دي چه دوو کرخو والا مار وژنئ ځکه چه هغه سترګي بې نوره او حمل ته نقصان رسوي. ددې حديث شريف شرح مخکښې تیره شوې ده.[1]

**قوله:: تابعه حماد بن سلمة:..** دامام بخاري رحمه الله ددې متابعت د ذکرکولو نه مقصد دادې چه ددې حدیث دهشام بن عروه نه تخریج کښې حماد بن سلمه هم د ابواسامه رحمه الله متابعت کړې دی.[2]

**د مذکوره متابعت تخريج**: د حماد بن سلمه رحمه الله مذکوره بالا متابعت امام احمد رحمه الله خپل مسند کښې عفان عن حماد بن سلمة.... [3] په طریق سره موصولاً ذکر کړې دی.[4]

دباب لسم حديث هم دحضرت عائشه رضي الله عنها دی.

## الحديث العاشر

۳۱۳۳- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الأَبْتَرِ وَقَالَ: «إِنَّهُ يُصِيبُ البَصَرَ، وَيُذْهِبُ الحَبَلَ» [5]

## تراجم رجال

**مسدد**: دا مسدد بن مسرهد اسدي بصري رحمه الله دې. ددوی تذکره **كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه** لاندې راغلې.[6]

**يحيى**: دامشهور محدث ابو سعيد يحيى بن سعيد القطان تميمي رحمه الله دې. ددوی تذکره **كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه....**، لاندې ذکر کړې شوې ده.[7]

**يوه اهم فائده**: امام بخاري رحمه الله په دې روایت کښې په ابتر باندې اقتصار کړې دې. سابقه حدیث کښې ذوالطفيتين باندې اقتصار کړې وو. دواړه روایتونه دحضرت عائشه رضي الله عنها دی. حالانکه د ابن عمر رضي الله عنهما چه کوم حدیث مخکښې تیرشوې دې په هغې کښې دواړه هم په یوروایت کښې جمع کړې شوي دی. بل په مسلم شريف کښې هم پخپله د حضرت عائشه رضي الله عنها د روایت په یو طریق کوم چه د ابومعاویه رحمه الله دې [8] کښې دواړه امور هم په یو روایت کښې راجمع کړې شوي دی. لهذا باب هذا

---

[1] كشف الباري: ۲۹۱/۱.

[2] فتح الباري: ۳۵٤/۶ إرشادالساري: ۳۱۱/۵ عمدة القاري: ۱۹۵/۱۵.

[3] مسند الإمام أحمد مسند عائشة: ۱۳٤/۶ رقم: ۲۵۵۳۹.

[4] فتح الباري: ۳۵٤/۶ عمدةالقاري: ۱۹۵/۱۵ إرشادالساري: ۳۱۱/۵.

[5] قوله: عن عايشة رضى الله عنها: الحديث مر تخريجه آنفا.

[6] كشف الباري: ۲/۲.

[7] كشف الباري: ۲/۲.

[8] مسلم شريف كتاب الحيوان باب قتل الحيات وغيرها رقم: ۵۸۲٤.

كنبې امام بخاري رحمه الله دواړه امور چه كوم د جدا جدا روايتونو په ذريعه ذكر كړي دي دهغې وجه يا خو ضبط راوي دې چه چا يوځه ضبط كړي او چا بل. يا دا اختلاف د اوقات سماع په اختلاف باندې محمول دې. والله اعلم.[1]

د دې حديث شرح هم شاته تيره شوې ده.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** دحضرت عائشه رضي الله عنها د دې دواړو احاديثو مناسبت بالباب لفظ ذوالطفيتين او ابتر كنبې دې چه دا دواړه مخلوق دی او دابه دی.

د باب يولسم حديث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دې.

## الحديث الحادي عشر

۳۱۲۳/۳۱۲۵- حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ أَبِي يُونُسَ الْقُشَيْرِيِّ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقْتُلُ الْحَيَّاتِ ثُمَّ نَهَى، قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَمَ حَائِطًا لَهُ، فَوَجَدَ فِيهِ سِلْخَ حَيَّةٍ، فَقَالَ: «انْظُرُوا أَيْنَ هُوَ» فَنَظَرُوا، فَقَالَ: «اقْتُلُوهُ» فَكُنْتُ أَقْتُلُهَا لِذَلِكَ، فَلَقِيتُ أَبَا لُبَابَةَ، فَأَخْبَرَنِي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لاَ تَقْتُلُوا الْجِنَّانَ، إِلاَّ كُلَّ أَبْتَرَ ذِي طُفْيَتَيْنِ، فَإِنَّهُ يُسْقِطُ الْوَلَدَ، وَيُذْهِبُ الْبَصَرَ فَاقْتُلُوهُ»[2]

### تراجم رجال

**عمرو بن علي:** دا حافظ عمرو بن علی بن بحر صيرفی بصری رحمه الله دی.[3]

**ابن ابي عدي:** دا محمد بن ابراهيم بن ابی عدی السلمی رحمه الله دی.[4]

**ابويونس قشيري:** دا ابويونس حاتم بن مسلم بصری قشيری رحمه الله دی.[5] ابوصغيره د ده د مور پلار دې خو بعض وئيلي دی ابوصغيره دده ميرنی پلار دی.[6]

دی دعطاء بن ابی رباح عمرو بن دينار، ابن ابی مليكه، سماك بن حرب، نعمان بن سالم او ابوقزعة رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت كوی. او دده نه د حديث روايت كونكو كنبې شعبه بن حجاج، عبدالله بن مبارك، ابن ابی عدی، يحيی بن سعيد القطان، روح بن عبادة، عبدالله بن بكر سهمی او محمد بن عبدالله انصاری غوندې اساطين علم وعرفان شامل دی.[7]

---

[1] الكوثر الجاری: ۲۲۲/۶.

[2] قوله أن ابن عمر...... الحديث، مرتخريجه فی الباب السابق.

[3] دذوی دحالاتودپاره اوگورئی كتاب الوضوء، باب الرجل يوضئ صاحبه.

[4] دذوی دحالاتودپاره اوگورئی كتاب الغسل باب إذا جامع، ثم عاد، ومن دار علی......

[5] بضم القاف وفتح الشين المعجمة وسكون الياء آخر الحروف، وبالراء...نسبة إلى قشير بن كعب بن ربيعة. عمدة القاری:۱۹۵/۱۵.

[6] حواله بالا وتهذيب الكمال: ۱۹٤/۵ وإكمال مغلطای: ۲۷۲/۳ تهذيب ابن حجر: ۱۳۰/۲.

[7] حواله جات بالا.

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائي: «الإمام الصدوق...من نبلاء المشائخ»[1] ابن سعد رحمه الله فرمائي «كان ثقة إن شاء الله»[2] امام احمد رحمه الله فرمائي "ثقة، ثقة." [3] امام ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر الثقات کښې کړې.[4]

خلاصه دا شوه چه ابویونس قشیری رحمه الله متفق علیه ثقه دې. د چانه دهغوی متعلق جرح نقل نه ده. دې د ائمه سته راوی دې. ټولو ددوی احادیث اخستې دی.[5]
تقریباً د ۱۵۰ هجری پورې ژوندې پاتې دې دهغې نه پس انتقال شوې. رحمه الله رحمة واسعة.[6]
**ابن ابی ملیکه:** دا ابوبکر عبدالله بن عبیدالله ابی ملیکه رحمه الله دې. د دوی تذکره «**كتاب الايمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله.....**» لاندې راغلې ده.[7]
**ابن عمر:** دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. دد وی تفصیلی حالات **كتاب الإيمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الإسلام علی خمس....** لاندې تیرشوی دی.[8]

## قوله :: لاتقتلوا الجنان إلا كل أبتر ذي طفيتين....

**یواشکال اود هغې جواب:** ددې حدیث شرح په تیرشوی باب کښې راغلې ده. دتیرشوی باب حدیث الفاظ دا وو. «**اقتلوا ذا الطفيتين والأبتر**» په کوم کښې چه واؤ راغلې وو. ددې نه معلومیږی چه دا دواړه جدا جدا صنف دی خو ددې باب حدیث کښې بغیرد واؤ نه دې د کوم نه چه معلومیږی دا دواړه هم یو صنف دی.
علامه کرمانی رحمه الله ددې اشکال دوه جوابونه ورکړی دی: ① دا واؤ د جمع بین الوصفین دپاره دې دجمع بین الذاتین دپاره نه دې. دغه شان به دحدیث شریف مطلب داشی چه هغه مار وژنئی کوم کښې چه دواړه وصفه موندلې شی. ددې مثال داجمله ده «**مررت بالرجل الكريم والنسمة المباركة**» په دې مثال کښې «**الكريم والنسمة المباركة**» دواړه د رجل وصف دی دغه جدا جدا ذاتونه نه دی چه ددغه بنده تیریدل **الرجل الكريم** سره هم وی او **النسمة المباركة** سره هم.
دغه شان په حدیث باب کښې او ذوالطفیتین نه هم یو ذات مراد دې. ② دې نه علاوه په دې دواړو امورو کښې څه منافات نشته دې چه ددې دواړو صفتونو نه په یوصفت سره متصف دقتل حکم

---

[1] سیر أعلام النبلاء: ۲۵۳/۶.
[2] طبقات ابن سعد: ۲۷۰/۷ إكمال مغلطای: ۲۷۲/۳.
[3] الإكمال: ۲۷۲/۳ تهذيب ابن حجر: ۱۳۰/۲.
[4] الثقات لابن حبان: ۲۳۶/۶.
[5] تهذيب الكمال: ۱۹۵/۵.
[6] سیر أعلام النبلاء: ۲۵٤/۶.
[7] كشف الباری: ۵٤۸/۲.
[8] كشف الباری: ۶۳۷/۱.

ورکړې شوې دې او چه کوم د دواړو صفاتو حامل وی دهغې هم د وژلو حکم وړ کړې شی ځکه چه په دې مار کښې کله دا دواړه صفتونه جمع کیږی او کله نه. والله اعلم بالصواب. [1]
دباب دوولسم حدیث هم د ابن عمر رضی الله عنهما دی.

## الحديث الثاني عشر

[۳۱۳۵]-حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّهُ كَانَ يَقْتُلُ الحَيَّاتِ، فَحَدَّثَهُ أَبُو لُبَابَةَ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ قَتْلِ جِنَّانِ البُيُوتِ، فَأَمْسَكَ عَنْهَا» [ر۳۱۲۳] [2]

## تراجم رجال

**مالك بن اسماعيل:** دا ابوغسان مالك بن اسماعيل بن زياد نهدی کوفی رحمه الله دی. [3]
**جرير بن حازم:** دا ابونصر جرير بن حازم بن زيد ازدی بصری رحمه الله دی. [4]
**نافع:** دا مشهور تابعی محدث حضرت نافع مولى ابن عمر رحمه الله دی. ددوی تفصیلی حالات كتاب العلم **باب ذكر العلم والفتيا في المسجد** په ذیل کښې راغلی دی. [5]
**ابن عمر:** دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی. دد وی تفصیلی حالات **كتاب الإيمان باب قول النبی صلى الله عليه وسلم: بنی الإسلام على خمس....** لاندې تیرشوی دی. [6]
ددې حدیث شرح هم په مخکینی باب کښې تیره شوې ده.
**ترجمة الباب سره مناسبت:** دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما ددواړو روایتونو ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې په دې کښې د مار اودهغه دمختلف انواع ذکر دې او ټول دابه دی.

## ۱۶ -باب: خَمْسٌ مِنَ الدَّوَابِّ فَوَاسِقُ، يُقْتَلْنَ فِي الحَرَمِ

**دترجمة الباب تحليل لغوی، صرفی او نحوی:** باب تنوین سره دې خمس موصوف او فواسق ددې صفت دې. بیا مبتداء خو **يقتلن** فعل مجهول ددې خبر دې. [7]

---

[1] شرح الكرماني: ۲۱۹/۱۳عمدة القاری:۱۹۹/۱۵ شرح القسطلانی: ۳۱۲/۵.
[2] قوله: عن ابن عمر رضى الله عنهما: الحديث، مرتخريجه فى الباب السابق.
[3] ددوی د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب الماء الذی يغسل به شعر الإنسان.
[4] ددوی د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فی المسجد.
[5] كشف البارى: ۶۵۱/٤
[6] كشف البارى: ۶۳۷/۱
[7] عمدة القاری: ۱۹۶/۱۵ شرح القسطلانی: ۳۱۲/۵.

دواب جمع ده د دابه، دب يدب دبيباً د باب ضرب نه د خونيدو په معنى كښې دې مګر ددې اطلاق اوس په زمكه باندې دهر يو تلونكى باندې كيږى بلكه دا لفظ هريوساه والاته شامل دې كه مذكر وى اوكه مؤنث په دې باندې د ټولو مفسرينو اتفاق دې.[1]

فواسق جمع د فاسق ده، د فسق نه مشتق دې د كوم معنى چه خروج ده. فاسق ته هم په دې وجه فاسق وائى چه هغه د الله تعالى د اطاعت نه خارج كيږى.[2] په حديث كښې ذكرشوى پنځو وارو ساه والاته فواسق په دې وجه ونيلى شوى دى چه دا د عصمت اوحفاظت نه خارج دى. د فسادى كيدو د وجې نه د قتل مستحق دى. هر هغه څيز چه طبعاً تكليف وركونكې وى هغه قتل ول شرعاً صحيح دى. چنانچه معلومه شوه چه استحقاق قتل صرف په دې پنځوكښې منحصر نه دې بلكه ددې نه علاوه هم كه چرته يو خناور دتكليف سبب جوړيږى نوهغه به وژلې شى. دلته دعدد څه مفهوم نشته دې.[3] فى الحرم دقيد نه معلوميږى چه غيرحرم كښې دا او هرموذى قتل كول په طريق اولى جائز دى.[4]

دې نه علاوه دا امر هم په ذهن كښې ساتل پكاردى چه دسرخسى په نسخه كښې د ترجمةالباب په الفاظوكښې دا زياتوالې هم دې «إذاوقع الذباب فى شراب أحدكم فليغمسه» ليكن حافظ رحمه الله فرمائى چه دا الفاظ بې محل دى ددې دلته هيڅ معنى نشته دې.[5]

**دترجمة الباب مقصد:** دلته هم د دواب ذكر دې اودتخليق حيوانات خبره روانه ده. بيا ددې باب لاندې امام بخارى رحمه الله شپږ احاديث ذكركړى دى په كوم كښې چه اولنې حديث دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دې.

## الحديث الاول

[۳۳۱٦] - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَمْسٌ فَوَاسِقُ، يُقْتَلْنَ فِي الحَرَمِ: الفَأْرَةُ، وَالعَقْرَبُ، وَالحُدَيَّا، وَالغُرَابُ، وَالكَلْبُ العَقُورُ" [ر۱۷۳۲][6]

---

[1] قال الإمام الفخر الرازى رحمه الله فى تفسيره: قال الزجاج: الدابة اسم لكل حيوان. أن الدابة اسم مأخوذ من الدبيب، وبنيت هذه اللفظة على هاء التأنيث، وأطلق على كل حيوان ذى روح، ذكرا كان أو أنثى، إلا أنه بحسب عرف العرف اختص بالفرس، والمراد بهذا للفظ فى هذه الآية الموضوع الأصلى اللغوى، فيدخل فيه جميع الحيوانات. وهذا متفق عليه بين المفسرين، ولا شك أن أقسام الحيوانات وأنواعها كثيرة، وهى الأجناس التى تكون فى البير والبحر والجبال، والله يحصيها دون غيره، وهو تعالى عالم بكيفية طبائعها، وأعضائها، وأحوالها، وأغذيتها، وسمومها، ومساكنها، وما يوافقها، وما يخالفها، فالإله المدبر لأطباق السماوات والأرضين وطبائع الحيوان والنبات، كيف لا يكون عالما بأحوالها؟" التفسير الكبير للرازى: ۱۴۹-۹/۱۴۸ سورة هود، الآية:۶

[2] شرح نووى: ۳۵۳/۸.

[3] قال الإمام أحمد بن أسماعيل الكورانى رحمه الله: وسمى هذه الخمس فواسق، لخروجها عن العصمة، واستحقت القتل، لأنها مفسدة، والمؤذى طبعا يقتل شرعا، ولذلك يقتل ماسوى هذه من المؤذيات ولا مفهوم للعدد" الكوثر الجارى: ۲۲۳/۶. نوراوګورئى هدايه: ۴۴۱/۴ كتاب الذبائح فصل فيما يحل اكله... وشرح الكرمانى:۱۳/۲۱۸-۲۱۷.

[4] عمدة القارى: ۱۹٦/۱۵ شرح القسطلانى: ۳۱۲/۵.

[5] فتح البارى: ۳۵٦/٦.

[6] قوله: عائشة رضى الله عنها: الحديث، مرتخريجه فى كتاب جزاء الصيد، باب مايقتل المحرم من الدواب.

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي د پنځو ساه والا ځيزونو وينه په حرم كښې هم حلال ده، مږه، لړم، تپوس، كارغه او ليوني سپي.

## تراجم رجال:

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد اسدي بصري رحمه الله دي. ددوی تذكره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې راغلې. (1)

**يزيدبن زريع:** دا يزيد بن زريع تميمي بصري رحمه الله دي. (2)

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدي بصري رحمه الله دي. ددوی تذكره بدء الوحي او كتاب العلم باب كتابة العلم كښې راغلې ده. (3)

**الزهري:** دامحمدبن مسلم ابن شهاب زهري رحمه الله دي. ددوی مختصر تذكره بدء الوحي په دريم حديث كښې او تفصيلي كتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته كښې راغلې ده. (4)

**عروه:** دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دي. ددې دواړو حضراتو تذكره بدء الوحي دويم حديث كښې او اجمالي په كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه كښې تفصيلاً تيره شوي ده. (5)

**عائشة رضي الله عنها:** دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها حالات بدء الوحي دويم حديث لاندې راغلي دي. (6)

داحديث كتاب جزاء الصيد، باب مايقتل المحرم من الدواب كښې هم راغلې دي.

د باب دويم حديث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دي.

## الحديث الثاني

[۳۱۳۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَمْسٌ مِنَ الدَّوَابِّ، مَنْ قَتَلَهُنَّ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِ: العَقْرَبُ، وَالفَأْرَةُ، وَالكَلْبُ العَقُورُ، وَالغُرَابُ، وَالحِدَأَةُ" - [ر۱۷۳۰] (7)

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي پنځه ساه والا ځيزونه دي چه هغه څوك په احرام كښې هم اووژني نو په هغه باندې څه ګناه نشته دې، لړم، مږې، ليوني سپي، كارغه او تپوس.

---

(1) كشف الباري: ۲/۲.

(2) ددوی دحالاتودپاره اوګورئ كتاب الوضوء باب غسل المني وفركه وغسل مايصيب من المرأة.

(3) كشف الباري: ۴۶۵/۱، ۳۲۱/۴.

(4) كشف الباري: ۳۲۶/۱.

(5) كشف الباري: ۲۹۱/۱، ۴۳۶/۲.

(6) كشف الباري: ۲۹۱/۱.

(7) قوله: عن عبدالله...: الحديث، مرتخريجه كتاب الحج باب مايقتل المحرم من الدواب.

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمه:** دا عبدالله بن مسلمه بن قعنبي مدني رحمه الله دي. ددوی تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن په ذيل كښې تيرشوی دی.[1]

**مالک:** دا امام دارالهجرة امام مالک بن انس اصبحی مدني رحمه الله دي. ددوی اجمالی حالات بدء الوحی او تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان کړې شوی دی.[2]

**عبدالله بن دينار:** دا عبدالله بن دينار مولی ابن عمر رحمه الله دي. ددوی حالات اجمالاً «كتاب الإيمان باب امور الإيمان» كښې تيرشوی دی.[3]

**ابن عمر:** دامشهور صحابی حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. ددوی تفصيلی حالات كتاب الإيمان باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام على خمس.... لاندې تيرشوی دی.[4]

د دې حديث شرح كتاب جزاء الصيد، باب مايقتل المحرم من الدواب كښې هم تيره شوې ده.

دباب دريم حديث دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما دی.

## الحديث الثالث

[٣١٣٨]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ كَثِيرٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، رَفَعَهُ، قَالَ: «خَمِّرُوا الآنِيَةَ، وَأَوْكُوا الأَسْقِيَةَ، وَأَجِيفُوا الأَبْوَابَ وَاكْفِتُوا صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ العِشَاءِ، فَإِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَخَطْفَةً، وَأَطْفِئُوا المَصَابِيحَ عِنْدَ الرُّقَادِ، فَإِنَّ الفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا اجْتَرَّتِ الفَتِيلَةَ فَأَحْرَقَتْ أَهْلَ البَيْتِ»، قَالَ: ابْنُ جُرَيْجٍ وَحَبِيبٌ، عَنْ عَطَاءٍ «فَإِنَّ لِلشَّيَاطِينِ» [ر٣١٠٦] [5]

**ترجمه:** دحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه لوښی پټوئی، مشکيزې ترئی، دروازې بندوئی، دماښام نه ماشومان بهر وتلونه منع کړئی ځکه چه د جناتو دپاره (دغه وخت) خوريدل او اوچتول وی. د اوده کيدو په وخت باتئی (چراغونه) مړې کوئی ځکه چه اکثر وختونو کښې مږې باتئی راکاږی دغه شان دکور خلق اوسوزوی.

## تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد اسدی بصری رحمه الله دي. ددوی تذکره كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه لاندې راغلې.[1]

---

[1] كشف البارى: ٨٠/٢.

[2] كشف البارى: ٢٩٠/١، ٩٠/٢.

[3] كشف البارى: ٥٨/١ ونور اوګورئی: ١٣٥/٣.

[4] كشف البارى: ٦٣٧/١

[5] قوله: عن جابر بن عبدالله رضى الله عنهما: الحديث، مرتخريجه قبل أبواب من هذا الكتاب فى صفة إبليس......

**حماد بن زيد:** دا حماد بن زيد بن درهم جهضمي رحمه الله دې. ددوی تذكره كتاب الإيمان باب المعاصی من أمر الجاهلية.... لاندې راغلې ده.[1][2]

**كثير:** دا ابوقرة كثير شنظير – بكسر الشين والظاء المعجمتين، بينهما نون ساكنة [3] مازنی ازدی رحمه الله دې [4]

دې د عطاء، مجاهد، حسن بصری، محمد بن سيرين، انس بن سيرين او يوسف بن الحكم رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كوی. او د دوی نه د حديث روايت كونكو كښې سعيد بن ابی عروبه، حماد بن زيد، عبدالوارث بن سعيد، ابان بن يزيد العطار، حفص بن سليمان، ابوعامر الخزار، عباد بن عباد او بشر بن المفضل رحمهم الله وغيره نه علاوه يو لونی جماعت شامل دې.[5]

دامام احمد بن حنبل رحمه الله خوئی عبد الله رحمه الله وائی چه ما د پلار نه د كثير بن شنظير بابت كښې معلومات اوكړل نو وئې فرمائيل چه صالح سړې دې. بيائې اوفرمائيل خلقو د هغه نه روايات كړی دی او احاديث ئې اخستې دی.[6]

ابن سعد رحمه الله فرمائی «كان ثقة ان شاء الله»[7] ابن عدی رحمه الله فرمائی: «وليس فی حديثه شیء من المنكر، وأحاديثه أرجو أن تكون مستقيمة»[8] امام بزار رحمه الله فرمائی «ليس به بأس»[9] ابوبكر اثرم رحمه الله فرمائی «هو ممن يكتب حديثه ويشتهی»[10] ابن معين رحمه الله فرمائی: صالح.[11] نور فرمائی ثقة.[12] دا خو وو دهغوی تعديل چه ډيرو حضراتو محدثينو هغه معتبر ګرځولې دې خو بل طرف ته په هغوی باندې جرح هم كړې شوې ده او هغه ته او د هغه مرويات ته غير معتبر وئيلی شوی دی:

چنانچه ابن معين رحمه الله فرمائی: «ليس بشیء»[13] ابن حزم رحمه الله فرمائی: «ضعيف جدا»[14] عمرو بن علی رحمه الله وائی چه يحيی بن سعيد رحمه الله د دوی په واسطه سره تحديث نه كولو.[15] ابوزرعه رازی رحمه الله

---

[1] كشف الباری: ٢/٢.

[2] كشف الباری: ٢١٩/٢.

[3] إرشادالساری: ٣١٣/٥ فتح الباری: ٣٥٦/٦ عمدة القاری: ١٩٦/١٥.

[4] تهذيب الكمال: ٢٤/١٢٣-١٢٢ رقم الترجمة: ٤٩٤٥ وحواله جات بالا.

[5] د شيوخ او تلامذه دپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ١٢٣/٢٤.

[6] الجرح والتعديل: ٢٠٧/٧ باب الشين من الكاف رقم: ٨٥٤

[7] الطبقات الكبری: ٢٤٣/٧ وتعليقات تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤.

[8] الكامل لابن عدی: ٧١/٦ رقم: ١٦٠٥.

[9] كشف الأستار: ٢١١/٢ كتاب الحدود باب ماجاء فی المثلة رقم: ١٥٣٧.

[10] تعليقات تهذيب الكمال: ١٢٣/٢٤ ثقات ابن شاهين: ١١٧٧.

[11] تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤.

[12] رواية عثمان بن سعيد الدارمی فی تاريخه رقم: ٧١٨ تعليقات تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤.

[13] تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤ رواية عباس الدوری عنه، تهذيب التهذيب: ٤١٨/٨.

[14] تعليقات تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤ تهذيب التهذيب: ٤١٩/٨.

[15] تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤ تهذيب التهذيب: ٤١٩/٨ كتاب المجروحين: ٢٢٧/٢ رقم: ٨٩٢

فرمائی ((لين))(١) امام نسائی رحمه الله فرمائی: ((ليس بالقوي))(٢) ابن حبان رحمه الله فرمائی: ((كان كثير الخطأ، على قلة روايته، ممن يروي عن المشاهير أشياء مناكير، حتى خرج بها عن حد الاحتجاج، إلا فيما وافق الأثبات))(٣).
يعنى د مرويات د قلت باوجود كثير الخطاوو، دې د هغه خلقونه دې چه د مشاهيرامت نه منكر احاديث نقل كوى. دكوم په وجه چه به دې د حد د احتجاج او استدلال نه هم خارج كيږى البته داخبره ده چه چرته نى د اثبات موافقت كړې وى. لكه څنګه چه تاسو اوكتل چه كثير بن شنظير رحمه الله باره كښې دوه اقوال دى. بعض محدثينوحضراتو كه چرته هغه د اعتماد قابل ګرځولې دې نو بعض نورنى د حديث په روايت كښې ناقابل اعتبار ګرځوى.

**قوله:: فضيل:** د كثير بن شنظير رحمه الله باره كښې علامه ساجى رحمه الله قول هم فيصله كن معلوميږى چه كثير اګرچه څه كمزور دى دددوى باره كښې بعض محدثينو ته اشكال هم دې مګر دې صدوق دې اود خپلې ربښتونولې او صدق د وجې نه ددې خبرې قابل دې چه د هغوى احاديث قبول كړې شى چنانچه فرمائى ((صدوق، وفيه بعض الضعف، ليس بذاك، ويحتمل لصدقه))(٤).
دائمه سته نه امام نسائى رحمه الله نه علاوه نورو پنځو واړو حضراتو دهغوى روايات په خپل خپل كتاب كښې اخستى دى. (٥)امام بخارى رحمه الله دهغوى نه صرف دوه احاديث اخستى دى. يو حديث باب د كوم متابعت چه روايت باب په آخره كښې ابن جريج او حبيب معلم كړې دې. دويم كتاب العمل في الصلاة كښې د كوم متابعت چه په مسلم شريف كښې په طريق د ليث موجود دې.(٦) په دې وجه كم نه كم په امام بخارى رحمه الله باندې خوددې روايت د وجې نه څه اعتراض نه شى كيدې.
**يوه اهم فائده:** امام حاكم رحمه الله فرمائيلى دى چه د يحيى بن معين رحمه الله دا عادت ووكه چرې يو قليل الروايه شيخ يا د محدث دهغوى په وړاندې تذكره كيدله نوكله كله به نى فرمائيل ((ليس بشيء)) مطلب دا چه د دغه صاحب د احاديثو شمير دومره نه دې چه په هغې كښې مشغوليت اختيار كړې شى.(٧)مقصود جرح به نه كيدله. چنانچه دكثير بن شنظير باره كښې د يحيى بن معين رحمه الله ارشاد ((ليس بشيء)) په دې مطلب باندې محمول كول پكاردى خاص كر چه كله دهغه نه دكثير تعديل هم نقل دې لكه څنګه چه اوس تيرشو.
**عطاء:** دا مشهور تابعى محدث حضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب عظة النساء**... كښې تيرشوى دى.(٨)

---

(١) حواله جات بالا، الجرح والتعديل: ٢٠٧/٧ المغنى فى الضعفاء: ٢٢٦/٢ رقم: ٥٠٨٣.
(٢) تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤ تهذيب ابن حجر: ٤١٩/٨ والضعفاء والمتروكين: ١٨٨ رقم: ٥٣٣ باب الكاف.
(٣) كتاب المجروحين: ٢٢٧/٢ رقم: ٨٩٢ تعليقات تهذيب الكمال: ١٢٤/٢٤.
(٤) هدى السارى: ٦٠٩ حرف الكاف، من الفصل التاسع، وتهذيب التهذيب: ٤١٩/٨.
(٥) حواله جاب بالا، تهذيب الكمال: ١٢٥/٢٤.
(٦) صحيح البخارى كتاب العمل فى الصلاة، باب لا يرد السلام فى الصلاة رقم: ١٢١٧ ومسلم كتاب المساجد باب تحريم الكلام فى الصلاة رقم: ٥٤٠.
(٧) فتح البارى: ٣٥٦/٦ تهذيب التهذيب: ٤١٩/٨ عمدة القارى: ١٩٦/١٥.
(٨) كشف البارى: ٣٧/٤.

**جابربن عبدالله الانصاري:** دا مشهور محدث حضرت جابر بن عبدالله انصاري رضي الله عنه دې. (۱)

**قوله: عن جابربن عبدالله رضي الله عنهما رفعه:** دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه مرفوع روایت دې. علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه رفعه په دې وجه اوفرمائیلې شو چه رفع عام ده. چه واسطه سره وي یا بغیرد واسطې وي بل عام ده. روایت د حدیث سره مقارن ومتصل ده یا نه ده؟ چنانچه رفعه فرمائیلو سره دې طرف ته اشاره اوکړه چه دلته رفع بغیرد واسطې روایت دحدیث سره متصل اومقارن ده. (۲)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي د اسماعیلي په نسخه کښې د حمادبن زید رحمه الله نه روایت په دوو طریقو سره نقل دې او په دواړو کښې **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم** تصریح ده. «د رفعه الفاظ نشته دې». (۳)

ددې حدیث شریف شرح چونکه مخکښې شوې ده په دې وجه صرف په ترجمه باندې اکتفا کولې شي. (۴)

په دې روایت کښې «**ولکفتوا صبیانکم عند العشاء**» راغلې دې چه دماسخوتن په وخت یعنې د شپې خپل ماشومان د کورونو نه بهر وتلونه منع کوئی خوددې حدیث په نورو طرق (۵) کښې داسې الفاظ راغلی دی چه د مساء یعنی ماښام په معنی دلالت کوی په دې وجه مونږ په ترجمه کښې د ماښام وخت ذکرکړې دې. په حدیث باب او نورو طرق کښې هیڅ منافات نشته دې. دلته د ماښام آخری وخت او ددې طرق نه د شروع وخت مراد دې. والله اعلم.

**قوله: قال ابن جریج وحبیب عن عطاء: فإن الشیطان:** ابن جریج رحمه الله اوحبیب معلم عطاء نه «**فإن الشیطان.....**» الفاظ نقل کړی دی.

**دمتابعت مقصد:** ددې متابعت مقصد دحضرت عطاء په شاګردانو کښې د باب روایت نقل کولو کښې کوم لفظی اختلاف شوې دې هغه واضح کول دی. چنانچه فرمائی چه د کثیر په روایت کښې د جن (جنات) لفظ دې خو ابن جریج رحمه الله او حبیب معلم رحمه الله د شیطان الفاظ نقل کړی دی. په اصل کښې دالفظی اختلاف دې په حقیقت کښې هیڅ تضاد نشته دې. ځکه چه کیدې شی دا دواړه صنف هغه وخت اخوا دیخوا خورېږی جنات هم اوشیطانان هم. داد علامه کرمانی رحمه الله جواب دې. بعض علماء حضرات فرمائی چه د جن او شیطان دواړو حقیقت هم یو دې په دوی کښې فرق صرف صفات او عادات په بنیاد باندې دې. په دې وجه څه تضاد نشته دې. والله اعلم. (۶)

---

۱) دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین.

۲) شرح الکرمانی: ۲۱۸/۱۳شرح القسطلانی: ۳۱۳/۵عمدة القاری: ۱۹۶/۱۵.

۳) فتح الباری: ۳۵۶/۶شرح القسطلانی: ۳۱۳/۵.

۴) کشف الباری کتاب الأشربة باب تغطیة الإناء: ۴۳۷کتاب الاستئذان باب لا تترک النار، وباب غلق الأبواب: ر: ۱۴۱، ۱۴۴.

۵) صحیح البخاری کتاب الأشربة باب تغطیة الإناء رقم: ۵۶۲۳وکتاب بدء الخلق باب صفة إبلیس..... رقم: ۳۲۸۰.

۶) شرح الکرمانی: ۲۱۹/۱۳عمدة القاری: ۱۹۷/۱۵إرشادالساری: ۳۱۳/۱۵الکوثرالجاری: ۲۲۴/۶.

**دمذكوره متابعاتو موصولاً تخريج:** ابن جريج عبدالملك بن عبدالعزيز رحمه الله[1] د متابعت موصولاً تخريج امام بخارى رحمه الله د تيرشوى باب په شروع كښې كړې دې. اود حبيب معلم رحمه الله[2] د متابعت موصولاً تخريج ابويعلى موصلى رحمه الله[3] ابن حبان رحمه الله[4] اوامام احمد رحمه الله[5] خپل خپل كتاب كښې د حماد بن سلمه رحمه الله په طريق سره ذكر كړې دې[6]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** ترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت «فإن الفويسقة ربما......» كښې دې.

دباب څلورم حديث دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې.

## الحديث الرابع

[٣١٣٩] - حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَارٍ، فَنَزَلَتْ {وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا} [المرسلات: ١] فَإِنَّا لَنَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيهِ، إِذْ خَرَجَتْ حَيَّةٌ مِنْ جُحْرِهَا، فَابْتَدَرْنَاهَا لِنَقْتُلَهَا، فَسَبَقَتْنَا فَدَخَلَتْ جُحْرَهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيتُمْ شَرَّهَا» وَعَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ مِثْلَهُ، قَالَ: وَإِنَّا لَنَتَلَقَّاهَا [ص: ١٣٠] مِنْ فِيهِ رَطْبَةً وَتَابَعَهُ أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مُغِيرَةَ، وَقَالَ: حَفْصٌ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ [ر ١٨٣٣][7]

## تراجم رجال

**عبدة بن عبدالله:** دا ابوسهل عبدة بن عبدالله خزاعى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم باب من أعاد الحديث ثلاثة ليفهم عنه لاندې تيرشوى دى.[8]

**يحيى بن ادم:** دا يحيى بن آدم بن سليمان قرشى مخزومى رحمه الله دې.[9]

---

[1] دعبدالملك بن عبدالعزيز رحمه الله د حالاتو دپاره اوګورئ كشف البارى: كتاب الحيض: ٤١٢.

[2] د حبيب معلم رحمه الله د حالاتو دپاره اوګورئ كتاب الحج باب الطواف بعد الصبح والعصر.

[3] ١٨٤/٢ رقم: ١٧٦٥. امام بخارى رحمه الله الأدب المفرد: ٦٣٣-٢/٦٣٤ باب ضم الصبيان عند فورة العشاء رقم: ١٢٣١.

[4] ٣/ ٢٣٠ كتاب الطهارة باب الماء المستعمل ذكر العلة التى من أجلها...... رقم: ١٢٧٣.

[5] مسندأحمد: ٣٦٢/٣ رقم: ١٤٩٥٩.

[6] فتح البارى: ٣٥٧/٦ عمدة القارى: ١٩٧/١٥ شرح القسطلانى: ٣١٣/٥ تغليق التعليق: ٥٢٠/٣.

[7] قوله: عن عبدالله رضى الله عنه: الحديث، مرتخريجه كتاب جزاء الصيد باب مايقتل المحرم من الدواب.

[8] كشف البارى: ٥٧٦/٣.

[9] ددوى دحالاتو دپاره اوګورئ كتاب الغسل، باب الغسل بالصاع وغيره.

**اسرائیل**: دا مشهور محدث اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق سبیعی همدانی کوفی رحمه الله دې. ددوی حالات **کتاب العلم باب من ترک بعض الاختیار مخافة...**، لاندې بیان کړی شوی دی.[1]

**منصور**: دامنصور بن معتمر سلمی ابوعتاب کوفی رحمه الله دې. ددې دریوارو محدثینو حضراتو تفصیلی تذکره **کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أیاما معلومة** لاندې تیره شوې ده.[2]

**ابراهیم**: **ابراهیم**: دا مشهور فقیه ابو عمران ابراهیم بن یزید نخعی کوفی رحمه الله دې.

**علقمه**: دا د ابن مسعود رضی الله عنه مشهور شاګرد حضرت علقمه بن قیس نخعی کوفی رحمه الله دې.

**عبدالله**: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې. ددې ځلورو واړو بزرګانو تفصیلی تذکره **کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم** کښې راغلې.[3]

**قوله: قال: کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فی غار، فنزلت ﴿وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا﴾**

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په غار کښې وو چه دغه وخت سورت والمرسلات نازل شو.

په دې حدیث کښې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د هجرت نه وړاندې ښکاره کیدونکې یو واقعه بیانوی. په دې کښې چه دکوم غار تذکره ده هغه منی کښې وو. لکه چه کتاب الحج کښې ددې صراحت راغلې دې.[4]

**قوله: فإنا لنتلقاها من فیه، إذ خرجت حیة من جحرها**: نومونږ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مبارکې خلې نه (اوریدو سره) یادول چه یو مار د خپلې سوړې نه راؤوتلو.

**قوله: لنتلقاها**: تلقی نه مشتق دې دکوم معنی چه قبلول یادول او حاصلول وغیره ده.[5] **فیه**، په حالت جری کښې دې چونکه **من** جاره دې ددې اصل **فوه** دې یعنی **فم** (خله). ((**جحرها بتقدیم الجیم المضمومة علی الهاء المهملة الساکنة**)) سوړې ته وائی. ددې جمع **أجحار** ده.[6]

**قوله: فابتدرناها لنقتلها، فسبقتنا، فدخلت جحرها، فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: وقیت شرکم، کما وقیتم شرها**: چنانچه مونږ دهغه د وژلو دپاره دهغه طرف ته ورمنډه کړه مګر هغه زمونږ نه مخکښې اووتلو او په خپله سوړه کښې ننوتلو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه ستاسو د شر نه محفوظ پاتې شو لکه څنګه چه تاسو خلق د هغه د شر نه محفوظ پاتې شوئی.

---

[1] کشف الباری: ٥٤٦/٤.

[2] کشف الباری: ٣/ ٢٧٠-٢٦٦.

[3] کشف الباری: ٢/ ٢٥٣-٢٥٧.

[4] صحیح البخاری کتاب الحج باب ما یقتل المحرم من الدواب رقم: ١٨٣٠.

[5] الکوثر الجاری: ٢٢٥/٦ القاموس الوحید، مادة: لقی.

[6] إرشاد الساری: ٥/ ٣١٤-٣١٣.

وقمت، او وقمتم دواړه مجهول صيغې دی. وقاية مصدر نه په معنی دحفاظت او لفظ شر دواړو خايونوكښې منصوب على المفعولية دې.[1]

**يواشكال اودهغې جواب:** اشكال دادې چه مار وژل خو د ثواب كاردې اوهم خير اوخير دې مگر حضورپاك دا په شر سره تعبيركړو داولې؟ددې جواب دادې چه خير اوشر دامور اضافيه نه دی. د مار وژل خودهغه صحابه كرامو د پاره د خير عمل وو مگر د دغه مار د پاره تبول شر وو هغه وژلې كيدو نودهغه مار رعايت كولوسره ئې قتل ته شر اووئيل.[2]

**قوله: وعن إسرائيل عن الأعمش عن إبراهيم عن علقمة عن عبدالله......مثله**

**دمذكوره تعليق مقصد:** دلته دا اوخودلې شو چه يحی بن آدم رحمه الله دا وانی چه اسرائيل بن يونس رحمه الله لكه چه روايت باب منصور عن ابراهيم په طريق سره نقل كړې دې دغه شان سليمان الاعمش عن ابراهيم په طريق سره هم روايت كړې دې. لكه چه دا اوخودلې شو چه دا روايت هم د ابراهيم رحمه الله دې په دې كښې هيڅ اختلاف نشته دې.[3]

**دَ مذكوره تعليق تخريج:** دلته دوه احتماله دی. ① پورتنې عبارت عطف دې اود حديث د سند لاندې داخل دې نوځكه خوددې د تخريج ضرورت نشته دې. دغه شان به موصول بالسند السابق وی ② پورتنې عبارت تعليق دې نودا تعليق موصولاً ابونعيم رحمه الله مستخرج كښې «**يحيى بن آدم عن إسرائيل عن منصوروالأعمش معاً**» په طريق سره ذكركړې دې.[4]

**قوله: قال: وإنا لنتلقاها من فيه رطبة** ابن مسعود رضي الله عنه فرمانی چه د نبی كريم صلی الله عليه وسلم مباركه ژبه ددې آياتونو په تلاوت سره اوچه شوې نه وه چه مونږ هغه ته ياد كړل.

شارحينو حضراتو ددې جملې دوه مطالب ليكلی دی ① رطبة تازه كهجورې ته وانی دلته د نبی عليه السلام د سورة المرسلات نازليدونه پس، اولنې او د شروع تلاوت ته سهولت او آسانتی كښې رطبة سره تعبيركړې شوې دې. لكه څنگه چه تازه كهجورې يا ميوې خوراك آسان وی. په دې صورت كښې به مطلب داشی چه مونږ د نبی عليه السلام دخلې مباركې نه د تازه كلام اوريدو سره يادول ② رطبة نه رطوبت فم يعنی توكانړې مراد دې او مطلب دادې چه ددې آياتونو د نازليدلونه پس حضورپاك ددې په تلاوت كښې مشغول شو. تردغه وخت پورې دحضورپاك په خله مباركه كښې توكانړې اوچې شوې هم نه وې چه مونږ دا آياتونه ياد كړل چنانچه دا سرعت د اخذ نه كنايه ده. هم دغه دويمه معنی او مطلب راجح دې.[5]

---

[1]) عمدة القاری: ۱۹۷/۱۵ إرشاد الساری: ۳۱٤/۵.

[2]) عمدة القاری: ۱۹۷/۱۵ الكوثر الجاری: ۲۲۵/۶.

[3]) عمدة القاری: ۱۹۸/۱۵-۱۹۷ فتح الباری: ۳۵۷/۶.

[4]) الكوثر الجاری: ۲۲۵/۶ تغليق التعليق: ۵۲۱/۳.

[5]) فتح الباری: ۳۵۷/۶ شرح الكرمانی: ۲۱۹/۱۳.

دكتاب الحج روايت هم په دې باندې دال دې چرته چه دا الفاظ دى: «وإن فاه لرطب بها» [١] علامه عينى رحمه الله فرمائى: «قوله: "رطبة" أي غضة طرية في أول ما تلاها، ووصفت التلاوة بالرطوبة لسهولتها، ويحتمل أن يكون المراد من الرطوبة: رطوبة فمه، يعني: إنهم أخذوها عنه قبل أن يجف عرقه من تلاوتها، كذا قاله الشراح. (قلت) هذا كناية عن سرعة أخذهم على الفور حين سمعوه، وهو يقرأ، من غير تأخير ولا توان» [٢]

**قوله: وتابعه أبو عوانة عن مغيرة:** او ابوعوانه رحمه الله د مغيره رحمه الله نه روايت كولو سره د اسرائيل متابعت كړې دې. د ابوعوانه رحمه الله نه وضاح يشكرى [٣] اومغيره رحمه الله نه ابن مقسم رحمه الله [٤] مراد دى.

**د مذكوره متابعت مقصد:** په دې متابعت سره بيان كړې شوى دى چه مغيره بن مقسم رحمه الله هم د اسرائيل په دې امر كښې موافقت كړې دې چه د ابراهيم بن يزيد رحمه الله شيخ علقمه رحمه الله دې. [٥]

**د مذكوره متابعت تخريج:** د ابوعوانه رحمه الله دا متابعت موصولاً امام بخارى رحمه الله كتاب التفسير كښې سورة المرسلات په تفسير كښې ذكر كړې دې. [٦] دې نه علاوه دا متابعت امام طبرانى رحمه الله [٧] هم موصولاً ذكر كړې دې. [٨]

**قوله: وقال حفص وأبو معاوية وسليمان بن قرم عن الأعمش، عن إبراهيم عن الأسود عن عبدالله.**

**دمذكوره بالا تعليق مقصد:** پورته چه كوم طريق تيرشوې دې په هغې كښې اسرائيل عن الأعمش عن ابراهيم عن علقمه عن عبدالله په سندسره د باب روايت نقل كولو. په دې طريق كښې د ابراهيم شيخ علقمه كرخولې شوې وو خو امام بخارى رحمه الله دلته دا فرمائى چه دې دريوارو محدثينو حضراتو حفص، ابومعاويه اوسليمان بن قرم رحمهم الله د اسرائيل مخالفت كړې دې چه اعمش عن ابراهيم په طريق كښې اسرائيل دعلقمه شيخ ابراهيم وئيلې وو. خو دا دريوار ه حضرات فرمائى چه د ابراهيم شيخ اسود بن يزيد دې علقمه نه دې. حافظ رحمه الله فرمائى چه جرير بن عبد الحميد ضبى هم ددې دريوارو حضراتو موافقت كړې دې. [٩]

**د مذكوره تعليقاتو موصولاً تخريج:** ① دحفص بن غياث رحمه الله روايت مسنداً امام بخارى رحمه الله كتاب الحج او كتاب التفسير كښې ذكر كړې دې. [١٠]

---

[١] صحيح البخارى كتاب الحج باب مايقتل المحرم من الدواب رقم: ١٨٣٠.

[٢] عمدة القارى: ١٥/١٩٨.

[٣] ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كشف البارى: ١/٤٣٤.

[٤] ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الصوم، باب صوم يوم وإفطار يوم.

[٥] فتح البارى: ٨/٦٨٧ كتاب التفسير سورة والمرسلات (باب بلاترجمة)

[٦] صحيح البخارى كتاب التفسير سورة والمرسلات رقم: ٤٩٣١.

[٧] المعجم الكبير للطبرانى: ١٠/١١٩ رقم: ١٠١٥٨ الاختلاف عن الأعمش فى حديث عبدالله.

[٨] فتح البارى: ٨/٦٨٧ كتاب التفسير وعمدة القارى: ١٥/١٩٨.

[٩] حواله جات بالا وإرشادالسارى: ٥/٣١٤.

[١٠] كتاب الحج باب مايقتل المحرم من الدواب رقم: ١٨٣٠ وكتاب التفسير باب قوله: ﴿هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ﴾ رقم: ٤٩٣٤.

② دابومعاويه ضرير رحمه الله حديث امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې اوامام مسلم رحمه الله خپل صحيح کښې موصولاً ذکر کړی دی.[1]

③ سليمان بن قرم رحمه الله د روايت باره کښې حافظ رحمه الله خودا فرمائيلی دی چه دا روايت موصولاً چرته راغلې دې ماته نه ده معلومه.[2]

خو عينی رحمه الله دا دعوی کړې ده چه د سليمان روايت موصوله فتوح کښې موجود دې.[3]

**دَ بحث خلاصه**: ددې ټولو تعليقاتو او متابعاتو خلاصه دا شوه چه دباب دا روايت دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دوو جليل القدر شاګردانو علقمه رحمه الله او اسود بن يزيد رحمه الله دواړو نه نقل دې. کله د يو نه روايت شوې او کله دبل نه. والله اعلم.

**وقال حفص وأبومعاوية وسليمان بن قرم......**

## تراجم رجال

**حفص**: دا حفص بن غياث رحمه الله دې. ددوی حالات **كتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق في الجنابة** په ضمن کښې راغلی دی.[4]

**ابومعاويه**: دابومعويه محمد بن حازم ضرير رحمه الله دې. ددوی تذکره **كتاب العلم باب الحياء في العلم** لاندې تيره شوې ده.[5]

**سليمان بن قرم**: دا ابوداؤد سليمان بن قرم بن معاذ تميمی ضبی رحمه الله دې. بعض حضراتو د نيکه طرف ته منسوب کولوسره سليمان بن معاذ هم وئيلې دې.[6]

دې د ابواسحاق سبيعی، ابويحيی قتات، عطاء بن سائب، ابن المنکدر، اعمش، سماك بن حرب، عاصم بن بهدلة رحمهم الله وغيره نه روايت کوی. ددوی نه روايت کونکو کښې سفيان ثوری (**وهومن أقرانه**)، ابوالجواب، حسين بن محمد مروزی، يعقوب بن اسحاق حضرمی، يونس بن محمد مؤدب، ابوالاحوص، بکر بن عياش او ابوداؤد طيالسی رحمهم الله وغيره شامل دی.[7]

عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله وائی:

**((كان أبي يتبع حديث قطبة بن عبد العزيز وسليمان بن قرم ويزيد بن عبد العزيز بن سياه، وقال: هؤلاء قوم ثقات، وهم أتم حديثا من سفيان وشعبة، وهم أصحاب كتب، وإن كان سفيان وشعبة أحفظ منهم))**[8]

---

[1] مسندالإمام أحمد،مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه: ۴۵۶/۱رقم:۴۳۵۷وصحيح مسلم كتاب السلام باب قتل الحيات وغيرها. رقم: ۵۸۲۴

[2] فتح البارى: ۳۵۷/۶إرشادالسارى: ۳۱۴/۵هدى السارى: ۴۹.

[3] عمدة القارى: ۱۹۸/۱۵دَ نور تفصيل دَپاره اوګورئی فتح البارى: ۶۸۷/۸كتاب التفسير وتحفة الأشراف بمعرفة الأطراف: ۵/۷ رقم: ۹۱۶۳و ۱۰۳/۷ رقم: ۹۴۳۰مسندعبدالله بن مسعود رضى الله عنه.

[4] كشف البارى:۴۶۷.

[5] كشف البارى: ۶۰۵/۴

[6] تهذيب الكمال: ۵۱/۱۲رقم الترجمة: ۵۵۵تهذيب ابن حجر: ۲۱۳/۴إكمال مغلطاى:۸۱/۶

[7] دَ شيوخ اوتلامذه دتفصيل دَپاره اوګورئی تهذيب الكمال: ۱۲/۵۲-۵۱

[8] تهذيب الكمال:۱۲/۵۳-۵۲تهذيب التهذيب: ۲۱۳/۴.

یعنی زما والد صاحب به د قطبه سلیمان او یزید احادیث لتول اوفرمائیل به نی چه دا ټول ثقه خلق دی. د سفیان او شعبه په مقابله کښې دهغوی حدیثونه زیات مکمل اوتام دی اوهغوی سره کتابونه هم دی. اګرچه شعبه او سفیان د دې خلقو په نسبت د زیات یاداشت اوحافظه مالکان دی.

لیکن دې سره د امام احمد رحمه الله نه دا هم نقل دی: «لا أري به بأسا، ولكنه كان يفرط في التشيع»[1] د شیعیت په معامله کښې خان خوښی وو. یحیی بن معین رحمه الله فرمانی ضعیف.[2] نور فرمانی: «ليس بشيء»[3] امام ابوزرعه رحمه الله فرمانی «ليس بذاك»[4] امام ابوحاتم رحمه الله فرمانی: «ليس بالمتين»[5] امام نسائی رحمه الله فرمائي: ضعیف[6]

ابن عدی رحمه الله د سلیمان بن قرم رحمه الله داهل بیت فضائل وغیره باندې یوڅو روایات نقل کړی دی دې نه پس ئې په سلیمان باندې تبصره کولوسره لیکلی دی: «وله أحاديث حسان إفرادات، وهو خير من سليمان بن أرقم بكثير، وتدل صورة سليمان هذا على أنه مفرط في التشيع»[7]

یعنی چه ښکلې احادیث کوم چه د افراد د قبیل نه دی هغه سره دی. هغه دسلیمان بن ارقم نه ډېر درجې بهتر دې. خو د سلیمان د مخ د سهرې نه هم دغه معلومیږی چه غالی شیعه دې.

**یوشخصیت اودوه نومونه:** حافظ ابن عدی رحمه الله د سلیمان بن قرم ضبی او سلیمان بن معاذ ضبی چه د سماک بن حرب، عطاء بن سائب اوابواسحاق رحمهم الله نه روایت کوی اودهغوی نه امام ابوداؤد طیالسی رحمه الله روایت کوی، په مینځ کښې تفریق کړې دې اوفرمائیلی دی چه دوه جدا جدا شخصیات دی دواړه یو نه دی. ددوی خیال دادې چه دا سلیمان بن معاذ رحمه الله بصری دې. حافظ ابن عدی رحمه الله نور فرمانی چه سلیمان بن معاذ رحمه الله نیک نام راوی دې.

د متقدمین نه د چاکلام دهغوی باره کښې ما نه دې لیدلې دهغوی روایت کړې شوی احادیث هم صحیح دی. البته بعض منکر روایتونه ئې هم دی.[8]

**مغالطه چاته شوې ده؟** په اصل کښې دلته امام بخاری رحمه الله ته مغالطه شوې ده.[9] هم هغوی د ټولو نه اول دې دواړو کښې فرق بیان کړې دې. بیا دهغوی په اتباع کښې ابن حبان رحمه الله[10] ابن عدی، عقیلی رحمه الله[11] او ابن القطان رحمه الله د سلیمان بن قرم بن معاذ اوسلیمان بن معاذ په مینځ کښې د فرق

---

[1] الضعفاء الكبير للعقيلي: ۱۳۷/۲رقم الترجمة: ۶۲۵تهذيب الكمال: ۵۳/۱۲.

[2] رواية عباس الدوري عنه في تاريخه: ۲۳۴/۲.

[3] تهذيب الكمال: ۵۳/۱۲والجرح والتعديل: ۱۳۲/۴رقم: ۵۹۷/۵۷۱۶تهذيب التهذيب: ۲۱۳/۴.

[4] حواله جات بالا.

[5] حواله جات بالا والمغني في الضعفاء: ۴۴۲/۱رقم: ۲۶۱۳.

[6] تهذيب الكمال: ۵۳/۱۲تهذيب التهذيب: ۲۱۳/۴.

[7] حواله بالا والكامل لابن عدي: ۲۵۷/۳(ملخصًا) رقم: ۷۳۵/۳.

[8] الكامل: ۲۷۴/۳-۲۷۳رقم: ۷۴۵/۱۳تهذيب التهذيب: ۲۱۴/۴تهذيب الكمال: ۵۴/۱۲.

[9] التاريخ الكبير: ۳۲/۳/۳رقم: ۱۸۷۱باب القاف من السين، ۳۹/۲/۲رقم: ۱۸۹۴باب الميم.

[10] قال ابن حبان في ابن قرم: كان رافضيا غاليا في الرفض، ويقلب الأخبار مع ذلك. المجروحين له: ۴۱۸/۱رقم: ۴۰۹وقال في ابن معاذ: شيخ من أهل البصرة... يخالف الثقات في الأخبار. المجروحين له: ۴۱۹/۱رقم: ۴۱۲.

[11] الضعفاء الكبير للعقيلي: ۱۳۶/۲.

قول ذكر كړي دي.(1)

**حقيقت څه دي؟**: حقيقت دادې چه دواړه هم د يوكس نومونه دى. هم سليمان بن معاذ سليمان بن قرم دې. ډيرزيات محدثين حضرات او ائمه اسماء الرجال ددې تصريح كړې ده. لكه امام ابوحاتم (2) امام عبدالغنى بن سعيد مصرى، حافظ دارقطنى (3) حافظ لالكائى (4) امام طبرانى (5) اوامام ابن عقده (6) رحمهم الله وغيره (7) حافظ عبدالغنى بن سعيد رحمه الله خپل تصنيف ايضاح الاشكال كښې فرمائى: «إن من فرق بينهما فقد أخطأ». (8)

**دا مغالطه ولې اوشوه؟**: په اصل كښې امام ابوداؤد طيالسى رحمه الله د سليمان بن قرم رحمه الله دتلامذه نه دې. ليكن چه كله دهغوى نه روايت كوى نود ابن قرم په ځائې باندې ابن معاذ وائى. اوس هغه داسې ولې كوى نوحقيقت خو صرف هم الله تعالى ته معلوم دې. خو حافظ ابو حاتم رازى رحمه الله د دې وجه دا ليكلې ده چه خلقو ته پته اونه لګى چه دا شيخ مجروح دې. (9) او ابن عقده رحمه الله داعمل د امام ابوداؤد طيالسى رحمه الله غلطى اوتسامح ګرځولې دې. (10)

بهر خال د امام طيالسى رحمه الله په دې عمل سره دغه محدثينو حضراتو ته مغالطه اوشوه چا چه دا دواړه (سليمان بن قرم او سليمان بن معاذ) په مينځ كښې فرق كړې دې او دا ئې ګڼړلې دى چه د طيالسى والابل يو راوى دې ابن قرم نه دې. والله اعلم.

**د بحث خلاصه**: ددې ټول بحث خلاصه دا ده چه سليمان بن قرم ضعيف راوى دې خو امام بخارى رحمه الله د متابعت په توګه دهغه نه صرف هم دا يوحديث روايت كړې دې. هغه هم تعليقاً نه چه اصالةً. څكه چه دومره مضر نه دې. په نورو حضراتو كښې امام ابن ماجه رحمه الله نه علاوه څلورو واړو حضراتو ددوى روايات قبول كړى دى.(11)

**اعمش**: دامشهورمحدث ابومحمدسليمان بن مهران اسدى الاعمش رحمه الله دې. ددوى حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيرشوى دى. (12)

---

(1) تعليقات تهذيب الكمال: ٥٤/١٢تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤.

(2) الجرح والتعديل: ١٣٢/٤.

(3) تعليقات الدارقطنى على المجروحين وإكمال مغلطاى: ٨١/٦

(4) تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤ولاإكمال للمغلطاى: ٨١/٦تعليقات تهذيب الكمال: ٥٤/١٢.

(5) تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤ تعليقات تهذيب الكمال: ٥١/١٢.

(6) تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤.

(7) تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤وإكمال للمغلطاى: ٨١/٦وتعليقات تهذيب الكمال: ٥٤/١٢.

(8) حواله جات بالا.

(9) حواله جات بالا والجرح والتعديل: ١٣٢/٤.

(10) تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤.

(11) وذكره الحاكم فى باب من عيب على مسلم إخراج حديثهم، وقال: غمزوه بالغلو فى التشيع، وسوء الحفظ. تهذيب ابن حجر: ٢١٤/٤وإكمال للمغلطاى: ٨٢/٦ تهذيب الكمال: ٥٤/١٣ هدى السارى:٤٤٣فصل فى سياق من علق البخارى شيئا..

(12) اوګورنى: كشف البارى:٢٥١/٢.

**ابراهيم:** دا مشهور فقيه ابو عمران ابراهيم بن يزيد نخعي كوفي رحمه الله دي. «دحديث مسند سند اوګورئ»

**الاسود:** دا اسود بن يزيد نخعي كوفي رحمه الله دي. د دوى حالات كتاب العلم باب من ترك بعض الأخيار مخافة.... لاندي تيرشوى دى.

**عبدالله:** دا مشهور صحابى حضرت عبد الله بن مسعو رضي الله عنه دي. «دَ حديث مسند سند اوګورئ»

**دحديث نه مستنبط بعض فوائد:** ددې حديث نه معلومه شوه چه مار په حرم كښې وژل جائز دى. بل دا هم معلومه شوه چه مار د هغه سورې ته په ورننوتلوسره هم وژلې كيدې شى.[1]

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت په دې معنى دې چه مار هم موذى خناور دې اود باب په شروع كښې دا تصريح راغلى ده چه د فواسق قتل په پنځو ساه والا خناوروكښې منحصر نه دې بلكه هر هغه ساه والا خناور كوم چه موذى وى دهغه وژل جائز دى. چنانچه مار هم موذى دې لهذا دده وژل هم جائز دى.

دباب پنځم حديث دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دى.

## الحديث الخامس

[۳۱۴۰] -حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «دَخَلَتِ امْرَأَةٌ النَّارَ فِي هِرَّةٍ رَبَطَتْهَا، فَلَمْ تُطْعِمْهَا، وَلَمْ تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الأَرْضِ» قَالَ: وَحَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ-[ر۲۲۳۶] [2]

## تراجم رجال

**نصربن علي:** دا ابوعمرو نصر بن على بن نصر بن على بن صهبان بن أبي أزدى، جهضمى بصرى رحمه الله دې. دده د نيكه نوم هم نصربن على دې. [3] په دې وجه نيكه ته نى نصر بن على الكبير او صاحب ترجمه ته الصغير سره جدا كړې دې. [4]

د ۱۶۰ هجرى نه پس پيداشوې. د كبار محدثينو نه وو. حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «الحافظ العلامة الثقة».[5]

دې د يزيد بن زريع، معتمر بن سليمان، نوح بن قيس الحرانى، عبدربه بن بارق، يحيى بن ابى زائده، عبد الاعلى بن عبد الاعلى، سفيان بن عيينه، درست بن زياد، بشر بن المفضل، حارث بن

---

[1] فتح البارى: ۳۵۷/۶.

[2] قوله: عن ابن عمر رضى الله عنهما: الحديث، مرتخريجه فى كتاب المساقاة، باب فضل سقى الماء.

[3] دې هم د كبار محدثينونه دې اوګورئ تهذيب الكمال: ۳۵۴/۲۹سير أعلام النبلاء: ۱۳۶/۱۲.

[4] تهذيب الكمال: ۳۵۵/۲۹رقم: ۶۴۰۶سير أعلام النبلاء: ۱۳۳/۱۲تهذيب التهذيب: ۴۳۰/۱۰رقم: ۷۸۰.

[5] سير أعلام النبلاء: ۱۳۳/۱۲أيضا الكاشف: ۱۸۷/۳رقم: ۵۸۹۶.

جبير، عبدالعزيز دراوردی، عمر بن علی، ابن علیه عیسی بن یونس رحمهم الله په شان اساطین علم حدیث نه روایت کوی. اود ده نه ائمه سته، بل ابوزرعه، ابوحاتم، ذهلی، بقی بن مخلد، عبدالله بن احمد، عبدان الاهوزی، اسماعیل قاضی، ابن ابی الدنیا، ابن خزیمه، عبدالله بن محمدبن یاسین، قاسم بن زکریا مطرز، محمدبن محمدبن سلیمان باغندی، ابوبکر بن ابی داؤد، ابوالقاسم، ابوحامد حضرمی او یحیی بن محمدبن صاعد رحمهم الله وغیره نه دحدیث روایت کوی.[1]

امام احمدبن حنبل رحمه الله نه روایت دې: «مابه بأس، ورضيه»[2] ابن حاتم رحمه الله فرمائی ثقة.[3] امام نسائی رحمه الله او ابن خراش رحمه الله فرمائی ثقة.[4] عبدالله بن محمد فرهیانی رحمه الله فرمائی: «نصر عندي من نبلاء الناس»[5] خشنی رحمه الله فرمائی: «ماكتبت بالبصرة عن أحد أعقل من نصر بن علي»[6] چه په بصره کښې ما د چانه حدیث نه دې لیکلې چه د نصر بن علی نه زیات عاقل او هوښیار وی. بهرحال نصر بن علی رحمه الله متفق علیه اوثقه دې. مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائی: «هو ثقة عند جميعهم»[7]

**دَ قضاپیشکش اوډ نصربن علي رحمه الله ردعمل:** حافظ ابوبکر بن ابی داؤد رحمه الله فرمائی چه عباسی خلیفه مستعین بالله د قضاد پیشکش سره خپل قاصد امام نصر بن علی رحمه الله ته اولیګلو اوددې دپاره ئې دهغوی تعین اوکړو. چنانچه امیر بصره عبدالملك هغه راؤغوښتلو اوددې عهدې قبلولو حکم ئې ورته ورکړو. نصر بن علی رحمه الله اوفرمائیل زه کور ته ځم استخاره کول غواړم. دې وینا کولو سره هغه دامیر نه په غرمه کښې واپس شو. کورته راغلو دوه رکعته مونځ ئې اداکړو اوونې فرمائیل «اللهم، إن كان لي عندك خير فاقبضني إليك» که چرته زما دپاره تاسره څه خیر وی نوزما روح واخله. دې وینا کولوسره اوده شو. روستو چه کله کور والو پاسولو نوچه ونې کتل د هغه انتقال شوې وو.[8]

امام بخاری[9] محمد بن اسحاق سراج، بکربن محمد قزاز ابراهیم بن محمد کندی او ابن حبان[10] رحمهم الله وغیره قول دادې چه ۲۵۰هجری بصره کښې انتقال شوې. غالباً د ربیع الثانی میاشت وه. یو قول د ۲۵۱هجری هم دې لیکن رومبې قول صحیح دې[11] دې د اصول سته راوی دې. کما مر. رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

---

[1] دَ شیوخ اوتلامذه دَ پاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۳۵۸/۲۹-۳۵٦.

[2] الجرح والتعدیل: ۵۳۷/۸رقم: ۲۱۵۹ تهذیب ابن حجر: ۴۳۰/۱۰تهذیب الکمال: ۳۵۸/۳۹سیر أعلام النبلاء: ۱۳۴/۱۲.

[3] حواله جات بالا.

[4] تهذیب ابن حجر: ۴۳۰/۱۰تهذیب الکمال: ۳۵۸/۳۹سیر أعلام النبلاء: ۱۳۴/۱۲تاریخ الخطیب: ۲۸۸/۱۳.

[5] تهذیب الکمال: ۳۵۹/۲۹تاریخ بغداد: ۲۲۸/۳تهذیب التهذیب: ۴۳۰/۱۰سیر أعلام النبلاء: ۱۳۴/۱۲.

[6] تهذیب التهذیب: ۴۳۱/۱۰.

[7] تهذیب ابن حجر: ۴۳۱/۱۰تعلیقات تهذیب الکمال: ۳٦۱/۲۹.

[8] تهذیب ابن حجر: ۴۳۱/۱۰تهذیب الکمال: ۳٦۱/۲۹-۳٦۰سیر أعلام النبلاء: ۱۳۴/۱۲تاریخ الخطیب: ۲۸۹/۱۳ شذرات الذهب: ۱۲۳/۲عمدة القاری: ۱۹۸/۱۵.

[9] تاریخ بخاری الصغیر: ۳۹۱/۲تهذیب الکمال: ۳٦۱/۲۹تاریخ بغداد: ۲۸۹/۱۳.

[10] کتاب الثقات لابن حبان: ۲۱۸/۹.

[11] تهذیب الکمال: ۳٦۱/۲۹سیر أعلام النبلاء: ۱۳٦/۱۲تاریخ بغداد (مدینة السلام): ۲۸۹/۱۳الکاشف: ۱۸۷/۳.

**عبدالاعلى**: دا عبدالاعلى بن عبدالاعلى شامى بصرى رحمه الله دي.[1]

**عبيدالله بن عمر**: دا مشهور محدث حضرت عبدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب رحمه الله دي. ددوى حالات **كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت** كښې راغلى دى.[2]

**نافع**: دا مشهور تابعى محدث حضرت ابولبابه نافع مولى ابن عمر رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات **كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد** په ذيل كښې راغلى دى.[3]

**ابن عمر**: دامشهور صحابى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. ددوى تفصيلى حالات **كتاب الإيمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام على خمس...** لاندې تيرشوى دى.[4]

**قوله: عن النبى ﷺ قال: دخلت امرأة النار فى هرة** د نبى اكرم ﷺ نه روايت دې چه حضورپاك فرمائيلى دى يوه ښځه د يوې پيشو د وجې نه جهنم كښې داخل شوه.

**قوله: امرأة**: ددغه ښځې نوم څه وو؟ دا معلومه نه شوه، حافظ رحمه الله او عينى رحمه الله وغيره دلته د لاعلمئ اظهاركړې دې.[5]

خود رواياتونه دومره پته لګى چه دهغې تعلق بنوحمير سره وو. نور دا چه هغه يوه توره اوږده ښځه وه.[6] البته يوروايت كښې «**امرأة من بنى إسرائيل....**»[7] الفاظ وارد شوى دى. دكوم نه چه معلوميږى چه ددغه ښځې تعلق بنى اسرائيل سره وو او بنوحمير خو عرب وو؟

ددې جواب دادې چه په دې دواړو كښې څه منافات اوتضاد نشته دې ځكه چه د بنوحمير يوجماعت په يهوديت كښې داخليدو سره ددين په توګه دا خپل كړې وو. چنانچه د قوم په توګه ددې ښځې نسبت بنوحمير طرف ته اوكړې شو او د مذهب په توګه د بنو اسرائيل طرف ته دا منسوب كړې شوه.[8]

**دغه ښځه مؤمنه وه كه كافره؟**: علامه نووى رحمه الله فرمائى چه ددې روايت نه معلوميږى چه د هرة (پيشو) قتل حرام دې. دا تړل اود خوراك څښاك نه بندول هم حرام دى. هم په دې وجه هغه ښځه په دوزخ كښې داخل شوه. د حديث د ظاهر نه دا معلوميږى چه هغه ښځه مسلمه وه ليكن هغه د پيشو په تږلو او نهره ساتلو سره جهنم كښې داخل كړې شوه.[9]

ليكن قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه كيدې شى دغه ښځه كافره وى اوهغې ته دهغې دكفر د وجې نه عذاب وركړې شوى وى اود پيشو دتنګولو او سزا وركولو وجې نه د هغې په عذاب كښې اضافه

---

[1]) ددوى ذحالاتودپاره اوګورئى كتاب الغسل باب إذا ذكر فى المسجد أنه جنب......

[2]) كشف البارى: ٣٦٠/٥.

[3]) كشف البارى: ٦٥١/٤

[4]) كشف البارى: ٦٣٧/١

[5]) فتح البارى: ٣٥٧/٦ عمدة القارى: ١٩٨/١٥.

[6]) حواله جات بالا، ومسندأبى داؤد الطيالسى: ٣٥٤/٢ مسندجابر بن عبدالله، رقم: ١٨٦١ ومسندالإمام أحمد: ٣٧٤/٣ رقم: ١٥٠٨٢ وحلية الأولياء: ٢٨٤/٦.

[7]) صحيح مسلم كتاب الكسوف باب ماعرض على النبى صلى الله عليه وسلم فى صلاة الكسوف.... رقم: ٢١٠٠ عن جابر رضي الله عنه

[8]) فتح البارى: ٣٥٧/٦ عمدة القارى: ١٩٨/١٥ إرشادالسارى: ٣١٤/١٥.

[9]) فتح البارى: ٣٥٧/٦ عمدة القارى: ١٩٨/١٥ شرح النووى: ٢٣٦/٢ إكمال إكمال المعلم مع شرحه مكمل إكمال الإكمال: ٥٦/٦

شوې وي. هغه ښځه د عذاب مستحق شوې ځکه چه هغه مؤمنه نه وه. د مؤمنانو صغائر خو د کبائر نه په توبه کولوسره معاف کیږي. په دې وجه چه کله ګناه معاف شوه نود سزا او عذاب څه معنی؟ ځکه چه هغه هم کافره وه په دې وجه ورته عذاب کیدلو او د پیشو په تکلیف کولوسره عذاب په هغې باندې زیاتی.([1])

خو بیاهم علامه نووي رحمه الله فرمائی چه صحیح هم دغه دی چه هغه مسلمه وه نه چه کافره. ددې دوزخ ته داخلیدلو سبب هم هغه پیشو وه نه چه کفر. کماهوظاهرالحدیث. ترکومې پورې چه ستاسو (قاضي عیاض) ددې خبرې تعلق دې چه پیشو تنګول صغائر کښې داخل دی چه د کبائر نه اجتناب او احتراز په صورت کښې معاف کیږي. نوددې جواب دادې چه پیشو تنګول صغیره پاتې نه شو بلکه د دغه ښځې د اصرار د وجې نه کبیره جوړه شوې وه. دې نه علاوه په حدیث کښې مخلد فی النار کیدو ذکر چرته دې چه اشکال دې وی؟([2])

**راجح څه دي؟**: لیکن دلته د قاضي عیاض رحمه الله خبره صحیح ده. هغوی چه د کافره کیدو کوم احتمال ذکر کړې دې هغه صحیح دې. د ابونعیم رحمه الله تاریخ اصفهان([3]) او د علامه بیهقی رحمه الله البعث والنشور([4]) کښې تصریح ده چه هغه ښځه کافره وه. ابن الملقن رحمه الله هم خپل یو قول هم دغه ذکر کړې دې چه هغه ښځه کافره وه او هغه دویم قول د امام نووي رحمه الله موافق دې.([5])

دحضرت عائشه رضي الله عنها رائې هم دغه ده چه هغه ښځه کافره وه او دا حدیث دهغه احادیثونه دې دکوم د وجې نه چه حضرت عائشه رضي الله عنها په حضرت ابوهریره رضي الله عنه باندې اعتراض کړې دې او فرمائیلی دی.

«هل تدري ماكانت المرأة؟ إن المرأة مع ما فعلت كانت كافرة، وإن المؤمن أكرم على الله عزوجل من أن يعذبه في هرة، فإذا حدثت عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فانظر كيف تحدث؟»([6]) یعنی آیا تاته پته ده چه هغه ښځه څه وه؟ هغه ښځه کوم څه چه هغې اوکړل دهغې سره کافره وه. دمؤمن شان اومرتبه دالله تعالی په نیز ددې نه ډیره اوچته ده چه د یوې پیشو د وجې نه هغې ته عذاب ورکړی........ والله اعلم بالصواب.

**قوله: ربطتها، فلم تطعمها، ولم تدعها تأكل من خشاش الأرض**: دغه ښځې پیشو تړلې وه هغې باندې نې څه نه خوړل اونه نې هغه خلاصوله چه هغه د زمکې چینجي وغیره نه نې څه خوړلې وې. د خشاش خاء مثلثه ده یعنی په دې باندې ضمه، فتحه یا کسره دریواړه حرکات لوستل جائز دی. حشرات الارض یعنی چینجو وغیره ته وائی لکه مږه کوم چه د پیشو یو ډیر خوښ خوراک دې.([7])

---

[1]) شرح النووی علی مسلم: ۲۳۶/۲عمدة القاری: ۱۹۸/۱۵إکمال المعلم للقاضی: ۳۰۸/۳.

[2]) حواله جات بالا.

[3]) تاریخ اصبهان (أخبار أصبهان): ۱۵٤/۲تحت ترجمة رقم: ۱۳٤۱محمدبن النعمان بن عبدالسلام، وعمدة القاری: ۱۹۸/۱۵التوضیح: ۲۵۲/۱۹.

[4]) کتاب البعث والنشور للبیهقی: ۷۹/۱باب قول الله تعالی عزوجل: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ......﴾ رقم: ٤۸ باب مایستدل به النبی صلی الله علیه وسلم..... رقم: ۱۹۱-۱۹۰ وفتح الباری: ۳۵۸/٦.

[5]) التوضیح: ۲۵۲/۱۹عمدة القاری: ۱۹۸/۱۵فتح الباری: ۳۵۸/٦.

[6]) إرشادالساری: ۳۱٤/۵فتح الباری: ۳۵۸/٦مسندأحمد: ۵۱۹/۲رقم: ۱۰۷۳۸.

[7]) أرشادالساری: ۳۱٤/۵عمدة القاری: ۱۹۸/۱۵فتح الباری: ۳۵۸/٦شرح النووی علی مسلم ۲۳۶/۲.

**حديث نه مستنبط فوائد:** ددې حديث نه معلومه شوه چه پيشوګانې ساتل اوهغه ترل جائز دى په دې شرط چه دهغې د خوراك څښاك انتظام هم اوكړى. دغه حكم د ټولو ساتونكو څناورو او مرغو دې. بل دې د خوراك څښاك انتظام د هغې په مالك باندې په دې صورت كښې واجب دې چه كه چرې دا مستقل اوتړى. قاله القرطبى والنووى. [1]

دې نه علاوه دا هم مستفاد كيږى چه د پيشوګانو وغيره تمليك (بيا بيع وشراء) جائز دى. چنانچه يو روايت كوم چه د همام بن منبه رحمه الله په طريق سره دې [2] په هغې كښې ((هرة لها)) الفاظ دى يعنى هغه پيشو د دغه ښځې مملوكه وه. والله اعلم بالصواب. [3]

**ترجمة الباب سره دحديث مناسبت:** دحافظ ابن حجر رحمه الله د رائې مطابق خوترجمة الباب سره ددې حديث مناسبت واضح دې چه هغه ټول احاديث شاتنې باب نمبر ۱۴ سره يوځائې كوى. د مينځ دوه ابواب ((باب خير مال المسلم.....)) و((باب خمس من الدواب.....)) د موقع اومحل په اعتبار سره حذف كول اولې ګرځوى اودا د ناسخينو غلطى ګرځوى. [4] د باب نمبر ۱۴ عنوان وو ((باب قول الله تعالى ﴿ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ ﴾)) بغير د څه شك نه زير بحث حديث دې سره مناسبت لرى چه هره هم په دابه كښې شامل ده اوهر دابه مخلوق دې.

نور شراح عينى قسطلانى رحمهما الله وغيره دلته دمناسبت بيانولوته تعرض نه دې كړې مګر زمونږ داكابر علماء ديوبند نه حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى: ((ثم إن جميع ما أورده فى الباب [5] من الروايات فمقصوده منها أن للدواب ذكراً فيها، غير أن بعض الروايات لما كانت تتضمن فائدة أزيد من هذا القدر نبه عليها بزيادة لفظ الباب [6] هناك، وأورد الرواية المتضمنة لتلك الفائدة.....)) [7]

يعنى امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې څومره روايات نقل ړى دى دهغه ټولو مقصود دغه دې چه په هغې كښې دواب (ساه والو) ذكر دې. مګر په دې كښې بعض روايات چونكه دې سره زياتى فائدې ته متضمن دى نودا فائده (جديده) زائده باندې د تنبيه كولودپاره لفظ باب هلته اضافه اوكړه او بيائې دغه روايت راوړلو كوم چه دغه فائدې ته متضمن وو. خلاصه دا شوه چه دلته د ناسخين صحيح بخارى د تغليط ضرورت نشته اودا د باب فى باب د قبيل نه دې. حضرت شيخ الحديث زكريا كاندهلوى رحمه الله هم دا راجح ګرځولى دى. [8]

---

[1] عمدة القارى: ۱۵/۱۹۸فتح البارى: ۶/۳۵۸شرح النووى على مسلم: ۲/۲۳۶شرح القرطبى على مسلم: ۶/۶۰۵كتاب البر والصلة، باب عذبت امرأة فى هرة، رقم: ۲۵۳۰.

[2] صحيح مسلم كتاب البر والصلة... باب تحريم تعذيب الهرة..... رقم: ۶۶۷۹

[3] عمدة القارى: ۱۵/۱۹۸.

[4] فتح البارى: ۶/۳۶۰.

[5] أى باب قول الله تعالى: ﴿ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ ﴾.

[6] هو أصل مطرد من أصول التراجم المذكورة فى المقدمة، وهوالأصل السادس منها. تعليقات اللامع: ۷/۳۸۷،همداشان اوګورئى كشف البارى: ۱/۱۷۲ اصل نمبر ۱۲ فصل اول تراجم بخارى مقدمة الكتاب.

[7] لامع الدرارى : ۷/۳۸۷.

[8] تعليقات اللامع: ۷/۳۸۷.

**قوله: قال: وحدثنا عبيد الله عن سعيد المقبري عن أبي هريرة:** [1]

**دعبارت مطلب اود حديث تخريج:** د قال ضمير عبد الاعلى سامى رحمه الله طرف ته راجع دې او په دې عبارت كښې امام بخارى رحمه الله ددې حديث يوبل طريق طرف ته اشاره كړې ده. اودا حديث دكوم طرف ته چه امام اشاره كړې ده په مسلم شريف كښې موصولاً موجود دې. [2]

دباب شپږم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې.

## الحديث السادس

[۳۳۱] - حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نَزَلَ نَبِيٌّ مِنَ الأَنْبِيَاءِ تَحْتَ شَجَرَةٍ، فَلَدَغَتْهُ نَمْلَةٌ، فَأَمَرَ بِجَهَازِهِ فَأُخْرِجَ مِنْ تَحْتِهَا، ثُمَّ أَمَرَ بِبَيْتِهَا فَأُحْرِقَ بِالنَّارِ، فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ: فَهَلَّا نَمْلَةً وَاحِدَةً - [ر۲۸۵۶] [3]

**ترجمه:** د انبياء كرام عليهم الصلوات والتسليمات نه يو محترم نبى (عزير عليه السلام يا موسىٰ عليه السلام) د يوې ونې لاندې د آرام په غرض سره كوز شو. چرته چه يو ميږى هغه ته ټك وركړو. نو هغوى دخپل سامان دهغه ځائى نه د اوچتولو حكم وركړو. بيائى د ميږى د سوړې باره كښې حكم اوفرمائيلو. دغه شان ئى د دې ميږى سوړه اوسوزوله. (په دې باندې) الله تبارك وتعالى وحى نازل كړه چه تا صرف د يو ميږى (كوم چه تكليف دررسولې وو) باندې اكتفاء اونه كړه؟

## تراجم رجال

**اسماعيل بن ابي اويس:** دا اسماعيل بن ابى اويس مدنى اصجى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى حالات **كتاب الايمان باب من كره أن يعود فى الكفر**.... كښې تيرشوى دى. [4]

**مالك:** دا ابو عبد الله مالك بن انس مدنى اصبحى رحمه الله دې. ددوى تفصيلى تذكره بدء الوحى اوكتاب **الايمان باب من الدين الفرار من الفتن** كښې ذكرشوې ده. [5]

**ابوالزناد:** دا ابوالزناد عبد الله بن ذكوان مدنى قرشى رحمه الله دې.

**الاعرج:** دا عبد الرحمن بن هرمز الاعرج قرشى رحمه الله دې. ددې دواړو محدثينو حضراتو تذكره ((**كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان**)) لاندې تيره شوې ده. [6]

---

[1] دحضرت سعيد مقبرى رحمه الله حالات كشف البارى: ۳۳۶/۲ كتاب الايمان اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات كشف البارى: ۶۵۹/۱ كتاب الايمان كښې تيرشوى دى.

[2] صحيح مسلم كتاب السلام باب تحريم قتل الهرة رقم: ۲۲۴۲.

[3] قوله: عن أبى هريرة رضى الله عنه: الحديث، مر تخريجه فى كشف البارى كتاب الجهاد ۳۵۵/۲-۳۵۴.

[4] كشف البارى: ۱۱۳/۲.

[5] كشف البارى: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

[6] كشف البارى: ۱۱/۲-۱۰.

**ابوهریره:** دا مشهور صحابی حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تېرشوی دی.[1]

داحدیث کتاب الجهاد کښې تېرشوې دې او دې سره متعلق څه مباحث هم هلته تېرشوی دی. په دې وجه به مونږ دلته یو څو فوائد ذکرکوو.[2]

**د میږي عجیبه اوحیرانونکي عادتونه:** د رزق په لټون کښې هرساه والا مختلف حیلې متنوع اسباب او ډیرې طریقې اختیاروی. خو په دې کښې د تولونه حیله باز ساه والامیږې دې. د ده د عجیبه عادتونونه یو دا هم دې چه که ده ته چرته څه څیز ملاؤ شی نودې هغه یوازې د خوړلوکوشش نه کوی بلکه د خپلې برادرئې نور هم خبروی. هم دګرمئې د موسم نه د یخنئې د موسم خوراك راجمع کول شروع کوی. که چرته د دانود خرابیدو خطره وی نو هغه د زمکې سر ته راوړی دې دپاره چه تازه هوا پرې اولګی. که چرته زمکه کنستلوسره خپله سوره (کور) جوړوی نوهغه په کوږووږ انداز کښې جوړوی نیغه ئې نه جوړوی دې دپاره چه د باران اوبه دا اود ده خوراك خراب نه کړی. په ساه والا څیزونوکښې

د ده په شان بل نه شته چه د خپلې جوسې نه زیات وزن اوچتوی.[3]

**د ټول کال خوراک ئې یوه دانه دغنم:** علماؤ لیکلی دی چه حضرت سلیمان علیه السلام د یومیږی نه تپوس اوکړو چه ستا د یوکال دپاره څومره خوراك کافی دې؟ نومیږی جواب ورکړو دغنم یوه دانه. سلیمان علیه السلام حکم اوکړو چه دا میږې په یوبوتل کښې بندکړنی او د ده د خوراك په توګه د غنم یوه دانه کیږدنی. ټول کال هغه بوتل پروت وود کال تیریدو نه پس سلیمان علیه السلام هغه بوتل راؤغوښتلو اوسرئې ترې لرې کړو نوچه وئې کتل میږې ژوندې اوسلامت موجود وو اوهغه صرف نیمه دانه خوړلې وه حضرت سلمیان علیه السلام میږی ته اووئیل چه تاخو وئیلی وو چه زما د یوکال خوراك د غنم یوه دانه ده؟ میږی په جواب کښې عرض اوکړو ای د الله تعالی نبی! تاسو یو ډیر عظیم الشان بادشاه یئې اوپه ډیرو زیاتو امورو اومعاملاتوکښې مشغول یئې نوزما اندیښنه پیدا شوه چه تاسو ما چرته هیر نه کړئې او په دې باندې دوه کاله تیر شی. په دې وجه ما نیمه دانه اوخوړله او نیمه مې د بل کال دپاره اوساتله چه د اولږې مړ نه شم. چنانچه حضرت سلیمان علیه السلام د دغه میږی په پوهه عقل ددماغو په بیدارئې او هوښیارئې باندې ډیر حیران او متاثر شو.[4]

**د کمزورو په ذریعه د رزق رسول:** دامام دارقطنی رحمه الله وغیره په حواله سره علامه دمیری رحمه الله حیاة الحیوان کښې دحضرت ابوهریره رضي الله عنه یو حدیث نقل کړې دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه میږی مه وژنئې. ځکه چه یوخل حضرت سلیمان علیه السلام د صلاة استسقاء په نیت سره اووتلو نو چه وئې کتل یو میږې په شا باندې پروت دې او هغه خپل واړه واړه لاسونه خپې (د آسمان طرف ته) اوچت کړی وو اودا الفاظ ئې وئیل: ((اللهم، إنا خلق من خلقك، لاغنی لنا من فضلك، اللهم، لاتؤاخذنا بذنوب عبادك الخاطئین،

---

[1]) کشف الباري: ۶۵۹/۱.

[2]) کشف الباري کتاب الجهاد دوم: ۳۵۸-۳۵۶.

[3]) عمدة القاري:۱۹۹/۱۵فتح الباري: ۳۵۹/۶.

[4]) عمدة القاري: ۱۹۹/۱۵تعلیقات اللامع: ۳۹۵/۷.

**واستقنا مطرا، تنبت لنا به شجرا، واطعمنا ثمرا»**[1] يعني اې الله مونږ هم ستاسو په تولو مخلوقاتو كښې يو مخلوق يو. مونږ هم ستاد فضل اوكرم نه مستغنى نه يو، اې الله ته د خپلو خطاكارو بندګانو رانيول زمونږ نه اونه كړې. او زمونږ د پاره داسې باران اووروې دكوم په ذريعه چه زمونږ د پاره بوټي ونې راؤټوكوى او مونږ ته (د هغې) ميوې راكړې.

حضرت سليمان عليه السلام دا ټول منظر ليدلو سره خپلو ملګرو ته اوفرمائيل واپس لاړشئ زمونږ د پاره داكافى شوې دى او تاسو د نورو مخلوقاتو په عوض سره خړوب كولې شئ.[2]

**دعربې ژبې د وسعت يو مثال:** په روايت باب كښې راغلى دى «**ثم أمر بيتها**» هم دغه روايت شاته په كتاب الجهاد كښې هم راغلې دې هلته «**فأمر بقرية النمل.....**»[3] الفاظ دى؟ چنانچه د ميږى سوړې يا كور ته قريه وئيلې شوې ده او روايت باب كښې چه كوم د بيت الفاظ دى اوهغه روايت بالمعنى دې. اوقرية النمل معنى ده ددوى د جمع كيدو ځائى.[4]

اهل عرب به اوطان كښې تفريق كوى چنانچه انسانى مسكن ته د وطن نوم وركوى اود ازمرى اوسيدو ځائى ته عرين او غابة داوښ دپاره عطن د هوسئى دپاره كناس، ليوه دپاره وجار د مرغودپاره عش اود مچې دپاره كوړ اود مږې دپاه نافق استعمالوى.[5]

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت:** په ساه والاخناوروكښې چه كوم موذى وى هغه وژل جائز دى. هم په دې كښې ميږى هم داخل دى چه د تكليف وغيره سبب جوړشى نود دې وژل جائز دى. قاضى عياض رحمه الله فرمائى «**وفيه دليل على جواز قتل النمل، وكل مؤذ**».[6]

## ۱۶ – باب: إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي شَرَابِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ، فَإِنَّ فِي إِحْدَى جَنَاحَيْهِ دَاءً وَفِي الأُخْرَى شِفَاءً.

**اختلاف نسخ:** لكه څنګه چه وړاندې تيرشو د شراح بخارى عمومى رائې هم دغه ده چه بعض ناسخينو كتاب بدء الخلق كښې څه بې جوړه تراجم ذكر كړى دى. كومو چه د دغه تراجم لاندې ذكر كړې شوى احاديثوسره څه تعلق نه لرى. هم دغه مسئله دلته هم ده. حافظ ابن حجر، علامه عينى اوعلامه قسطلانى رحمهم الله وغيره فرمائى چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث ذباب نه وړاندې د ابوذر په نسخه كښې دهغوى د بعض شيوخ په حواله سره «**باب إذا وقع.......**» په عنوان سره ترجمة الباب قائم كړې شوې دې خود نورو ناسخينو په نسخوكښې دا عبارت يا ترجمه محذوف ده او د دغه

---

[1] مشكوة المصابيح، كتاب الصلاة باب الاستسقاء الفصل الثالث رقم: ۱۵۱۰وسنن الدارقطنى: ۶۶/۲كتاب الاستسقاء رقم:۱ وشرح مشكل الآثار:۳۳۱/۱رقم: ۸۷۵.

[2] حياة الحيوان: ۵۰۲/۲باب النون النمل ، فائدة اخرى وإرشادالسارى: ۳۱۵/۵.

[3] صحيح البخارى كتاب الجهاد باب (بلاترجمة) رقم: ۳۰۱۹.

[4] عمدة القارى: ۱۹۹/۱۵شرح القسطلانى:۳۱۴/۱۵فتح البارى: ۳۵۸/۶.

[5] عمدة القارى: ۱۹۹/۱۵فتح البارى: ۳۸۸/۶.

[6] إكمال المعلم: ۱۶۵/۷كتاب السلام رقم:۲۲۳۱عمدة القارى:۱۹۹/۱۵شرح القسطلانى: ۳۱۴/۵فتح البارى: ۳۵۸/۶شرح السنة للبغوى: ۲۸۸/۶.

شراح حضراتو په قول هم دغه اولی دی.(۱) اود گنگوهی رحمه الله او شیخ الحدیث کاندهلوی رحمه الله په نیز دا ترجمه هم دباب فی باب دقبیل نه ده او زیاتی فائدې ته متضمن ده.(۲)

**دترجمة الباب مقصد:** ددې باب لاندې درج شوی احادیثو کښې دباب (مچ) ذکر دې اود بعض نورو ساه والا ځیزونو هم ذکر دې اودا ټول مخلوق دی. بیا دې دا خبره ښکاره وی چه دې کښې شپږ احادیث دی په کوم کښې چه اولنې حدیث د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحديث الاول

[۳۳۲] -حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُتْبَةُ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ بْنُ حُنَيْنٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي شَرَابِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ ثُمَّ لِيَنْزِعْهُ، فَإِنَّ فِي إِحْدَى جَنَاحَيْهِ دَاءً وَالأُخْرَى شِفَاءً» [۵۳۳۵](۳)

**ترجمه:** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورپاك فرمائیلی دی چه كه چرته ستاسو (خوراك) څښاك ځیز كښې مچ پریوځی نوهغې ته غوپه وركړئی بیائی راؤباسئی ځكه چه دهغې په یو وزر كښې بیماری او بل كښې شفا وی.

## تراجم رجال

**خالدبن مخلد:** دا ابوالهیثم خالد بن مخلد کوفی بجلی رحمه الله دې.

**سلیمان:** دا ابوایوب سلمیان بن بلال رحمه الله دې. ددې دواړو حضراتو تذکره كتاب العلم باب طرح الإمام المسألة على أصحابه...... لاندې راغلې ده.(۴)

**عتبه بن مسلم:** داعتبه بن مسلم مدنی رحمه الله دې.بنوتیم مولی دې هم دغه عتبه بن ابی عتبه هم دې(۵) دې د عبید بن حنین، حمزه بن عبدالله بن عمر، نافع بن جبیر بن مطعم، ابوسلمه بن عبدالرحمن، عبدالله بن رافع بن خدیج او عكرمه مولی ابن عباس رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت كوی. او دوی نه دحدیث سماع كونكوكښې ابن اسحاق، سلیمان بن بلال، اسماعیل بن جعفر بن ابی كثیر، محمدبن جعفر بن ابی كثیر، مسلم بن خالد زنجی، سعید بن ابی بلال، ابراهیم بن ابی یحیی او یوسف بن یعقوب الماجشون رحمهم الله وغیره شامل دی.(۶)

---

(۱) فتح الباری: ۳۶۰/۶عمدة القاری: ۲۰۰/۱۵شرح القسطلانی: ۳۱۵/۵.

(۲) لامع الدراری مع تعليقاته: ۳۸۷/۷والأبواب والتراجم: ۲۱۲/۱.

(۳) قوله: سمعت أباهريرة رضی الله عنه: الحديث، أخرجه البخاری أيضا كتاب الطب باب إذا وقع الذباب فی الإناء رقم: ۵۷۸۲وأبوداؤد فی سننه، كتاب الأطعمة، باب فی الذباب يقع فی الطعام، رقم: ۳۸۴۳وابن ماجه فی سننه كتاب الطب باب الذباب يقع فی الإناء رقم: ۳۵۰۵.

(۴) كشف الباری: ۱۳۷/۳-۱۳۵.

(۵) تهذيب الكمال: ۳۲۳/۱۹وتهذيب التهذيب: ۱۰۲/۷والجرح والتعديل: ۴۹۱/۶رقم الترجمة: ۲۰۶۵.

(۶) د شیوخ اوتلامذه د تفصیل دپاره اوگورئی حواله جات بالا.

ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[1] حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى صدوق.[2] حافظ خزرجى رحمه الله فرمائى ثقة.[3] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ثقة.[4] عتبه بن مسلم رحمه الله د امام ترمذى رحمه الله نه علاوه د نور ائمه سته راوى دې. رحمه الله رحمة واسعة.[5]

**تنبيه (دامام بخاري يو وهم)**: خطيب بغدادى رحمه الله موضح كښې ليكلى دى چه امام بخارى رحمه الله عتبه بن ابى عتبه او عتبه بن مسلم په مينځ كښې فرق كړې دې او خپل تاريخ[6] كښې دواړه جدا جدا شمير كولوسره د هر يو ترجمه جدا ليكلې ده. حالانكه صحيح دا ده چه دا دواړه يودى[7] هم دغه عبدالغنى بن سعيد ازدى رحمه الله نه هم نقل دى.[8] په ظاهر امام ته خكه وهم شوې دې چه د عتبه شاګرد سعيد بن ابى هلال كله د عتبه نه روايت د حديث كوى نوكله عتبه بن مسلم فرمائى او بل وخت عتبه بن ابى عتبه. والله اعلم بالصواب.[9]

**عبيد بن حنين**: دا ابوعبدالله عبيد بن حنين مولى زيد بن الخطاب عدوى رحمه الله دې.[10]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[11]

**يوه بله تنبيه**: حافظ د عبيدبن حنين رحمه الله باره كښې ليكلى دى چه بخارى شريف كښې دهغوى دحديث باب نه علاوه بل يوحديث نشته دې.[12]

دا د هغوى تسامح دې صحيح بخارى كښې دهغوى نور هم روايات دى.[13]

**قوله: قال النبى صلى الله عليه وسلم: إذا وقع الذباب فى شراب أحدكم، فليغمسه، ثم لينزعه، فإن فى إحدي جناحيه داءً، والأخري شفاءً**

**د الذباب تحقيق**: حافظ ابن التين فرمائى چه ذباب جمع ده د ذبابة خو ابوهلال عسكرى فرمائى ذباب پخپله مفرد دې اوددې جمع ذبان دې. عامة الناس ذبابة واحد د پاره او ذبان جمع د پاره يادوى نودا غلط دې. ددې لفظ په حقيقت كښې نور هم ډير اقوال دى ليكن زړه ته لګيدونكې خبره د ابن سيده

---

[1] كتاب الثقات: ٥/ ٢٥٠ وتهذيب الكمال: ٣٢٣/١٩.

[2] الكاشف: ٢/ ٢٤٠ رقم: ٣٧١٣.

[3] خلاصة الخزرجي: ٢٥٨ من اسمه: عتبة.

[4] تقريب التهذيب: ٦٥٤/١ رقم: ٤٤٥٨.

[5] تهذيب الكمال: ٣٢٤/١٩.

[6] التاريخ الكبير: ٥٢٤/٢/٦ رقم: ٣١٩٦-٣١٩٥.

[7] موضح أوهام الجمع والتفريق: ١٦١/١ تهذيب التهذيب: ١٠٢/٧ تعليقات تهذيب الكمال: ٣٢٣/١٩.

[8] تهذيب التهذيب: ١٠٢/٧.

[9] تهذيب التهذيب: ١٠٢/٧.

[10] ددوى دحالاتو دپاره اوګورئى كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فى المسجد

[11] كشف البارى: ٦٩٠/١.

[12] فتح البارى: ٢٥٠/١٠ كتاب الطب.

[13] دكتاب الصلاة محوله باب رقم: ٤٦٦ تحفة الاشراف: ٣٩٥/٣ رقم: ٤١٤٥ مسند سعدبن مالك ابوسعيد الخدرى رضي الله عنه

ده كومه چه هغوى په المحكم[١] كښې ذكر كړې ده چه ذبابة مستعمل خو نه دې مګر ابو عبيد د احمر نه هم دغه نقل كړې دى. صحيح ذباب دې. قرآن كريم كښې راغلى دى ﴿وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَا يَسْتَنْقِذُوهُ مِنْهُ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ﴾ [٢] ددې تفسير مفسرين حضراتو په واحد سره كړې دې.[٣]

**د شراب نه مراد:** دلته د شراب په مفهوم كښې هرقسم بهيدونكې څيز شامل دې. په قرآن كښې د شاتو دپاره هم د شراب لفظ استعمال كړې شوې دې. فرمائيلى دى ﴿يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ﴾ [٤] بلكه دصحيح بخارى او ابوداؤد شريف [٥] هغه روايت زيات جامع دې په كوم كښې چه د إناء لفظ دې. په لوښى كښې خو ماكولات او مشروبات دواړه وى مطلب دادې چه كه ستاسو د خوراك څښاك په څيزونو كښې مچ پريوځى.[٦] دې نه علاوه د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه اوحضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې د طعام لفظ راغلې دې.[٧] ليكن څنګه چه اوس مونږ اوخودل إناء لفظ زيات جامع دې.

**قوله: فليغمسه:** غمس د باب ضرب نه په معنى د غوپې وركولو داخلولو.[٨] ابوعبيده رحمه الله فرمائى مطلب دادې چه دې پوره مچ له د خوراك څښاك په څيز كښې غوپه وركړنى دې دپاره لكه څنګه چه بيمارى وتلې ده چه هغه شان ترې شفا هم راؤځى.[٩]

**څومره غوپې وركول پكاردي يو يا درې؟:** دباب په روايت كښې دا مصرح نه دې چه څومره ځل به دې مچ له غوپه وركول وى؟ صرف هم دغه دى چه غوپه وركولو سره ئى راؤباسئى وئى غورزوئى. يو بل روايت كوم چه دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. په هغې كښې دى چه: «كنا عند أنس، فوقع ذباب فى إناء، فقال أنس بأصبعه، فغمسه فى ذلك الإناء ثلاثا، ثم قال: بسم الله، وقال: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمرهم أن يفعلوا ذلك»[١٠]

---

[١] المحكم: ١٠/٥٤الذال والباء مادة: ذ ب ب.

[٢] سورة الحج: ٧٣.

[٣] عمدة القارى: ١٥/٢٠٠التوضيح: ١٩/٢٥٧فتح البارى: ١٠/٢٥٠رقم:٥٧٨٧.

[٤] سورة النحل: ٦٩

[٥] صحيح البخارى كتاب الطب باب إذا وقع الذباب فى الإناء رقم: ٥٧٨٢وسنن أبى داؤد كتاب الأطعمة باب فى الذباب يقع في الإناء رقم: ٣٨٤٣.

[٦] عمدة القارى:١٥/٢٠٠فتح البارى:١٠/٢٥٠.

[٧] سنن ابن ماجه كتاب الطب باب الذباب يقع فى الإناء رقم: ٣٥٠٤وابن حبان: ٣/٢١٨كتاب الطهارة باب المياه، ذكر الأمر بغمس الذباب فى الإناء رقم: ١٢٤٤.

[٨] القاموس الوحيد مادة: غمس عمدة القارى: ١٥/٢٠٠.

[٩] عمدة القارى:١٥/٢٠٠.

[١٠] كشف الأستار، كتاب الأطعمة باب الذباب يقع فى الإناء رقم: ٢٨٦٦ومجمع الزوائد للهيثمى: ٥/٣٨كتاب الأطعمة باب فى الذباب.... والأحاديث المختارة للضياء المقدسى: ٥/٢٠٧-٢٠٦رقم: ١٧٣٥.

د كوم حاصل چه دادې چه ثمامه بن عبدالله بن انس رحمه الله په قول حضرت انس رضي الله عنه درې ځل مچ له په لوښى كښې غوپه وركړه. بسم الله ئې اووئيله اوونې فرمائيل چه رسول الله ﷺ موږ ته ددې حكم راكړې دې.

هم دغه حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هم نقل دې حافظ فرمائي: «ورواه حماد بن سلمة عن ثمامة، فقال: عن أبي هريرة ورجحها أبوحاتم، وأما الدارقطني، فقال: الطريقان محتملان» [1] چنانچه دواړه صورتونه صحيح دى. د تثليث والا روايت په مبالغه باندې محمول دې. [2]

**قوله: فإن في إحدى جناحيه داء**..... يعنى ددې په يو وزر كښې بيمارى ده. د ابوداؤد شريف [3] روايت كښې احد دې يعنى مذكر دې خو په دې كښې هيڅ حرج نشته دې ځكه چه لفظ جناح مذكر اومؤنث دواړه شان استعماليږى. يو قول دادې چه تانيث جناح په اعتبار د يد دې خو صغاني رحمه الله «أحد جناحيه» يعنى د مذكر والا روايت ته راجح وئيلې دې اود تانيث د احتمال ئې انكار كړې دې. [4]

**داء نه څه مراد دې؟**: د مچ جبلت او طبعى عادت هم دغه دې چه كله هغه څه د خوراك څښاك په څيز كښې پريوځى نوهغه وزر اول پريوځى كوم كښې چه بيمارى وى دې دپاره چه خپل ځان بچ كړى شى. [5] نو مقصد خوددې كار نه خپل ځان بچ كول وى خوذ ده په دغه وزر كښې زهر (يا د جديد محاورې مطابق جراثيم) وى. يو روايت [6] كښې د زهر تصريح راغلې ده نود داء نه مراد زهر دى. [7]

**د زهرو والا وزر كوم يو وى؟**: حافظ ابن حجر فرمائى ددې حديث د يو طريق نه چه په كوم يو وزر كښې بيمارى ده اوكوم كښې شفا؟ ماته معلومه نه شوه اوددې تعيين مې اونه كړې شو ليكن بعض علماؤ ليكلى دى چه هغوى په دې معامله كښې تامل كړې دغور اوفكر لاړ ئې خپله كړې نو معلومه شوه چه مچ په يو څيز كښې د پريوتلو په وخت خپل ګس وزر سره خپل ځان بچ كوى يعنى په خپل ګس اړخ باندې پريوځى دكوم نه چه معلومه شوه چه د هغه په ښى وزر كښې شفاء ده. چنانچه ليكى:

«ولم يقع لي في شيء من الطرق تعيين الجناح الذي فيه الشفاء من غيره، لكن ذكر بعض العلماء أنه تأمله، فوجده يتقي بجناحه الأيسر، فعرف أن الأيمن هو الذي فيه الشفاء، والمناسبة في ذلك ظاهرة» [8]

---

[1] فتح البارى: ١٠/٢٥٠.

[2] التوضيح لابن الملقن: ١٩/٢٥٦.

[3] سنن أبي داؤد كتاب الأطعمة باب في الذباب يقع في الإناء رقم: ٣٨٤٤.

[4] فتح البارى: ١٠/٢٥١شرح القسطلاني: ٥/٣١٥عمدة القارى: ١٥/٢٠١.

[5] كما في رواية أبي داؤد، رقم: ٣٨٤٤وابن حبان: ١٢/٥٥كتاب الأطعمة باب آداب الأكل رقم: ٥٢٥٠ومسند أحمد: ٢/٢٣٠رقم: ٧١٤١مسند أبي هريرة. وقال أفلاطون: الذباب أحرص الأشياء، حتى إنه يلقي نفسه في كل شيء، ولو كان فيه هلاكه. فتح البارى: ١٠/٢٥٠.

[6] الطب النبوى لأبي نعيم: ٢/٤٠٦رقم: ٦٩٣

[7] بذل المجهود: ١١/٥٦٨رقم: ٣٨٤٣فتح البارى: ١٠/٢٥١التوضيح لابن الملقن: ١٩/٢٥٤عمدة القارى: ١٥/٢٠١.

[8] فتح البارى: ١٠/٢٥١.

**حدیث په حقیقت باندې محمول دې که په مجاز** د پورتنی تفصیل نه معلومه شوه چه په حدیث شریف کښې د مچ باره کښې کوم ونیلې شوی دی چه د ده په یو وزر کښې بیماری یا زهر وی نو دا حقیقت دې که مجاز؟ بعض حضراتو د داء نه مجاز اداالکبر مراد اخستې دې او د شفاء نه مراد د کبر علاج کرځولې شوې دې چه دغه شان مچ له پوره غوبه ورکولو سره تواضع پیدا کیږی او تکبر ختمیږی خکه چه عموماً دا کتلې شی چه په خوراك کښې د داسې قسم څه څیز پریوځی نو بنده خوراك پریږدی او دغه شان هغه خوراك ضائع کیږی (۱)

چنانچه صاحب بحر د سراج نه نقل کړی دی چه بعض علماء وائی چه دې نه داء الکبر مراد دې لیکن پخپله صاحب البحر وائی چه دا ضعیف دی خکه چه بیا د جناحین تذکرې او د شفاء د تذکرې هیڅ څه ضرورت نشته دې نه علاوه دا موقف د حدیث د نص خلاف دې (۲)

**ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د دې حدیث د باب مطابقت ترجمة الباب سره واضح دې چه ذباب هم د مخلوقات د قبیل نه دی.

د باب دویم حدیث د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.

## الحدیث الثانی

[۳۳۳]-حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ الْأَزْرَقُ، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، عَنِ الْحَسَنِ، وَابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: غُفِرَ لِامْرَأَةٍ مُومِسَةٍ، مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلَى رَأْسِ رَكِيٍّ يَلْهَثُ، قَالَ: كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ، فَنَزَعَتْ خُفَّهَا، فَأَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا، فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ، فَغُفِرَ لَهَا بِذَلِكَ-[۳۲۸۰] (۳)

## تراجم رجال

**الحسن بن الصباح:** دا الحسن بن صباح ابوعلی واسطی ثم بغدادی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الایمان باب زیادة الایمان ونقصانه کښې راغلې ده. (۴).

**اسحاق الازرق:** دا اسحاق بن یوسف بن یعقوب بن مرداس مخزومی ابومحمد الازرق رحمه الله دې. (۵)

**عوف:** دا عوف بن ابی جمیله الاعرابی عبدی بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الایمان کښې تیره شوې ده. (۶)

---

(۱) حواله بالا التوضیح: ۲۵۶/۱۹.

(۲) قال صاحب البذل: والظاهر أن الداء والشفاء محمولان على الحقيقة، فإن لها شواهد ونظائر، كالنحلة يخرج من بطنها الشراب النافع، وينبت من إبرها السم النافع، فلاباعث للحمل على المجاز. بذل المجهود: ۵۶۸/۱۱ كتاب الأطعمة.

(۳) قوله: عن أبي هريرة رضي الله عنه: الحديث، رواه البخاري في كتاب الأنبياء باب بعد باب حديث الغار رقم: ۳۴۶۷ ومسلم رقم: ۵۸۱۵-۵۸۱۴ في كتاب الحيوان، باب فضل سقي البهائم المحرمة وإطعامها.

(۴) كشف الباري: ۳۶۷/۲

(۵) د دوی د تذکره د پاره اوګورئی کتاب الحج باب أین یصلی الظهر یوم الترویة؟

(۶) کشف الباری: ۵۲۲/۲

**الحسن**: دا مشهور تابعي محدث حسن بصرى رحمه الله دی. د دوی تذکره **كتاب الإيمان باب المعاصي من أمر الجاهلية ولا يكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك** کښې راغلې.[1]

**ابن سيرين**: دا مشهور محدث محمد بن سيرين انصارى رحمه الله دی. د دوی تذکره **كتاب الإيمان باب اتباع الجنائز....** کښې تېره شوې ده.[2]

**ابوهريره**: دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دی. د دوی حالات **كتاب الإيمان باب أمور الإيمان** کښې تېر شوی دی.[3]

**قوله: عن أبوهريرة رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: غفر لامرأة مؤمسة مرت بكلب على رأس ركي يلهث قال: كاد يقتله العطش**: د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د يوې زناكارې ښځې مغفرت ‹صرف په دې خبره باندې› اوکړې شو چه هغه د يوسپى خواکې تېرېدله چه د تندې د سختنۍ ‹نيزدې وه چه مړشوې وې› د وچې نه د يوکوهى په غاړه باندې ړچيدلو. **غفر** فعل ماضى مجهول دې. **غفرانا** ددې مصدر دې.

**د مومسه معنى اوماده د اشتقاق**: د مومسه معنى فاجره او زانيه ده. ددې جمع **مماس مومسات** او **مواميس** ده.[4] خو اصحاب حديث ددې جمع مياميس ليكى. په يوحديث شريف کښې راځى ‹‹**لايموت جريج حتى ينظر فى وجه المياميس**››[5] او د حضرت ابووائل شقيق بن سلمه رحمه الله يو روايت کښې ‹‹**أكثر تبع الدجال اليهود وأولاد المواميس**›› "چه د دجال لعين اتباع کونکى عموماً زانيات او فاجراتو اولاد وى". الفاظ دى.[6]

ددې لفظ اصل اوماده د اشتقاق کښې اختلاف دې. بعض دا مهموز او بعض دا مثال واوی ګرخولې دې. يعنى د ومس نه مشتق دې يعنى دا د اصحاب عربيت رائې ده.[7]

خو ابن السماك رحمه الله دا مهموز ګرخوى. ابن قرقول رحمه الله فرمائى چه که همزه سره دا لفظ صحيح دې نو دا ‹‹**مأس الرجل**›› نه دې. دکوم معنى چه ده د بنده دومره ورانيدل چه هغه و نصيحت قبول نه کړى. دغه شان وئيلى شى ‹‹**مأس بين القوم**›› د قوم په مينځ کښې فساد خورول او ورانې پيدا کول.[8]

علامه عينى د مهموز کيدو احتمال ردکولوسره فرمائيلى دى که چرې مومسه د ماس نه مشتق وې نو اسم فاعل به ئې ماسة وې په دې وجه د علامه عينى په قول زما په نيز دا لفظ د باب فعللة نه دې يعنې مومس، دوسوس په وزن باندې. ددې باب نه د اسم فاعل د مؤنث دپاره هم مومسه دې. والله اعلم.[9]

---

[1] كشف البارى: ۲۲۰/۲.

[2] كشف البارى: ۵۲٤/۲.

[3] كشف البارى: ۶۵۹/۱.

[4] عمدة القارى: ۲۰۱/۱۵.

[5] رد ذلك فى حديث جريج العابد. انظر صحيح البخارى كتاب الصلاة باب مسح الحصا فى الصلاة رقم: ۱۲۰۶ عن أبى هريرة رضي الله عنه.

[6] رواه أبونعيم فى الفتن، عن وكيع: ۵٤۷/۲ رقم: ۱۵۳٤ مكتبة التوحيد. القاهرة.

[7] النهاية فى غريب الحديث والأثر: ۳۱۸/٤ مادة مومس، باب الميم مع الواو، ومجمع بحار الأنوار: ۶۳۳/٤ مادة: مومس

[8] عمدة القارى: ۲۰۲/۱۵-۲۰۱ والمحكم لابن سيدة: ۶۲۹/۸ مقلوبه: موس.

[9] عمدة القارى: ۲۰۲/۱۵.

**د ركي معني او ضبط:** ركى د راء فتح كاف كسره او ياء تشديد سره دې. كوهى ته وائى په دې شرط چه د هغې منډير يعنى اوچته غاړه نه وى. ددې جمع ركايا ده.(١)

**د يلهث معني لغوي اوصرفي تحقيق:** يلهث دباب فتح نه دفعل مضارع صيغه ده لهثا ددې مصدر دې. دتندې او ګرمنى د سختنى نه ژبه بهر راوتلوته يلهث وائى. «أي يخرج لسانه من شدة العطش والحر» (٢) او «كاد يقتله العطش» د يوراوى تفسيرى جمله ده.

**قوله:: فنزعت خفها، فأوثقته بخمارها، فنزعت له من الماء، فغفر لها بذلك:** چنانچه هغه ښځې خپله موزه اوويستله هغه ئې خپلې لوپټې پورې اوتړله اودهغه سپى دپاره ئې څه اوبه راښکلې ددې عمل په وجه دهغه ښځې مغفرت اوکړې شو.

مطلب دادې چه کله دغه ګناهګارې ښځې د دغه سپى بې بسى اوليدله او د تندې د وجې نه ئې دهغه تکليف اوليدلو نود يوساه والاخناور کيدو د وجې نه ئې په هغه سپى باندې رحم راغلو اود هغه د تندې د لرې کولودپاره ئې دا اوکړو چه خپله موزه ئې خپلې لوپټې پورې اوتړله اوکوهى ته ئې ورکوزه کړه اوکله چه هغه په اوبوباندې لمده شوه نوهغه ئې راښکله اودهغې اوبه ئې نچوړې کړې او په سپى باندې اوڅکلې. د دغه ښځې دا وړوکې شان عمل دالله تعالى دومره خوښ شو چه صرف هم په دې عمل باندې ئې دهغې بخښنه اوکړه. چنانچه ددې حديث شريف نه دا فائده مستفاد شوه چه الله تعالى بعض وخت د خپل خاص فضل او احسان مظاهره کولوسره په يو وړوکى شان نيک عمل سره ترکبائر پورې معاف کوى.(٣)

**ځناورو سره ښه سلوک:** ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چه ځناورو سره هم ښه سلوک کول پکاردى هغوى ته تکليف نه دى ورکول پکار. هغه هم دالله مخلوق دې. مشهور حديث شريف دې چه نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى «ارحموا من فى الأرض يرحمكم من فى السماء» (٤)

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت په دې معنى دې چه کلب يعنى سپې هم دالله تعالى مخلوق دې.

دباب دريم حديث د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه دې.

## الحديث الثالث

[٣٣٢]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَفِظْتُهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ كَمَا أَنَّكَ هَا هُنَا أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لاَ تَدْخُلُ المَلاَئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلاَ صُورَةٌ». -[ر٣٠٥٣] (١)

---

١) حواله بالا وإرشادالسارى: ٣١٦/٥.

٢) مجمع بحار الأنوار: ٥١٨/٤مادة: لهث.

٣) التوضيح لابن الملقن: ٢٥٩/١٩عمدة القارى: ٢٠٢/١٥شرح القسطلانى: ٣١٦/٥.

٤) الحديث أخرجه الترمذى أبواب البر والصلة باب ماجاء فى رحمة الناس رقم: ١٩٢٤وأبوداؤدكتاب الأدب باب فى الرحمة رقم: ٤٩٤١وأحمدفى مسنده: ١٦٠/٢ رقم: ٦٤٩٤ مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنه.

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله:** دا مشهور محدث علی بن عبد الله المدینی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب العلم باب ما ذکر فی ذهاب موسیٰ صلی الله علیه وسلم فی البحر إلی الخضر لاندې تیره شوې ده.[٢]

**سفيان:** دامشهورامام محدث سفیان بن عیینه رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات بدء الوحی الحدیث الأول کښې اومفصل حالات کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أوأخبرنا.... کښې تیر شوی دی.[٣]

**الزهري:** دا مشهور محدث محمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې. ددوی مختصر ذکر بدء الوحی دریم حدیث لاندې راغلی دی.[٤]

**عبدالله:** دا عبدالله بن عتبه بن مسعود الهذلی رحمه الله دې.[٥]

**ابن عباس:** دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. د دوی اجمالی تذکره بدء الوحی الحدیث الرابع اوتفصیلی کتاب الإیمان باب کفران العشیروکفر... کښې شوې ده.[٦]

**ابوطلحه:** دا زید بن سهل ابوطلحه الانصاری النجاری رضی الله عنه دې.[٧]

**دَ کما انک ههنا معنی:** حضرت سفیان بن عیینه رحمه الله چه کله دا حدیث حضرت علی بن المدینی رحمه الله ته واورولو نودا ئې اوفرمائیل چه ما دا حدیث د امام زهری رحمه الله نه اوریدلې او یاد کړې مې دې. چنانچه څنګه ستاسو موجودګی زما په وړاندې یقینی ده دغه شان زما د امام زهری رحمه الله نه اوریدل اودا یادول هم یقینی دی. علامه کرمانی رحمه الله لیکی: «یعنی کما لا شك فی کونك فی هذا المکان کذلك لا شك فی حفظی منه».[٨]

دا حدیث نیزدې یو څو بابونه وړاندې تیرشوې دې. هم هلته ددې شرح هم شوې ده.[٩]

**ترجمة الباب سره دَ حدیث مطابقت:** ددې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت لفظ کلب اوملائکة کښې دې چه دواړه دالله تعالی مخلوقات دی. والله اعلم.

دباب څلورم حدیث دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما دې.

---

[١] قوله: عن أبی طلحة رضی الله عنهم: الحدیث، مرتخریجه سابقا، باب إذاقال أحدکم: آمین.....

[٢] کشف الباری: ٣٣١/٣.

[٣] کشف الباری: ٢٣٨/١ و ١٠٢/٣.

[٤] کشف الباری: ٣٢۶/١.

[٥] دَدوی تذکره کتاب الصلح باب إذا اصطلحوا علی الصلح.... کښې راغلې ده.

[٦] کشف الباری: ٤٣٥/١و٢٠٥/٢.

[٧] ددوی دَتذکره دپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب الماء الذی یغتسل به شعرالإنسان.

[٨] شرح الکرمانی: ٢٢١/١٣عمدة القاری:٢٠٢/١٥إرشادالساری:٣١۶/٥قال الکورانی الحنفی رحمه الله: اراد تحقیق السماع. الکوثرالجاری: ٢٢٧/۶.

[٩] فی باب سلف عن قریب: باب إذا قال أحدکم: آمین.....

## الحديث الرابع

[٣٣٣٥] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الكِلاَبِ» (١)

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا عبدالله بن يوسف تنيسى دمشقى رحمه الله دي. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تيرشوى دى. (٢)

**مالك:** دا امام دارالهجرة امام مالك بن انس اصبحى مدنى رحمه الله دي. ددوى اجمالى حالات بدء الوحى او تفصيلى حالات كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې بيان كړې شوى دى. (٣)

**نافع:** دا مشهور تابعى محدث حضرت نافع مولى ابن عمر رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد په ذيل كښې راغلى دى. (٤)

**عبدالله بن عمر:** د مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات كتاب الايمان باب الايمان، وقول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام...... لاندې تيرشوى دى. (٥)

دباب پنځم حديث دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.

## الحديث الخامس

[٣٣٣٦] - حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، حَدَّثَهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا يَنْقُصْ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ [ص: ١٣١] يَوْمٍ قِيرَاطٌ إِلَّا كَلْبَ حَرْثٍ، أَوْ كَلْبَ مَاشِيَةٍ» [ر ٢١٩٧] (٦)

---

(١) قوله: عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما: الحديث، أخرجه مسلم كتاب المساقاة والمزارعة، باب الأمر بقتل الكلاب... رقم: ١٥٧٠ والنسائى فى سننه، كتاب الصيد، باب الأمر بقتل الكلاب، رقم: ٤٢٨٨ والترمذى فى جامعه، كتاب الصيد باب ماجاء: من أمسك كلبا....و رقم: ١٤٨٨ وابن ماجه فى سننه، كتاب الصيد، باب قتل الكلاب رقم: ٣٢٠٢.

(٢) كشف البارى: ٢٨٩/١ الحديث الثانى: ١١٣/٤.

(٣) كشف البارى: ٢٩٠/١، ٨٠/٢

(٤) كشف البارى: ٦٥١/٤

(٥) كشف البارى: ٦٣٧/١

(٦) قوله: أن أبا هريرة رضى الله عنه: حدثه الحديث، مرتخريجه فى كشف البارى: كتاب البيوع..... والمزارعة: ٤١٩.

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسمٰعيل تيمى تبوذكى رحمه الله دي. د دوى حالات اجمالاً بدء الوحى او تفصيلاً كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد.....، په ضمن كښې راغلى دى.[1]

**همام:** دا همام بن يحيى بن دينار عوذى بصرى رحمه الله دي.[2]

**يحيى:** دا يحيى بن ابى كثير الطائى ابوالنضر اليمانى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم كښې تيره شوې ده.[3]

**ابوسلمة:** دا مشهور تابعى حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتساباً من الإيمان لاندې راغلى.[4]

**ابوهريره:** دا مشهور صحابى حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. ددوى حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.[5]

دباب شپږم حديث دحضرت سفيان بن ابى زهير شنئ رضي الله عنه دي.

## الحديث السادس

[۳۳۲۷]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يَزِيدُ بْنُ خُصَيْفَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي السَّائِبُ بْنُ يَزِيدَ، سَمِعَ سُفْيَانَ بْنَ أَبِي زُهَيْرٍ الشَّنَئِيَّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا، لاَيُغْنِي عَنْهُ زَرْعًا وَلاَ ضَرْعًا، نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ» فَقَالَ السَّائِبُ: أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِي وَرَبِّ هَذِهِ القِبْلَةِ-[ر۲۱۹۸][6]

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمه:** دا عبدالله بن مسلمه قعنبى مدنى رحمه الله دي. ددوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن په ذيل كښې تيرشوى دى.[7]

**سليمان:** دا سليمان بن بلال تيمى ابومحمد قرشى المدنى رحمه الله دي. ددوى تذكره كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيره شوې ده.[1]

---

[1] كشف البارى: ۴۳۳/۱ الحديث الرابع: ۴۷۷/۳.

[2] دَدوى دَ حالاتو دَپاره اوګورئى كتاب مواقيت الصلاة باب من نسى صلاة.

[3] كشف البارى: ۲۶۷/۴.

[4] كشف البارى: ۳۲۳/۲.

[5] كشف البارى: ۶۵۹/۱

[6] قوله: سمع سفيان بن أبى زهير الشنئى...: الحديث، مر تخريجه كشف البارى كتاب المزارعة: ۴۲۵.

[7] كشف البارى: ۸۰/۲.

**یزیدبن خصیفه:** دا یزید بن عبدالله بن خصیفه رحمه الله دي.[2]

**سائب بن یزید:** دا مشهور تابعی حضرت سائب بن یزید کندی رحمه الله دي.[3]

**سفیان بن ابي زهیر الشنئ:** دا صحابی رسول حضرت سفیان بن ابی زهیر رضی الله عنه دي. دعربو د مشهورې قبیلې ازدشنوءة طرف ته منسوب کیدو سره شنئ سره یادیږی.[4]

**قوله: أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من اقتنى كلبا، لايغني عنه زرعا، ولا ضرعا، نقص من عمله كل يوم قيراط:** سائب بن یزید رحمه الله فرمائی چه ما سفیان بن ابی زهیر رضی الله عنه فرمائیلو سره واؤریده چه هغوی د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه چا داسې یو سپې اوساتلو چه هغه ته نه په زمیندارئی کښې فائده ورکوی اونه د څناورو په خیال ساتلو کښې... ددغه بنده د نیکواعمالونه هره ورځ یو قیراط کمیږی. اقتنی فعل ماضی دې ددې مصدر اقتناء دې ددې معنی د ساتلو ده. او ضرع په اصل کښې تی ته وائی مګر دلته څاروی مراد دی.

**د قیراط معني اومراد:** قیراط د یو وزن نوم دې په اکثر علاقوکښې داد دینار شلمه حصه وه اود اهل شام په نیز قیراط د دینار د څلیریشتمې حصې نوم دې. ځکه چه د اهل شام په نیز د دینار څلیریش حصې وی.[5]

دلته په حدیث کښې یقینی هم دا معنی مرادنه ده بلکه ددې حقیقی اندازه هم الله تعالی ته معلومه ده اوحدیث مراد دادې چه د ده دنیک عمل د اجزاء نه یو جزء هره ورځ کمیږی. دا بغیرد ضرورت نه د سپی ساتلو سزا ده.[6]

**روایاتوکښې اختلاف اوپه هغې کښې تطبیق:** دباب په دواړو احادیثوکښې قیراط مفرد راغلې دې خو په بعض روایاتو کښې (لکه د حضرت ابن عمر او ابوهریره رضی الله عنهما په روایاتو کښې) قیراطان تثنیه سره راغلې دې چه دوه قیراط کمیږی.[7]

د دې دواړو احادیثو د تطبیق دپاره علماؤ دا ارشادات فرمائیلي دی: ① د سپو د دوو جدا جدا قسمونو په اعتبارسره حضورپاك دا فرمائیلی. نوچه د کوم ضرر زیات وی په هغې باندې دوه اود کوم چه کم وی په هغې باندې به یو قیراط منها کیږی. ② یا په معنوی اعتبارسره دا تفریق اوکړې شو دا د ځایونو په اختلاف باندې مبنی دې. چنانچه په مدینه منوره کښې دوه قیراط ځکه چه ددې فضیلت ډیر زیات دې او دمدینې نه بهر به یو قیراط منها کیږی. ③ په لویوښاریواو کلوکښې به دوه قیراط

---

[1] کشف الباری: ۶۵۸/۱

[2] دَدوی دَ حالاتودپاره اوګورئی کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد.

[3] دَدوی دَحالاتودپاره اوګورئی کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس......

[4] دَدوی دَحالاتودپاره اوګورئی کتاب فضائل المدینة باب من رغب عن المدینة.

[5] مجمع بحار الأنوار: ۲۵۱/٤مادة قرط، باب القاف مع الراء.

[6] عمدة القاری:۲۰۳/۱۵وقال المحدث الکورانی رحمه الله: وقد سلف أن المراد بالقیراط شیئ من عمله. لا یعلمه غیر الله. أو أعلم رسوله. ولم یبین لنا ذلک. الکوثر الجاری: ۲۲۸/۶.

[7] انظر صحیح مسلم کتاب المساقاة والمزارعة. باب الأمر بقتل الکلاب.... رقم: ٤٠٢٥-٤٠٢٣و ٤٠٢٨-٤٠٢٧عن ابن عمررضی الله عنه، ورقم: ٤٠٢٠عن أبی هریرة رضی الله عنه.

او په ورو کلو کښې به يو قيراط عمل ضائع کيږي. ④ د علامه نووي رحمه الله د تحقيق مطابق دا اختلاف د دوو زمانو په اعتبار دي. اول حضور پاك د يو قيراط ذکر اوکړو بيا چه نى کله اوکتل چه خلق نه منع کيږي نو په دې سختوالي اختيار کړو او د دوو قيراطو ذکرنى اوفرمائيلو.[1]

⑤ خو حافظ ابن حجر رحمه الله قيراطان تثنيه والا روايت راجح گرځولې دې. «لكونه حفظ ما لم يحفظه الآخر»[2] ⑥ حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه اول نى د قيراطان حکم اوکړو او بيانى د قيراط دې وجه داده چه د سپو په معامله کښې په شروع کښې ډيره سختى وه اوهغه چه چرته ليدلو د وژلو حکم نى وو لکه چه وړاندې د دې تفصيل راخى ان شاء الله. بيا په دغه حکم کښې تخفيف راغلو. چنانچه د قيراطان تعلق د شدت زمانې سره او د قيراط تعلق د خفت زمانې سره دې. هم دا آخرى قول حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زکريا کاندهلوى رحمه الله راجح گرځولې دې.[3]

**دَ اجر نقصان به دکوم ځائي نه کيږي؟**: بيا د علماء کرامو د نقصان عمل په محل کښې هم اختلاف دې چه دا به د کوم ځائى نه کيږي؟ چنانچه علامه عبدالواحد رويانى شافعى رحمه الله په بحر کښې ليکلى دى چه د ورځې په اعمالو سره يو قيراط اود شپې په اعمالو سره به يو قيراط کميږي. دويم قول دادې چه د فرائضونه يو قيراط او د نوافل نه يو قيراط کميږي.[4] مگر راجح هم دغه دى چه دا ټول هسې بې وجې قياسونه دى ځکه چه د دې نقصان محل به څه وى د دې تعيين د قياس په ذريعه سره نه شى کيدې. د دې قسم امورو توضيح اوتنقيح په سماع باندې موقوف کيږي کوم چه دلته موجود نه ده. په دې وجه د دې قياسونو ضرورت هم په ظاهره هيڅ نشته.

چنانچه د شارع عليه السلام مقصد ومطمح صرف دومره اندازه باندې دې چه بغير د حاجت او ضرورت نه سپى مه ساتئى گنى سزا به ملاويږي چه د بنده د عمل نه به روزانه دوه قيراط اجر کميږي په دې وجه د فيشن په توگه بغير ضرورت نه سپى ساتل اودا په کور کښې ساتلو نه پرهيز کول پکار دى. لهذا په دې قسم بحثونو کښې د غور او سوچ هيڅ ضرورت نشته دې. علامه ابى مالکى رحمه الله څه ښکلى ارشاد فرمائيلې دې: «والله أعلم بما أراد رسول الله صلى الله عليه وسلم، وذكر القيراط هنا تقديراً لمقدار. الله أعلم به، والمراد به نقص جزء ما».[5]

**دَ اجر دَ نقصان سبب څه دې؟**: ① بغير د ضرورت نه اود فيشن په توگه د دې په کور کښې د ساتلو د وجې نه په اجر کښې چه کوم کمې واقع کيږي دهغې سبب څه دې؟ د امت علماؤ د دې مختلف اسباب بيان کړى دى:

① د دې د وجې نه په کور کښې د رحمت فرښتې نه داخليږي. ② تلونکو راتلونکو ته د دې نه تکليف کيږي چه دا سپى هر تيريدونکې ويروى او هغوى پسې کيږي. ③ د شريعت د طرف نه منع کړې شوې ځيز ساتل اود شريعت خبره نه منلو دا سزا ده. ④ ښکاره خبره ده چه دا سپى کور کښې وى

---

[1] شرح صحيح مسلم للنووى: ۲۳٤/۱۰عمدة القارى: ۲۰۳/۱۵والأوجز: ۲۷۹/۱۷-۲۷۸الكوثر الجارى: ۲۲۸/۶إرشاد السارى: ۳۱۶/۵.

[2] فتح البارى: ۵/۵تكملة فتح الملهم: ۲٤۳/۱.

[3] أوجز المسالک: ۲۷۹/۱۷.

[4] عمدة القارى: ۲۰۳/۱۵الأوجز: ۲۷۸/۱۷وبحر المذهب للرويانى: ۸۹/۵باب بيع الكلب، ومسند الرويانى: ۹۶/۲رقم: ۸۹۲

[5] شرح الأبى على صحيح مسلم: ۲۵۵/٤.

نواخوا ديخوا به خله هم وهي او بنده ته به خبر هم نه وي. حالانكه د شريعت حكم د ولوغ كلب باره كښې واضح دې نود دې غفلت د وجې نه به بنده نه لوښې وينځي نه به دې له شوره ورکوی په دې وجه به ددې دا سزا وی.[1]

**دا ممانعت تنزيهي دې كه تحريمي؟**: ددې ټولو احاديثونه هم دغه خبره واضح کيږی چه د ضرورت دپاره که سپی اوساتلې شی نو په هغې کښې هيڅ حرج نشته اود ضرورت تعيين رسول اكرم ﷺ فرمائيلې چه د فصل د حفاظت دپاره يا د څاروو دحفاظت دپاره يا د ښكار دپاره وی. ددې ټولو نه علاوه كه څوك سپی ساتی نودهغه څه حكم دې؟

ددې جواب دادې چه دا عمل جائز نه دې د احاديثو ظاهر هم په دې باندې دلالت کوی چه دا حکم تحريمی دې. ليکن حافظ ابن عبدالبر مالکی رحمه الله دا احاديث په کراهت تنزيهی باندې محمول کوی چه په دې احاديثو کښې صرف دومره راغلی دی چه اجر به کميږی. د ګناهګاريدو چرته ذکر نشته دې د حرمت دپاره د ګناه کيدل ضروری دی. خو حافظ صاحب ابن حجر رحمه الله دهغوی په دې موقف باندې رد کولوسره فرمائيلی چه د اجر کمې هم يو قسم له ګناه ده. يا په حديث کښې دنقصان اجر نه مراد دادې چه د سپو ساتلو او پاللود وجې نه چه کومه ګناه کيږی هغه د يو قيراط يا دوو قيراطو د اجر برابر کيږی.[2]

د حافظ ابن حجر د موقف تائيد ددې احاديثو نه هم کيږی په کوم کښې چه دامضمون راغلې دی،چه ملائکه د رحمت په هغه کورکښې نه داخليږی په کوم کښې چه تصوير وی يا سپی. په دې باب کښې دا حديث تيرشوی دی. ښکاره هم دغه ده چه د ملائکو عدم دخول ددې د پاره دې چه په دې کښې ګناه ده.[3] خلاصه دا شوه چه دا حکم د حرمت دپاره دې چه بغيرضرورت نه سپی ساتل جائز نه دی.

**د کورونو اومکانونو د حفاظت د پاره د سپی ساتلو حکم**: په دې کښې خودامت دعلماؤ اتفاق دې چه د فصل د حفاظت دپاره د څاروو وغيره دحفاظت دپاره سپی ساتلوکښې څه حرج نشته بالکل جائزدی. البته آيا په دې باندې قياس کولوسره د حويلی اوکور وغيره د حفاظت دپاره سپی ساتل جائز ګرځولې کيدې شی. نوددې جواب په اثبات کښې دې يعنی جائزدی. د اکثرعلماؤ فقهاؤ هم دغه رائې ده. چنانچه حافظ رحمه الله د کوڅې يا لاړې د حراست او څوکيدارئې دپاره د سپی ساتلو جواز د علماء شوافع نه نقل کړې دی.[4] هم دغه مذهب شافعيه علامه عينی رحمه الله هم نقل کړې دې او په دې باندې د څه قسم نکيرنه دې کړې د کوم نه چه معلوميږی چه دعلامه عينی حنفی رحمه الله هم دغه موقف دې.[5]

مالکيه کښې حافظ ابن عبدالبر رحمه الله خو مطلقًا جلب منفعت او دفع مضرت دپاره ددې قائل دې.[6] خو حنابله کښې ابن قدامه رحمه الله د کورونو يا لارو وغيره د حفاظت دپاره سپی ساتلو ته ناجائز وائی اوهم دغه قول د هغوی په نيز اصح دې.[1] ائمه احناف کثر الله سوادهم هم د جواز صراحت فرمائيلې

---

[1] شرح الكرماني: ۲۲۲/۱۳شرح للنووی:علی صحیح مسلم: ۴۸۳/۱۰.

[2] فتح الباري: ۵/۵ والتمهيد لابن عبدالبر: ۲۱۹/۱۴.

[3] تكملة فتح الملهم:۳۴۳/۱.

[4] فتح الباري: ۶/۵كتاب المزارعة.

[5] عمدة القاري: ۷۱۴/۱۰كتاب المزارعة.

[6] التمهيد لما في الموطأ من المعاني والأسانيد: ۲۱۸/۱۴.

دي. چنانچه فتاوی عالمگیری کښې د اجناس په حواله سره لیکلي دي چه سپي ساتل مناسب نه دي البته که د ډاکوانو یا غلو وغیره ویره وي نو څه حرج نشته دې. دغه شان ازمري شرمخ او نور ځناور وغیره د حراست او څوکیدارئي په غرض سره ساتلو کښې څه بدینت نشته دې او د ذخیرې په حواله سره لیکلي دي: ((ويجب أن يعلم بأن اقتناء الكلب لأجل الحرس جائز شرعاً.....)).[2]

**د سپو ساتلو د ممانعت حکمتونه:** شریعت مطهره چه د سپو ساتلو، بغیرد ضرورت د ساتلو نه ممانعت فرمائیلې دی. په دې کښې ډیر حکمتونه دي. امام الهند حضرت شاه ولي الله محدث دهلوی رحمه الله په دې باندې رڼرا اچولو سره فرمائیلي دي چه په دې کښې حکمت او راز دادې چه دخپل جبلت او فطرت په اعتبار سره سپې د شیطان په شان دې ځکه چه د ده عادت لوبې توقې اوغصه کول دي. بیا دې په ګندګئ کښې اوسیږي خلقو ته تکلیف رسوي او شیطاني الهامات او وسوسې قبلوي.[3]

علامه دمیري رحمه الله لیکلي دي چه سپې د ښه تازه غوښې په ځائې مرداره خوړل ډیر خوښوي، ګندګي خوري اوخپل قي کرې شوې څیز دوباره خوري.[4] دده توکانړې دانسان دپاره ډیرې مضر دي. زهرژني دی په دې وجه بغیرد ضرورت نه دده نه ځان ساتل او هم لرې اوسیدل بهتر دي. والله اعلم.

**قوله:: فقال السائب: أنت سمعت هذا من رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ قال: إي، ورب هذه القبلة:** سائب رحمه الله د حضرت سفیان رحمه الله نه تپوس اوکړو چه آیا واقعي تاسو داحدیث د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې؟ نوهغوی اوفرمائیل چه بالکل ددې قبلې په رب قسم.

**قوله:: کلمه إي حرف ایجاب:** کلمه د إي دهمزه زیر سره حرف ایجاب دې دنعم په معنی کښې دې یعنی اوجي بالکل وغیره. په دې باندې خو د ټول نحاة اتفاق دې چه داکلمه همیشه د قسم نه وړاندې راځي مګر د ځانه پس راځي په دې کښې د نحاة اختلاف دې. د جمهور نحاة په نیز داد خبر ورکونکي تصدیق لکه ((قام زید)) د تپوس کونکي (سائل) ته د خبر ورکولو دپاره ((هل قام زید؟)) اود یوکار طلب کونکي سره د وعدې کولو دپاره لکه ((اضرب زیدا)) د پاره استعمالیږي چنانچه ددې ټولو په جواب کښې إي راځي لکه چه د إن نه پس نعم راځي.[5] خود ابن حاجب رحمه الله په نیز دا کلمه د استفهام سره خاص ده یعني صرف د استفهام نه پس راځي.[6] لکه چه په کلام الله کښې راغلي دي ﴿وَيَسْتَنْبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ﴾.[7]

---

[1] المغني لابن قدامة: ۱۷۳/۴ رقم: ۳۱۵۸.

[2] الفتاوى العالمكيريه (الهندية): ۳۶۱/۵ والموسوعة الفقهية: ۱۲۴/۳۵.

[3] حجة الله البالغة، مبحث في تطهير النجاسات: ۱۸۵/۱.

[4] حياة الحيوان للدميري: ۲۲۶/۲.

[5] عمدة القاري: ۲۰۳/۱۵ ومغني اللبيب: ۱۵۹/۱ تفسير المفردات.....

[6] حواله جات بالا والكافيه: ۱۲۰ حروف الايجاب مكتبه رحمانيه.

[7] سورة يونس: ۵۳.

البته په نعم او إي کښې فرق دې اوهغه دا چه د نعم نه پس قسم کيدل ضروری نه دی اود إي نه پس د قسم کيدل ضروری دی اوددې مقسم به هميشه لفظ رب لفظ الله او لعمری وی. والله اعلم. [1]

**قوله**: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمر بقتل الكلاب: حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمانی چه حضورپاك د سپو د وژلو حكم وركړې وو.

**د سپو د وژلوحكم**: د اسلام په شروع كښې د سپو د وژلو حكم وو. حضورپاك حكم وركړې وو چه په مدينه منوره كښې دې يو سپې هم په نظر رانه شي بلكه هغه وژنتې شي ځكه چه خلق نوی نوی مسلمانان شوی وو. د جاهليت د زمانې د ډيرو خرابو عادتونونه يو عادت د سپو ساتل هم وو. د اسلام قبلولونه پس هم دبعض خلقو هغه پخوانې شوق باقی وو په دې وجه نبی اكرم صلى الله عليه وسلم په سختئ سره د دې دختمولو حكم جاری كړو. حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه فرمانی:

«أمرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم بقتل الكلاب، حتى إن المرأة تقدم من البادية بكلبها، فنقتله، ثم نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن قتلها، وقال: عليكم بالأسود البهيم ذي النقطتين، فإنه شيطان» [2]

يعنی نبی كريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته د سپو د قتل كولو حكم راكړې وو او ددې حكم په خاطر راوړلو كښې نی دومره سختی اختيار كړې وه چه كه يوه ښځه به د خپل سپی سره د كلی نه دمدينې ښار ته راتلله نو بيا به هم مونږ دهغې سپې وژلو. بيا حضورپاك دسپو د قتل كولونه منع اوفرمائيله او ارشاد نی اوفرمائيلو چه په دې كښې كوم يو ډير تك تور وی او خاپونو والاوی صرف هغه قتل كوئی ځكه چه هغه خو شيطان وی.

بيا لكه څنګه چه جابر رضی الله عنه اوفرمائيل چه په دې حكم كښې كمې راغلو اومذكوره حكم صرف د تور سپی پورې محدود شو چه دغه وژنتې. دغه شان دحضرت عبد الله بن مغفل رضی الله عنه روايت كښې دی:

«أمر رسول الله صلى الله عليه وسلم بقتل الكلاب، ثم قال: ما بالهم وبال الكلاب؟ ثم رخص في كلب الصيد وكلب الغنم» [3]

ددې رواياتونه معلومه شوه چه ذ اسلام په شروع كښې په دې معامله كښې شدت وو بيا تخفيف اوشو.

**دائمه اربعه مذاهب**: په دې خبره خود امت دعلماؤ اجماع ده چه كلب عقور (چك لګونكې سپې) وژل جائز دی. په دې كښې د چاهم اختلاف نشته دې. خوهغه سپې كوم چه بې ضرر وی دهغې وژل جائز دی كه نه؟ د ائمه اربعه په دې مسئله كښې مختلف اقوال دی.

امام مالك رحمه الله حديث باب (حديث ابن عمر رضی الله عنهما) نه استدلال كولوسره دا موقف اختيار كړې دې چه داستثنائی صورتونونه علاوه د سپو وژل جائز دی ددې د وژلوحكم هغه منسوخ نه ګڼړی بلكه محكم ورته وائی.

---

[1] معجم النحو والصرف: ١٢١.

[2] صحيح مسلم كتاب المساقاة والمزارعة، باب الأمر بقتل الكلاب..... رقم: ١٥٧٢ وسنن أبى داؤد كتاب الصيد، باب فى اتخاذ الكلب للصيد وغيره، رقم: ٢٨٤٦.

[3] الحديث اخرجه مسلم كتاب الطهارة باب حكم ولوغ الكلب رقم: ٦٥٣/٢٨٠ وكتاب المساقاة..... باب الأمر بقتل الكلاب رقم: ١٥٧٣ وأبوداؤد كتاب الصيد باب ماجاء فى اتخاذ الكلب للصيد، رقم: ٢٨٤٥ والترمذى كتاب الصيد باب ماجاء فى قتل الكلاب رقم: ١٤٨٦ وباب ماجاء من أمسك كلبا..... رقم: ١٤٨٩ وابن ماجه كتاب الصيد باب قتل الكلاب رقم: ٣٢٠١-٣٢٠٠.

مگر نور ائمه حضرات فرمائي چه بې ضرر سپی وژل جائز نه دی هغوی دا د سپو دوژلو حکم منسوخ منی. ناسخ حدیث حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنهما دې.[1]

**دملاحده يو اعتراض اودهغې جواب:** د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما داحدیث په بخاری شریف کښې هم دومره دې چه «أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمر بقتل الكلاب» خود مسلم شریف یو روایت کوم چه د عمرو بن دینار رحمه الله په طریق سره دې په هغې کښې دا اضافه هم ده: «إلا كلب صيد أو كلب غنم أو ماشية» بل په دې کښې دا اضافه هم ده «فقيل لابن عمر: إن أبا هريرة يقول: أو كلب زرع، فقال ابن عمر: إن لأبي هريرة زرعا» یعنی حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ته چا دا اووئیل چه ابوهریره رضي الله عنه خو دا هم فرمائي چه «أو كلب زرع» (اوهغه سپې چه د فصل د حفاظت دپاره وی) نوحضرت ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائیل چه د ابوهریره رضي الله عنه خود زمیندارئي کار دې.[2]

هم دا روستو ذکر کړې شوې اضافه بنیاد جوړولو سره بعض ملحدین په حدیث باندې اعتراض کوی او وائی چه صحابه کرام رضي الله عنهم په روایات حدیث کښې به په یو بل باندې شك کولو او العیاذ بالله هغوی به یو بل باندې د حدیثو په وضع کولو کښې تهمت لګولو چه هغوی د خپل نفسانی خواهش مطابق احادیثو کښې تصرف کولو په دې وجه احادیث هیڅ کله حجت نه شی کیدې.

هم ددې محلدینو په دې قسم اعتراضاتو باندې متاثر کیدو سره بعض هغه مصنفین کوم چه خپل نسبت د اسلام طرف ته کوی مگر ددې قسم بې بنیاد واقعات بنیاد جوړولوسره په اسلام باندې د اعتراض کولو هیڅ یوه موقع د لاس نه نه پریږدی اوهغه ئی په خپلو کتابونو کښې نقل کړه. مقصد ئی صرف دا دې چه احادیث د تنقید نښه جوړ کړې اوصحابه کرام رضي الله عنهم چه دامت یو مقدس ترین طبقه ده په هغوی باندې تعریض اوکړی. **نستغفر الله العظيم.**

مگر دا اعتراض بې خایه او فضول دې صرف یوه کینه ده دکومې اظهار چه په مختلفو طریقو سره کولې شی. حقیقت دادې چه د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په دې قول کښې حضرت ابوهریره رضي الله عنه باندې تنقید نه دې کړې شوې چه دهغوی پټی دی نوځکه هغوی د پټی د سپی باره کښې اضافه کوی. حالانکه نبی عليه السلام دا نه دی فرمائیلی ددې نفوس قدسیه باره کښې ددې تصور پورې کول روا نه دی چه هغوی دې د دې وړو وړو څیزونو دپاره ددنیا دمعمولی فائدې دپاره به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په احادیثو کښې خیانت کوی او په هغې کښې به د خپل ذاتی غرض دپاره څه اضافه کوی چنانچه دابن عمر رضي الله عنهما دا قول نه د حضرت ابوهریره رضي الله عنه د روایت د توهین دپاره دې اونه په دې کښې د شك دپاره دې. بلکه دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما ددې قول غرض اومقصد دادې چه دحضرت ابوهریره رضي الله عنه خود زمیندارئي کار دې په دې وجه هغه ددې اضافه د یادولو دپاره اهتمام اوکړو او ښه ئی یاد کړو. عرف اوعادت هم دغه دې څوك چه کوم څیز سره راګیروی اود کوم څیزسره چه د چا شغل وی دهغې سره متعلق امور دهغه سرې په نسبت زیات یاد ساتی اودهغې اهتمام کوی چه څوك هغې سره راګیر نه وی اونه ئی څه شوق وی. په دې کښې د حیرانتیا څه خبره نشته دې. بله هم دغه زیاتې (چه د پټی د

---

[1] المنتقى: ۲۸۹/۷ماجاء في أمر الكلاب مطبعة السعادة، مصر، والأوجز: ۲۸۱/۱۷-۲۸۰عمدة القاري: ۲۰۲/۱۵الموسوعة الفقهية: ۱۳۳/۳۵-۱۳۲شرح النووي على مسلم: ۴۷۹/۱۰والمغني: ۱۷۳/۴كتاب البيوع باب حكم قتل الكلب واقتنائه وتربية الجرو الصغير رقم: ۳۱۵۷والمفهم: ۴۴۸/۴كتاب البيوع باب ماجاء في قتل الكلاب...... رقم: ۱۶۶۲.

[2] صحيح مسلم كتاب المساقاة باب الأمر بقتل الكلاب رقم: ۴۰۱۹.

حفاظت دپاره د سپی ساتلو اجازت دي، حضرت ابن المغفل رضی الله عنه (۱) اوحضرت سفیان بن ابی زهری رضی الله عنه (۲) په روایاتو کښې هم موجود دي ظاهره خبره ده چه هغوی هم د نبی علیه السلام نه اوریدلي دي.

دې نه علاوه هم پخپله د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د روایت په یو طریق د کوم مدار چه حضرت ابوالحکم عبدالرحمن بن ابی نعیم البجلی رحمه الله دې (۳) کښې هم دا اضافه موجود ده. چنانچه داسې ښکاری چه کله ابن عمر رضی الله عنهما دا اضافه واؤریده اوهغوی ته پوخ یقین حاصل شو چه دا هم د نبی علیه السلام مبارك کلمات دی نوهغوی رضی الله عنهما هم دا روایت کړل او راتلونکو احادیثو کښې د دې اضافې سره روایت کولو. که چرې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په حضرت ابوهریره رضی الله عنه باندې اعتراض کول وې لکه چه د دغه ملحدینو فاسد ګمان دې نوهغه به هیڅ کله دا پخپله نه روایت کولو. والله اعلم بالصواب.

خلاصه دا شوه چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې زیاتی سره منفرد نه دې اوکه چرې منفرد شوې هم وې نودا زیاتې به مقبول ومرضی وې. امام نووی رحمه الله فرمائی: «والحاصل أن أباهريرة ليس متفردا بهذه الزيادة، بل وافقه جماعة من الصحابة في روايتها عن النبي صلى الله عليه وسلم، ولو انفرد بها لكانت مقبولة مرضية مكرمة» (۴)

**ترجمة الباب سره دحدیث مطابقت:** دباب آخری دریوارو احادیثو یعنی حدیث ابن عمر حدیث ابی هریره اوحدیث سفیان بن ابی زهیر رضی الله عنه ترجمة الباب سره مناسبت لفظ کلبا یا کلاب کښې دې کوم چه مخلوق دې.

**تتمه (خلاصه کتاب بدء الخلق):** امام بخاری رحمه الله کتاب بدء الخلق کښې ۱۶۰ مرفوع احادیث ذکرکړی دی په کوم کښې چه ۲۲ تعلیقات دی. باقی ۱۳۸ موصول روایات دی. بیا په دې کښې دا احادیث کوم چه مکرر دی دهغې شمیر ۹۳ دې باقی ۶۷ احادیث په اول ځل دې کتاب کښې راغلی دی. بل په دې کتاب کښې د صحابه کرامو اوتابعینو وغیره ۴۰ آثار هم دی. (۵)

---

(۱) مر تخریجه آنفا.

(۲) د دې باب د ټولو نه آخری حدیث مراد دې

(۳) صحیح مسلم کتاب المساقاة باب الأمر بقتل الكلاب......رقم:۴۰۲۹.

(۴) شرح النووی علی صحیح مسلم: ۴۸۰/۱۰ کتاب المساقاة باب الأمر بقتل الكلاب.

(۵) فتح الباری: ۳۶۰/۶.

# مصادر و المراجع


① القران الكريم

② الابواب والتراجم لصحيح البخارى، للشيخ العلام محمد بن زكريا الكاندهلوى رحمه الله تعالى المتوفى ١٤٠٢ هـ سعيد كراتشى

③ الاثار الموفوعه فى الاخبار الموضوعه، للعلامة ابى الحسنات محمد عبدالحى بن محمد عبدالحليم اللكنوى، رحمه الله تعالى (١٢٦٤هـ / ١٣٠٤ هـ) دار الكتب العلمية بيروت

④ الاحاد والمثانى للامام ابى بكر احمد بن عمرو بن ضحاك الشيبانى (ابن ابى عاصم رحمه الله تعالى المتوفى ٢٨٧ هجرى دار الراية الرياض الطبعة الاولى ١٤١١ هجرى - ١٩٩١م

⑤ الاحاديث المختارة للشيخ الامام ضياء الدين ابى عبدالله محمد بن عبدالواحد بن احمد الحنبلى المقدسى رحمه الله تعالى المتوفى ٦٤٣ هجرى الطبعة الرابعة ١٤٢١ هجرى دار الخضر بيروت

⑥ الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان، للأمير ابن بلبان الفارسي، تحقيق: الشيخ شعيب الأرناؤط، مؤسسة الرسالة بيروت، الطبعة الأولى: ١٩٨٨م

⑦ أحكام القرآن، للإمام أبى بكر محمد بن عبدالله المعروف بأبن العربى رحمه الله تعالى، المتوفى ٥٤٣هـ، دار الكتب العلمية، بيروت.

⑧ احياء علوم الدين للامام شيخ الاسلام محمد بن محمد الغزالى رحمه الله تعالى المتوفى ٥٠٥ هجرى دار الكتب العربية (فى مجلد واحد) بيروت

⑨ أخبار مكة فى قديم الدهر وحديثه، للإمام أبى عبدالله محمد بن إسحاق بن العباس الفاكهى المكى رحمه الله تعالى، من علماء القرن الثالث الهجرى، تحقيق: عبد الملك بن عبد الله بن دهيش، الطبعة الثانية ١٤١٤هـ/١٩٩٣م

⑩ ادب الكاتب للامام ابى محمد عبدالله بن مسلم بن قطيبة الدينورى رحمه الله تعالى المتوفى ٢٧٦ هجرى دار الكتب العلمية بيروت الطبعة الثالثة ١٤٢٣ هجرى

⑪ الأدب المفرد للإمام أبى عبدالله محمد بن إسماعيل بن إبراهيم بن المغيرة بردزبه البخارى رحمة الله، (١٩٤هـ-٢٥٦هـ) دار السلام/مكتبة المعارف، رياض /دار البشائر الإسلامية/الصدف ببلشرز، كراتشى

⑫ إرشاد السارى للإمام الحافظ أبى الفضل أحمد بن على بن الحجر شهاب الدين العسقلانى الشافعى رحمه الله المتوفى سنة ٨٥٢ دار الكتب العلمية / المطبعة الكبرى الأمرية ببولاق مصر المحمية سنة ١٣٢٣هجرى (الطبعة السابعة)

⑬ الاستذكار، للإمام الحافظ أبى عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر m (٤٦٣هـ)، دار إحياء التراث العربى.

⑭ الاستيعاب فى أسماء الأصحاب (بهامش الإصابة)، للإمام الحافظ أبى عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر المالكى رحمه الله، المتوفى سنة: ٤٦٣هجرى، دار الفكر، بيروت. ط: ١٤٠٩هجرى-١٩٨٩م

⑮ الاستيعاب فى اسماء الاصحاب للامام الحافظ ابى عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر المالكى رحمه الله تعالى المتوفى ٤٦٣ هجرى دار الفكر بيروت الطبعة الاولى ١٤٢٣ هجرى

(۱۶) أسد الغابة في معرفة الصحابة للإمام عزالدين أبي الحسين علي بن محمد بن محمد بن عبدالريم بن عبدالواحد الشيباني المعروف بابن الأثير الجزري رحمه الله المتوفى سنة ٦٣٠ هجري دار الكتب العلمية بيروت

(۱۷) الاسرار المرفوعة في الاخبار الموضوعة للملا علي بن سلطان محمد نور الدين الهروي القاري (۱۰۱۴ هجري) المكتب الاسلامي بيروت الطبعة الثانية ۱۴۰۶ هجري

(۱۸) الاصابة في تمييز الصحابة للامام الحافظ ابي الفجر احمد بن علي بن حجر شهاب الدين العسقلاني الشافعي رحمه الله تعالى المتوفى ۸۵۲ هجري دار الفكر بيروت دار الجيل بيروت

(۱۹) الاضداد للامام ابي بكر محمد بن قاسم بن محمد بن بشار المعروف بابن الانباري رحمه الله تعالى المتوفى ۳۲۸ هجري المكتبة العصرية بيروت

(۲۰) أعلام الحديث في شرح صحيح البخاري للإمام المحدث أبي سليمان حمد بن محمد الخطابي رحمه الله المتوفى سنة ۳۸۸ هجري مركز إحياء التراث الإسلامي جامعة أم القرى مكة المكرمة

(۲۱) الأعلام الأشهر الرجال والنساء من العرب والمستغربين والمستشرقين لإمام الشيخ خير الدين الزركلي رحمه الله الطباعتة الخامسة عشرة: ۲۰۰۲م دار لعلم للملايين لبنان

(۲۲) اعلام النبوة للامام ابي الحسن علي بن محمد بن حبيب الماوردي رحمه الله تعالى المتوفى ۴۵۰ هجري الطبعة الاولى ۱۹۸۷م دار الكتاب العربي بيروت

(۲۳) آكام المرجان في غرائب الاخبار واحكام الجان للعلامة المحدث القاضي بدر الدين ابي عبدالله محمد بن عبدالله الشبلي الحنفي رحمه الله تعالى المتوفى ۷۶۹ هجري دار الغد للجديد القاهرة الطبعة الاولى ۱۴۳۰ هجري

(۲۴) اكمال المعلم بفوائد مسلم للامام الحافظ ابي الفضل عياض بن موسى بن عياض اليحصبي رحمه الله تعالى المتوفى ۵۴۴ هجري دار الوفاء للطباعة والنشر والتوزيع دار الكتب العلمية بيروت

(۲۵) إكمال إكمال المعلم شرح صحيح مسلم للإمام عبدالله محمد بن خلفة الوشتاني الأبي المالكي البخاري المتوفى سنة ۸۲۷ أو ۸۲۸ هجري دار الكتب العلمية بيروت

(۲۶) إكما التهذيب الكمال للعلامة علاء الدين مغلطائي ابن قليجبن بن عبدالله الحنفي رحمه الله المتوفى سنة ۷۶۲ هجري، الحديثية للطباعة والنشر

(۲۷) الأنساب، للإمام أبي يوسف سعد عبدالكريم بن محمد ابن منصور التميمي السمعاني رحمه الله المتوفى سنة ۵۶۲ هجري دالفكرت للطباعة والنشر بيروت

(۲۸) الانواء في مواسم العرب للعلام ابي محمد عبدالله بن مسلم بن قتيبة الدينوري رحمه الله تعالى المتوفى ۲۷۶ هجري در المعارف العثمانية حيدر آباد كن الهند الطبعة ۱۹۲۸م.

(۲۹) اوجز المسالك للإمام المحدث محمد زكريا الكاندهلوي المدني رحمه الله المتوفى سنة ۱۴۰۲ هجري دار القلم دمشق

(۳۰) البحر الرائق شرح كنز الدقائق للإمام العلام الشيخ زين الدين بن ابراهيم بن محمد المعروف بابن نجيم المصري الحنفي المتوفى سنة ۹۷۰ هجري دار الكتب العلمية بيروت

(۳۱) البحر الزخار المعروف بمسند البزار، للحافظ اللإمام أبي بكر بن أحمد بن عمرو بن عبدالخالق العتكي رحمه الله المتوفى: ۲۹۲ هجري الطبعة الأولى: ۱۴۰۹ هجري، مؤسسة علوم القرآن بيروت

(۳۲) بحر المذهب للامام ابي المحاسن عبدالواحد بن اسماعيل الروياني الشافعي رحمه الله تعالى المتوفى: ۵۰۲ هجري الطبعة الاولى ۱۴۰۹ هجري دار الكتب بيروت

٣٣ البداية والنهاية للإمام الحافظ أبي الفداء إسماعيل بن كثير بالدمشقي رحمه الله المتوفى سنة ٧٧٤ هجري دار الكتب العلمية بيروت/دار إحيا التراث العربي

٣٤ البدر الساری. حاشيه فيض الباری: حضرت مولانا بدر عالم ميرٹھی (١٣٨٥هـ) المكتبة الرشيد كوئٹه

٣٥ البدور السافرفی احوال الاخرة للعلامة جلال الدين عبد الرحمن بن ابی بكر بن سابق الدين الخضيري السيوطی رحمه الله المتوفی ٩١١ هجري در الكتب العلمية ١٤١١ هجري

٣٦ البعث والنشور للامام احمد بن الحسين بن علی البيهقی رحمه الله تعالی المتوفی ٤٥٨ هجري الطبعة الاولی: ١٤٠٦ هجري مرك الخدمات والابحاث الثقافية بيروت

٣٧ بذل المجهود للشيخ المحدث خليل أحمد السهارنبوري رحمه الله المتوفى سنة ١٣٤٦ هجري مركز الشيخ أبی الحسن الندوي الهند

٣٨ بيان القرآن للشيخ مولانا أشرف علی تهانوي رحمه الله المتوفی سنة ١٣٦٢ هجري إدارة التاليفات الاشرفية ملتان

٣٩ البيان والتبيين للعلامة ابی عثمان عمرو بن بحر الحافظ رحمه الله تعالی المتوفی ٢٥٥ هجري دار الكاب العلمية بيروت

٤٠ تاج العروس للشيخ أبو الفيض سيد محمد بن محمد بن عبد الرزاق الحسينی المعروف بالمرتضی الزبيدی (١٢٠٥هـ). دار الهداية

٤١ تاريخ اسماء الثقات للعلام عمر بن احمد بن عثمان المعروف بابن شاهين رحمه الله المتوفی (٣٨٥ هـ) الطبعة الاولی: ١٤٠٤ هجري الدار السفية الكويت

٤٢ تاريخ الإسلام ووفيات المشاهير والأعلام للإمام شمس الدين أبی عبد الله محمد بن محمد أحمد الذهبی الدمشقی رحمه الله المتوفی سنة ٧٤٨ هجري دار الكتاب العربی

٤٣ تاريخ اصبها (اخبار اصبهان) لابی نعيم احمد بن عبد الله بن احمد بن اسحاق الاصبهانی رحمه الله تعالی، المتوفی (٤٣٠ هجري) دارلكتب الطبعة الاولی (١٤١٠ هجري)

٤٤ تاريخ بغداد : حافظ أحمد بن علی المعروف بالخطيب البغدادی m (متوفی ٤٦٣ هـ). دار الكتب العربی بيروت لبنان،

٤٥ تاريخ الخميس فی احوال أنفس نفيس: شيخ حسين بن محمد بن الحسن الديار بكری المالكی m (متوفی ٩٦٦ هـ)، مؤسسة شعبان بيروت،

٤٦ تاريخ الصغير للحافظ النقاد شيخ الاسلام ابی عبد الله اسماعيل بن ابراهيم البخاري رحمه الله تعالی المتوفی (٢٥٦ هجري) دار المعرفة بيروت

٤٧ تاريخ الطبري (تاريخ الرسل الملوك) للإمام جعفر محمد بن جريرة الطبري رحمه الله المتوفی: ٣١٠ هجري الطبعة الثانية: در المعارف مصر

٤٨ تاريخ العباس الدوري عن ابی زكريا يحيى بن معين رحمه الله تعالی المتوفی (٢٣٣ هجري) مركز البحث العلمی واحياء التراث الاسلامی مكة المكرمة الطبعة الاولی: ١٣٩٩ هجري

٤٩ تاريخ عثمان بن سعيد الدارمی رحمه الله تعالی المتوفی (٢٨٠ هجر) عن ابی زكريا يحيى بن معين رحمه الله المتوفی (٢٣٣ هجر) در الكتب العلمية بيروت لبنان

٥٠ التاريخ الكبير للحافظ النقاد شيخ الإسلام أبی عبد الله بن إسماعيل بن ابراهيم البخاري رحمه الله المتوفی سنة ٢٥٦ هجري در الكتب العلمية بيروت لبنان
تاريخ مدينه السلام (راجع: تاريخ بغداد)

٥١ تاريخ يحيى بن معين، للإمام يحيى بن معين بن عون المزي البغدادي رحمه الله المتوفی: ٢٣٣ هجري دار القلم

للطباعة والنشر والتوزيع بيروت
(٥٢) تبيين الحقائق للإمام فخر الدين بن عثمان بن علي الزيلعي الحنفي رحمه الله المتوفى سنة ٧٤٣ دار الكتب العلمية
(٥٣) تحذير الناس من انكار اثر ابن عباس ﷺ لحجة الاسلام قاسم العلوم والخيرات مولانا محمد قاسم النانوتوي رحمه الله تعالى المتوفى (١٢٩٧هجري) ادارة تحقيقات اهل سنت/اداة العزيز كوجرانواله
(٥٤) تحرير تقريب التهذيب تاليف الدكتور بشار عواد معروف والشيخ شعيب الأنور الطبعة الأولى : ١٤١٧ هجري مؤسسة الرسالة بيروت
(٥٥) التحرير والتنوير للشيخ محمد الطاهر بن محمد بن محمد بن عاشور التونسي رحمه اللا المتوفى (١٣٩٣هجري) الدار التونسية للنشر تونس
(٥٦) تحفة الأحوذي بشرح الجامع للإمام الترمذي للإمام الحافظ أبي العلى محمد بن عبد الرحمان ابن عبد الرحيم كفوري رحمه الله المتوفي سنة ١٣٥٣هجري دار الفكر
(٥٧) تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف للحافظ المنقن جمال الدين أبي الحجاج يوسف المزي رحمه الله المتوفى سنة ٧٤٢ هجري الطبعة الثانية: ١٤٠٣هجري المكتب الإسلامي بيروت
(٥٨) تحفة الباري شرح صحيح البخاري للإمام شيخ الإسلام يحيى بن زكريا بن محمد الأنصاري الشافيعي رحمه الله المتوفى سنة ٩٢٦هجري دار الكتب العلمية/دار ابن حزم/مكتبة الرشد
(٥٩) تدريب الراوى شرح تقريب النواوى: حافظ جلال الدين عبد الرحمن سيوطى m (متوفى ٩١١ھ) المكتبة العلمية مدينه منوره،
(٦٠) تذكرة الحفاظ: حافظ أبو عبد الله شمس الدين محمد بن أحمد بن عثمان ذهبى m (متوفى ٧٤٨ھ). دار المعارف العثمانيه الهند،
(٦١) تذكرة وسوانح الامام الكبير مولانا محمد قاسم النانوتوي للشيخ عبد القيوم الحقاني حفظ الله القاسم الكى ڈمى جامعه ابوهريره نوشهره
(٦٢) ترتيب العلل (علل الترمذي الكبير) لابى طالب القاضى مكتبة النهضة العربية/ عالم الكتب بيروت: (١٤٠٩ هجري)
(٦٣) تعليقات احياء علوم الدين (المغنى حمل الاسفار فى الاسفار) للامام زين الدين ابى الفضل عبد الرحيم بن الحسين العراقي رحمه الله تعالى المتوفى (٨٠٦ هجري) دار الكتاب العربى بيروت
(٦٤) تعليقات الاسماء والصفات للاستاذ عبد الله بن محمد بن الحاشدي مكتبة السوادي جدة
(٦٥) تعليقات التدريب الراوي للاستاذ عبد اللطيف المطبوع بذيل تدريب الراوي الطبعة الثانية: ١٣٩٢هجري
(٦٦) تعليقات خلاصة الخزرجى المطبوع مع الخلاصة لم يعرف كاتبه مكتب المطبوعات الاسلامية حلب
(٦٧) تعليق التعليق التعليق للشيخ سعيد عبد الرحمان موسى المكتبة الاثرية لاهور
(٦٨) تعليقات الدارقطنى على المجروحين لابن حبان للامام المحدث الحافظ الكبير لعى ابن عمر الدارقطنى رحمه الله المتوفى [٣٨٥هجري] دار الكتاب الاسلامى القاهرة الطبعة الاولى [١٤١٣هجري]
(٦٩) تعليقات الشيخ المحقق المحدث محمد عوامه على المصنف لابن ابي شمة ادارة القرآن والعلوم الاسلامية كراتشي الطبعة الاولى [١٤٢٧هجري] شركة دار القبلة/مؤسسة علوم القرآن
(٧٠) تعليقات لا مع الدراري للامام المحدث محمد زكريا الكاندهلوي رحمه الله تعالى المتوفى [١٤٠٢ هجري] المكتبة الامدادية مكة المكرمة ط: ١٣٩٦هجري---١٩٧٦م:
(٧١) تعليق التعليق: للحافظ ابى الفضل أحمد بن علی بن حجر شهاب الدين المعروف بابن حجر العسقلانى m الشافعى (متوفى ٨٥٢ھ) المكتبة الاثرية پاكستان

(٧٢) تفسير ابن ابی حاتم (تفسير القرآن العظيم) للإمام الحافظ شيخ الإسلام أبی محمد عبدالرحمن بن أبی حاتم محمد بن إدريس بن المنذر التميمی الحنظلی الرازي رحمه الله المتوفى سنة ٣٢٧ هجري الطبعة الأولى بمطبعة دائرة المعارف العثمانية بحيدر آباد دكن الهند/دار الكتب العلمية

(٧٣) تفسير البغوي (معالم التنزيل) للإمام محيی الدين السنة ابی محمد الحسين بن مسعود البغوي رحمه الله المتوفى ٥١٦هجر طبع: ١٤٠٩هجري دار طيبة للنشر والتوزيع الرياض

(٧٤) تفسير البيضاوي (انوار التنزيل واسرار التاويل) للقاضی الإمام ناصر الدين ابی سعيد عبدالله بن عمر البيضاوی الشافعی رحمه الله المتوفى: ٦٨٥ هجري دار الكتب العلمية الطبعة الاولى [١٤٠٨هجري]

(٧٥) التفسيرات الاحمدية فی بيان الايات الشرعية للعالم الجليل الشيخ احمد الموعو بملا جيون الجونفوری رحمه الله تعالى المطبع الكريمی الواقع ببمبای الهند

(٧٦) التفسير الخازن للامام العلامة علاء الدين علی محمد بن المعروف بالخازن رحم الله تعالى المتوفى [٧٢٥ هجري] وحيدي كتب خانه پشاور

(٧٧) تفسير روح البيان للعلامة اسماعيل حقی بن مصطفى الاستانبولی رحمه الله تعالى المتوفى [١١٣٧ هجري] احياء التراث العربی بيروت

(٧٨) التفسير الكبير (مفاتيح الغيب): إمام أبوعبدالله فخرالدين محمد بن عمر الحسين رازیm (متوفى ٦٠٦هـ). مكتب الاعلام الإسلامی إيران،

(٧٩) التفسير لابن كثير للعلامة الجليل الحافظ أبوالفداء عمادالدين إسماعيل بن عمر ابن كثير دمشقیm (متوفى ٧٧٤هـ) دار الفكر بيروت،

(٨٠) تفسير الضحاك للامام ابی القاسم الضحاك بن مزاحم البلخی الهلالی المتوفى ١٠٥ هجري الطبعة الاولى [١٤١٩ هجري] جمع ودراسة وتحقيق الدكتور محمد شكري احمد الزاويتي دار اللام القاهرة مصر

(٨١) تفسير عبدالرزاق للامام المحدث ابی بكر عبدالرزاق بن همام بن نافع الصنعانی رحمه الله تعالى المتوفى [٢١١ هجري] دار الكتب العلمية بيروت

(٨٢) تفسير ماجدي مولانا عبدالماجد دريابادي رحمة الله عليه مجلس نشريات اسلام كراچی اشاعت [١٤١٨هجری]
تفسير ماوردي (انظر النكت والعيون)

(٨٣) تفسير مجاهد للامام المحدث المفسر مجاهد بن جبر المكی المخزومی رحمه الله تعالى المتوفى [١٠٣ هجري] دار الفكر الاسلامی الحديثة مصر

(٨٤) تفسير النسفی (انظر مدارك التنزيل وحقائق التاويل)

(٨٥) تفسير الطبري (جامع البيان عن تأويل اي القرآن) للإمام جعفر محمد بن جرير الطبري رحمه الله المتوفى: ٣١٠ تحقيق الادكتور عبدالله بن عبدالمحسن التركی دار هجر مركز البحوث والدراسات العربية والاسلامية

(٨٦) تفسير عثمانی لشيخ الإسلام العلامة شبير احمد عثمانی رحمه الله المتوفى: ١٣٦٩هجري دار الإشاعت كراتشی

(٨٧) تفسير القران العظيم: حافظ أبوالفداء عمادالدين إسماعيل بن عمر ابن كثير دمشقی (متوفى ٧٧٤ هـ) الطبعة الاولى: ١٤٢١هجري الفاروق الحديثة للطباعة والنشر القاهرة/مؤسسة قرطبة دار الفكر بيروت،

(٨٨) تفسير القرآن العظيم لسر سيد احمد خان طبع: ١٩٩٨م: دوست ايسوسی ايشن لاهور

(٨٩) تفسير الكشاف عن حقائق غوامض التنزيل وعيون الأقاويل فی وجوه التاويل للعلامة جار الله القاسم محمود بن عمر الزمخشري رحمه الله المتوفى: ٥٣٨ الطبعة الأولى: ١٤١٨هجري مكتبة مكتبة العبيكان الرياض

(٩٠) التفسير المظهري، للعلامة القاضی محمد ثناء الله رحمه الله المتوفى سنة ١٢٢٥هجري حافظ كتب خانه كويته دهو پاكستان

